د مطبوعاتو وزارت

د کورنیو خپرونو لوی مدیریت

# د افغانستان کالنی

۴۱-۱۳۴۲

۳۰ کنه

مسئول مدیر : عبدالله «محب حیرت»

د سنبلې لومړی ۱۳۴۲

## شمارهٔ ۳۰ د افغانستان کالنی

درسراپردهٔ سالیکه گذشت کشورما بسوی پیشرفت وتحول گامهای بر داشت که این حرکت وجنبش موزونتر ازسال پار بود.

میبینیم کشورما خوشبختانه همدوش بایجابات عصر وهمگام با مقتضیات زمان سیرارتقایی خودرا میپیماید وتطبیق پلانهای پنجسالهٔ دولت یکی پی دیگر نتایج مفید وثمربخش خودرا دررشتهای مختلف مملکت وزندگی مردم ما پدید میاورد خوشبختانه هر بار نشرسالنامه درموقعی تصادف میکند که گذشت یکسال درپایان روزهای خود تحولات مطلوبی را بمیان میآورد.

میبینیم باتقدیم شمارهٔ ۳۰ دافغانستان کالنی زمزمهٔ دیموکراسی وتحول سریع درپهنسرای کشور عزیز طنین انداز است ومفردات پلان پنجسالهٔ دوم کشوردر عصر فرخنده شهریار خجسته سیر باقوت بیشتر در حال تطبیق میباشد. قانون اساسی افغانستان باقانون مطبوعات وبسی مقررات نوین وتعلیماتنامه‌ها و لوایح مورد نظر مطابق ایجابات عصر وزمان درحال تدقیق، تعدیل وتدوین میباشد. نظام عدالت اجتماعی وآوردن اساسات دیموکراسی بتدریج مراحل تطبیقی خودرا میپیماید تاآنکه به نقطه ارتقایی خود برسد بنابران شمارهٔ ۳۰ دافغانستان کالنی که از یکطرف معرف فعالیتها یکسالهٔ دولت(از سنبله ۴۱ تا سنبله ۱۳۴۲) میباشد ازجا نب دیگر بانشرمطالب مفید آفاقی وحیاتی که به زندگی مادی ومعنوی وسیاسی اجتماع وفرد مفاد ارزنده دارد بصورت مشرح ومفصل برای مشتاقان معرفت سهم میگیرد در لمحاتیکه این شماره دافغانستان کالنی بمناسبت استقبال وتجلیل چهل وپنجمین سال استرداد آزادی وطن تقدیم میشود، بختیاریم ازاینکه مراتب بهترین تبریکات خودرا به این مناسبت بحضور اعلیحضرت معظم همایونی رهبرملی وکشوردارمحبوب خود وکافه طبقات هموطنان عزیزعرض نماییم و برای اعتلاوعظمت روزافزون کشوراز صدق دل دعا نماییم تامهروخرشید درآسمانها تابنده است مشعل آزادی افغانستان عزیز درمرتفعترین قلل کوههای شامخ آن درخشنده وفروزنده باشد.

«اداره»

همایونی معظم اعلیحضرت د خپلواکی د ٤٤ جشن په مراسمو کښې د عسکری
رسم گذشت نه وروسته د شاهانه اردو کتنه کړی .

په کابل کښې د خپلواکی په ٤٤ جشن کښې د شاهانه ذات اردو د رسم گذشت یوه منظره

د افغانستان معظم پاچا اعلیحضرت محمد ظاهر شاه

د افغانستان معظم ټولواك د ۱۲۹۳ کال د میزان د میاشتې په دوه ویشتمه
نیټه په کابل کښې زیږیدلی دی. څنګه چه دده ګران عمر دزده کړې او تعلیم داقتضا وه
وګرځید نو په لومړنیو او منځنیو ښوونځیو کښې دزده کړې لپاره شامل شو او
په پای کښې یې خپل عالي تعلیمات په کابل کښې سرته ورسول هرکله چه دده محترم
پلار اعلیحضرت شهید سعید محمد نادرشاه غازی دافغانستان دسفیر په حیث پاریس ته
لاړ همایوني ذات هم له فقید شهر یار سره دمهمو تحصیلاتو دزده کړې لپاره دده ملګری
شو، نو فرانسوی ژبه او عالي علوم یې په مختلفو شقوقو کښې په عالي ښوونځیو او
پوهنتونو کښې زده کړل او دوطن دداخلي مسائلو او ملي اخلاق په نسبت خصوصي تربیه
او دهیواد په باره کښې دلازمو مطالبو ادراك او نور خصایص یې له خپل پلار څخه زده کړي دي.

دافغانستان له لویو اغتشاشاتو نه وروسته (چه نجات یې داعلیحضرت همایوني
دمحترم پلار په واسطه سره سرته ورسید) معظم ټولواك چه خپل تعلیمات یې سرته
رسولي وو او دوطن د خدمت لپاره چمتو شوی ؤ د ۱۳۰۹ شمسي کال دمیزان په ۲۰
نیټه یې کابل ته تشریف راوړه له دې کبله چه ده له یوې خوا عسکري عالم سره مینه
درلوده او له بلې خوا یې وغوښتل چه د پلار دمنهج پیروي وکړي په عسکري شعبه کښې
د کابل په عالي نظامي تعلیمګاه کښې شامل شو او په لږه موده کښې یې په دې شریف فن کښې
پوره مهارت وموند او په ۱۳۱۰ لمریز کال کښې یې دوالاحضرت سردار احمد شاه د دربار دپخواني
وزیر چه داعلیحضرت محمد نادرشاه شاه شهید دتره زوی ؤ مشره لور په نکاح کړه
او ددغه کال په آخر کښې څه موده دحربیې دوزارت په وکالت او څه موده د معارف
دوزارت په وکالت مؤظف شوی و دهمایوني اعلیحضرت خپل ذاتي لیاقت او
فطري استعداد په ښه اداره او دصحیحو خدمتو په کولو یادی دوه وزارتو کښې په ښه
توګه ښکاره کړ، په ۱۳۱۲ کال کښې یعنی هغه وخت چه اعلیحضرت محمد نادرشاه
غازی شهید شو دملت دوکیلانو، مشرانو او ټولو عسکري او کشوري افرادو په غوښتنه
او اتفاق دسلطنت په تخت کښیناست، سږ کال دده دمبارك جلوس (۳۰) کال ګڼل کیږي.

## دمعظم همایوني اعلیحضرت زامن او لوڼې.

۱ـ دوالاحضرتې شهزادګۍ بلقیس دزیږیدو نیټه د ۱۳۱۱ لمریز کال دحمل ۲۸
۲ـ دوالاحضرت مرحوم شهزاده محمد اکبر « د ۱۳۱۲ « « داسد ۱۹
۳ـ دوالاحضرت شهزاده احمد شاه « د ۱۳۱۳ « « دسنبلې ۲۱
۴ـ دوالاحضرتې شهزادګۍ مریم « د ۱۳۱۵ « « دعقرب ۱۰
۵ـ دوالاحضرت شهزاده محمد نادر « د ۱۳۲۰ « « دجوزا ۴
۶ـ دوالاحضرت شهزاده شاه محمود « د ۱۳۲۵ « « دمیزان ۱۰
۷ـ دوالاحضرت شهزاده محمد داؤد (پښتون یار) « د ۱۳۲۸ « « دحمل ۲۵
۸ـ دوالاحضرت شهزاده میرویس « د ۱۳۳۵ « « ددلو ۵

# دمعظم تولواک دارشاداتو ځینی برخې

## دهیواد دخپلواکۍ د۴۴ تلین په مناسبت :

له نیکه مرغه په دغه وخت کې داستعمار او غلبې عمر پای ته رسیدلی دی، دآزادو ملتونو
نوی مجادله په تیره بیا هغو ملتونو چه قهراً له دوی څخه دانکشاف فرصت سلب شوی ؤ
ترهر څه زیات فن ددوی بیرته پاتی ګیدو، لری کولو ته متوجه ده ځکه چه پخوا مونږ ته
دغه فرصت میسر نه ؤ د هغو جبران زمونږ زیات کوښښونه غواړی په دغه لیار کی
زمونږ مجادله هغه وخت مطلوبه نتیجه ورکوی چه د هغو نیمګړتیاو د لری کولو دپاره
چه زمونږ د مادی او معنوی ژوند بنیاد تهدیدوی دسعی او عمل په طاقت
سره خپلی وظیفی سرته رسولی وی، دوطن دټولو بچو او نارینه ؤ ښځو
ددغه مسئولیت سهم غواړم د منورو زلمیانو ځخه چه اجتماعی وظیفی ورسپارلی
شوی دی او د وطن له هغو زامنو څخه چه د تعلیم له لیاری په آینده کښی د وظیفو د منلو
دپاره تیاری کوی زمونږ توقع زیاته ده چه په پوره پوهی سره خپلی وظیفی په ښه ډول
سرته ورسوی دسږ کال په پسرلی کښی بیا فرصت لاس ته راغی چه د هیواد ځینو سیمو ته
سفر وکړم په هر ګوټ کې می مطلوب هدف ته د رسیدو دپاره دخلکو روحیه په بیداری
او همآهنګی سره وکتله . د هغو په سرته رسولو کښی د حکومت د پلانو د تطبیق مشاهده
زما د زیاتی امیدواری موجب شو نن د افغانستان خلك د نړۍ د ټولو ملتو په شان
دخپلو ملی چارو او بین المللی علایقو د پاره مسئولیتونه لری د هغو د سرته رسولو دپاره
ملی عنعناتو او عصری شرطونو په نظر کښی نیولو سره چه ژوند پکښی کوو باید په راسخ
عزم خپلو کړو کوښښونو ته دوام ورکړو په ملی ساحه کښی د افغانستان خلك او حکومت
داقتصاد او اجتماع او معارف په لیار کښی د ښه ژوند په تهیه کولو مشغول دی، په دغه ساحه
کښی مو وویل د حکومت کوښښ او دخلکو همکاری د حدود و په امکان کښی له هغو
هیلو سره برابردی چه د ملت هر فرد یې د هیواد د ښې آینده دپاره په زړه کښی روزی لکه چه
د هیواد په آبادیه کښی پیشرفتونه او انکشاف د طبیعی منابعو څخه داستفادی تلاش،
د موا صلاتو د لیارو تمدید او په تیره بیا د معارف تقویه چه د هیواد د نوی ژوند د بنیاد
اساس دی د مملکت په هر ګوټ کښی محسوس دی .

په بین المللی علایقو کښی د افغانستان تکلیف د سولی او امنیت د ټینګولو او د ښه تفاهم
او دوستی په لاره کښی د خدمت په لیاره د ملګرو ملتو د منشور په پیروی د بین المللی
همکاری پیدا کول دی، د افغانستان د بیطرفی سیاست په دغو مهمو اساساتو شروع شوی دی

او په خلل نه قبلو ونکې شکل یې دوام کړی اوو به یې کړي په هغه نړۍ کښې چه سیاسي اختلافونه او ایدولوژۍ لانجې په کښې روانې دي دافغانستان طرز عمل د بیطرفۍ دسیاست په تعقیب چه دهغه اساس دسر نوشت دټاکلو دحق او پر ورغو د خبرو د لارې داختلافي مسئلو دحل دلارې دلټولو اود آزادۍ داصل په احترام په بین المللي قضیاوو کښې آزاد قضاوت دی، دسولې غوښتنې او ټولو خلکو او ملتو سره د ښو روابطو دآرزو ښخه سرچینه اخلي .

## بمناسبت احتفال نهصدمین سال وفات پیر هرات :

خواجهٔ بزرگوار از آن شخصیت های معنوی و ممتاز است که آثار و افکار خویش را بجهان بشریت ارمغان نموده و ازین جاست که اندیشه های عرفانی و ارشادات اخلاقی وی نه تنها در تاریخ فرهنگ کشور ما که موطن و موقف تجلی افکار اوست مقام خاص دارد ، بلکه باتحولی که او وامثال او در سیر فکری بشری ایجاد نموده اند نزد آن دانشمندان جهان که قرن ها از آثار وی برخوردار گردیده اند سزاوار تکریم میباشد .

## دښوونکو دورځې دپنځم احتفال په مناسبت :

زموږ هیواد دتاریخ په دورو کښې دد اسې ثقافت او تمدن مرکزو چه داخلاقي او معنوي عالي اصولو په اساس ولاړ و او داسې کلك بنسټ دی چه زموږ آینده ترقي وربانده کلکه پاتې کیږي او زموږ د استادانو او پوهانو تکریم چه تل یې قیمتي ثقافتي ذخیرې پرې ایښې دي زموږ دملي عنعناتو او داسلامي شعایرو جزء گڼل کیږي ، داوسني عصر دمدنیت په جریان کښې دمعلم وظیفه کال په کال اهمیت پیدا کوي او دتخنیکي او اجتماعي علومو ورځ په ورځ زیاتیدونکي ترقي نوی طرز تلقي ایجابوي، موږ په داسې وخت کښې ژوند کوو چه دخلکو دژوند دسویې په ښیگڼه کښې دپوهنې او معارف اغیزه ورځ په ورځ زیاتیږي، په ژوند کښې دعلم تطبیق دیوې ټولنې دمدنیت د سنجش مقیاس تشکیلوي، په اوسنۍ نړۍ کښې اجتماعي او اقتصادي تحولات دنړۍ هغو مملکتو ته د استفادې فرصتونه ورکوي چه د مادي او معنوي ددغې استفادې اندازه دملتو دتربیې او ثقافت په سویې پورې مربوط ده.

زموږ په هیواد کښې اوس تخنیکي او اقتصادي پلانونه تر اجراء لاندې دي چه زیاتو تعلیم یافته افراد وته احتیاج لري او باید حتی الامکان ورو زل شي په دغو ټولو جریاناتو کښې دمعلم وظیفه مهمه ده او دمملکت دمدنیت په تاسیس کښې مهم عامل گڼل کیږي.

## د کمکي اختر په مناسبت :

خوشحاله یو چه گورو زموږ خلك همدا شانې چه دملي شعور په لمنا کښې دوطن داعتلا په لاره کښې دخپلو وظیفو په سرته رسولو او دښه راتلونکې سبا د پاره

ملی لار ښوونکی اودوطن ترقی غوښتونکی همایونی معظم ټولواک
چه په دېوروستنیو کلو نوکښې ددوی دګټورو لارښوونو په رڼا کښې
افغانستان ددیموکراسۍ، عرفانی، اقتصادی او اجتماعی تکامل په خوا
ور اندې روان دې

په تلاش کښې صمیمانه کوشش کوي او زیار باسي چه دغه کوښښونه له معنوي عالي ملکاتو او اخلاقي سجایا وو سره هم یوځای اوسي په دې وخت کښې چه کال پای ته رسیږي او دادې د نوي کال لمر را ختونکی دی دهیواد په بیلو بیلو عمراني موسسو کښې زمونږ دکار ګرانو نه ستړي کیدونکي فعالیت، د پنځمې د تولید اتو په زیاتولو کښې دشمال سیمې د بزګرانو کوښښونه او دهیواد د بیلو بیلو ښوونځیو ناتو په وړاندې بیولو کښې دټول ملت کوښښونه چه سږ کال زما په داخلي مسافر تونو کښې و لیدل شول مونږ دراتلونکو آرزو ګانو د ترسره کولو دپاره ډیر هیله من او مطمئن کوي.

## د۱۳۴۳ د نوي کال په مناسبت:

ددې آغاز پای هغه مهمه وظیفه ده چه دهغې ترسره کول او په ځای کول ددې خاوري د فرد په غاړه ایښوول شوي ده اوس هم زمونږ په ښارونو او بانډو او دروډونو او ناوو نو په غاړو او د غرونو او غونډیو په لمنو کښې ډیري داسې شاهدې مځکې شته چه طبیعت هغه د نیالګیو د ایښودلو او د ځنګلونو د جوړولو دپاره مساعدې کړي دي او په لږه توجه ور څخه ګټه اخیستل کیدلای شي لکه چه وینو د مځکې په تشکلاتو او د محیط داوبو او هوا په شرایطو کښې ددې کار دپاره کوم یو مانع نشته، نو هغه کار چه ددې ضروري کار دترسره کولو دپاره یو مهم عامل ګڼل کیږي هغه دخلکو همت او ذوق او کوښښ دی.

زمونږ توصیه ټولو هغو خلکو ته چه په دې ګټور او اجتماعي اقدام کښې برخه اخلي تل داده چه هغوي نیالګي په داسې شرایطو کښینوي او په داسې شرایطو یې روزنه او پالنه وکړي چه له هغه څخه سمه او پوره ګټه واخستلای شي او که د دې شرایطو مراعات ونکړای شي نو په دې صورت کښې به نیالګي ضایع، مځکه شاړه او دخلکو خواري عبث شي.

## دلوی اختر په مناسبت:

په دغه نیکمرغ او مبارك فرصت کښې چه دنړۍ مسلمانان د ورولۍ او برابرۍ په روحیه سره دکعبې مبارکې په زیارت مشرف دي زما دعا داده چه دغه عالي روحیه تل د اسلام دنړۍ لارښوونکې وي.

دعصر احتیاجاتو او مقتضیاتو په او سنۍ مرحله کښې زموږ دموقف په مخ کښې زموږ فرایض او وجایب لوی او زیات کړي دي.

پدې وخت کښې چې زموږ هیواد دملي مصالحو سره سم دیوه اجتماعي تحول په مرحله کښې دی زموږ دوظیفو صحیح تشخیص دهیواد د اوس او راتلونکې وخت له پاره زموږ دمسئولیت ضمانت کوي.

# د ملي شورى رئیس دکتور عبدالظاهر

د ۱۲۸۸ د غبرګولي د میاشتې په ۱۳ نیټه په لغمان کښې زیږېدلی او لومړنۍ زده کړې ئې تر څلورم ټولګي پورې د کابل د رحمت په ښوونځي کښې بشپړې کړې. او وروسته له هغه ئې دوه کاله د علي آباد په ملي طبي ښوونځي کښې درس لوستلی دی او وروسته بیا د حبیبیې د ښوونځي په (اوم ټولګي) په دوهمه رشدیه کښې داخل او په ۱۳۱۰ لمریز کال کښې د حبیبیې له ښوونځي څخه فارغ التحصیل او په هماغه کال کښې د طب زده کړې د پاره امریکې ته واستول شو او په ۱۳۱۴ کښې ئې د کولمبیا له پوهنتون څخه د اجتماعیاتو د لیسانس دیپلوم واخیست او په

د ملي شورى رئیس ښاغلی دکتور عبدالظاهر

۱۳۱۹ کښې ئې هم د کولمبیا له پوهنتون څخه د طب د ډوکتورۍ دیپلوم او په همدغه کال کښې ئې د نیویارک د ریاست د روغتیا له وزارت څخه د عامې روغتیا د چارو دیپلوم او په ۱۳۲۲ کښې ئې په نیویارک کښې د فلشنګ له روغتون او د پنسلوانیا د بیول له روغتون څخه د داخله او جراحي تخصص واخیست او په آخر کښې یعنې له ۳۱ څخه تر ۳۲ پورې ئې د پنسلوانیا د ریاست د بیول په روغتون کښې د شغیز دانت (سرطبابت) چارې په غاړه درلودې.

دی د ۱۳۲۲ د لړم په ۱۷ نیټه وطن ته راغی او د ۱۳۲۲ د مرغومي د میاشتې له

۸ نيټي څخه د۱۳۲۹د لړم تراول پورى يى دښاروالى دسرطبيب په حيث وظيفه اجرا کړى ده.

له ۱۳۲۷ نه راهيسى يى سر بيره پر خپلو ورسپارل شويو وظيفو دشاهانه مبارك حضور دمعالج طبيب په حيث هم وظيفه اجرا کړى ده اود ۱۳۲۹ دلړم له اول څخه ئى دروغتيا دوزارت دمعين په وظيفه سربيره د دارملو د ديپو دریاست کفالت هم اجرا کړيدي دغه راز يې په ۱۳۲۹ کښې دستورى دريمه درجه نشان اخيستى دى.

دخپل ماموريت په وخت کښې ئې په لاندى بين المللى جرګو کښې ګډون کړيدى

۱: دتهران په پزشکى کنګره کښې دغړى په حيث.

۲: په ۱۹۴۹ کښې ئې په روم کښې دنړى د روغتيا دمؤسسى په اسامبله کښې دغړى په حيث. دجينوا د ۱۹۵۱ـ۱۹۵۲ او ۱۹۵۴ په اسامبله کښې دافغانى هيأت دمشر په حيث اود ۸۴۹ر۴ر ۱۱ ر ۳۴ احکام په اثر دروغتيا د وزارت دکفيل په حيث مقرر شوى ؤ.

په ۱۳۳۵ کښې دشوروى داشترا کيه جمهوريت په اتحا د کښې دافغانى صحى هيأت دمشر په حيث د ۱۳۳۷ دغبر ګولى په لومړى نيټه په کراچى کښې د همايونى معظم اعليحضرت دلوى سفير په حيث وټاکل شو او په همدغه کال کښې ئې دسردار عالى نښان واخيست. د ۱۳۴۰ دورى په مياشت کښې دکراچى د لوى سفارت له عهدى څخه استعفا وکړه او د شورى په يو لسمه دوره کښې دلغمان دخلکو په وکالت کانديد شو چه په هغه اثر دلغمان دخلکو په نما يندګى دشورى په وکيلانو کښې شامل او وروسته له هغه دشورى ديو ولسمى دورى دوکيلانو له خوا درأيو په اتفاق دپارلمان درئيس په حيث وټاکل شو.

# دملی شورئ تشکیل

| د ملی شوری رئیس | دکتور عبدالظاهر | (د لغمان وکیل) |
|---|---|---|
| لمړی معین | دکتور محمد اسمعیل علم | (د کابل د مرکز وکیل) |
| دوهم معین | ښاغلی ولی محمد رحیمی | (د آقچې وکیل) |
| لمړی منشی | « محمد رحیم شیدا | (د میمنې د مرکز وکیل) |
| دوهم منشی | « میرزا گل محمد | (د خاص کنړ وکیل) |

## د ملی شوری د کمیسیو نو رئیسان ، معاونان او منشیان

| دخارجه چارو د کمیسیون رئیس | ښاغلی کمال الدین اسحق زی | (د سرپل وکیل) |
|---|---|---|
| مرستیال | ښاغلی غلام سخی پوپل | (د حضرت امام وکیل) |
| منشی | « عبدالرزاق | (د کوهستان وکیل) |

### دقوانینو د تدوین د چارو کمیسیون

| رئیس | ښاغلی عبدالله رحمانی | (د چخانسور وکیل) |
|---|---|---|
| مرستیال | ښاغلی میرزا محمد | (د روداتو وکیل) |
| لمړی منشی | « محمد نسیم پروانه | (د غوراتو د مرکز وکیل) |
| دوهم منشی | « عبدالرشید | (د بلخ وکیل) |

### د بودجې او مالی د چارو کمیسیون

| رئیس | ښاغلی محمد امان انورزاده | (د خان آباد وکیل) |
|---|---|---|
| مرستیال | « امان الله سیوشانی | (د گذری وکیل) |
| لمړی منشی | « میرزا هدایت الله | (د کوز کنړ وکیل) |
| دوهم منشی | « عبدالرشید | (د بکوا وکیل) |

### د کرهڼې او مخابراتو د چارو کمیسیون

| رئیس | ښاغلی حبیب رحمن ناصری | (د تالقانو د مرکز وکیل) |
|---|---|---|
| مرستیال | « محمد یوسف | (د جبل السراج وکیل) |
| منشی | « عبدالرؤف | (د جلال آباد د مرکز وکیل) |

په کابل کښي دوطن دخپلواکۍ د ٤٤ جشن په لومړي ورځ دشاهانه اردو رسم گذشت

دخپلواکۍ د ٤٤ جشن درسم گذشت بوه منظره

په کابل کښې دخپلواکۍ د ٤٤ جشن دعسکري رسم گذشت یوه منظره

## د پوهنی، مطبوعاتو او د روغتیا چارو کمیسیون

| | | |
|---|---|---|
| رئیس | ښاغلی عبدالباقی شاغاسی | (د چاردهی وکیل) |
| مرستیال | « غلام سخی فولاد | (د پغمان وکیل) |
| منشی | « ابو بکر محزون | (د بادغیساتو وکیل) |

## د عدلی چارو کمیسیون

| | | |
|---|---|---|
| رئیس | ښاغلی مولوی عبدالخالق | (د کنړو وکیل) |
| مرستیال | « مولوی میالطف الله | (د کاپیساو وکیل) |
| منشی | « عبدالشکور | (د اندړو وکیل) |

## د ملی دفاع د چارو کمیسیون

| | | |
|---|---|---|
| رئیس | ښاغلی عبدالرزاق | (د دوشی وکیل) |
| مرستیال | « میرزا محمد | (د ارگون وکیل) |
| منشی | « علیشاه | (د خمکنی وکیل) |

## د ملی شوری مامورین

| | |
|---|---|
| د لیکنو او د مجلس لوی مدیر | ښاغلی محمد داؤد |
| د محاسبی او اداری » « | « محمد نعیم |
| د خپرونو او د شوری د مجلی مدیر | « فضل احمد زیارمن |
| د پښتو محرر | « غلام محی الدین عارفی |
| د آرشیف مدیر | « فیض محمد |

## د ولایاتو او اعلی حکومتونو وکیلان

| | |
|---|---|
| د کابل ولایت: د کابل د مرکز وکیل | دکتور سید حشمت الله |
| د ده سبز وکیل | ښاغلی جهاندارشاه |
| د بگرامیو وکیل | « محمد یونس |
| د کوهدامن د لوی حکومت وکیل | « میرگدای |
| د سروبی وکیل | « مولوی حفیظ الله |
| د لوگر د لوی حکومت وکیل | « عبدالقادر مدقق |
| د کلنگار وکیل | « عبدالعزیز |
| د میدان د لوی حکومت وکیل | « عبدالحکیم |
| د وردگو وکیل | « امین الله حیدری |
| د بهسودو وکیل | « غلام محی الدین |

## د قندهار ولایت

| | | |
|---|---|---|
| د قندهار د مرکز | وکیل | ښاغلی سردار عبدالله (طرزی) |
| د سپین بولدك | » | » عبدالغفور |
| د ارغستان | » | » دوست محمد |

| | | |
|---|---|---|
| د ترین | وکیل | ښاغلی غلام فاروق |
| دخاکریز | » | » حاجی عبدالقیوم |
| دارغنداب | » | » صالح محمد (الکوزایی) |
| دپنجوایی | » | » حاجی عطاءمحمد |
| دکشك نخود | » | » محمد نادر (میوندی) |
| دډهلی | » | » میرزامحمد |
| دشورابك | » | » عطاء محمد |
| دقلات دلوی حکومت | » | » میرزامحمدنبی |
| دشنکی | » | » حبیب الله |
| دجلدك | » | » حاجی محمدحسن |
| دقلات دکوچیانو | » | » حاجی محمدجانخان |

## دهرات ولایت

| | | |
|---|---|---|
| دهرات دمرکز | » | » محمد طاهر (الکوزایی) |
| دمرغاب | » | » عبدالملوك |
| دگلران | » | » محمدظریف |
| دکشك | » | » عبدالرحمن |
| دقادس | » | » محمدعلی |
| دغوریانو | » | » حاجی عبدالشکور |
| دشینډنډ | » | » محمد محسن |
| دجوند | » | » حاجی محمدرحیم |
| دزنده جان | » | » غلام محمد |
| دکهسان | » | » محمدعلم |
| دادرسکن | » | » سیدعظیم |
| دانجیل | » | » محمد عثمان |
| دپښتون زرغون | » | » سیدعبدالعظیم (حسینی) |
| دکرخ | » | » عبدالعزیز (الکوزائی) |
| داوبی | » | » حاجی محمدصدیق |

## دمزارشریف ولایت:

| | | |
|---|---|---|
| دمزارشریف دمرکز | » | » عبدالکریم |
| دنهرشاهی | » | » مولوی محمدرجب |
| ددولت آباد | » | » حاجی احمد |
| دکشنده او شولگری | » | » محمد موسی |

| | | |
|---|---|---|
| د شورتپی | وکیل | ښاغلی قاری مولانقل |
| د سمنګانو | » | » عصمت الله (شرقی) |
| د خلم | » | » محمد نعیم |
| د دره صوف | » | » حاجی بیګک محمد |

## د قطغن ولایت

| | | |
|---|---|---|
| د بغلان | » | » محمدغلام |
| د پل خمری | » | » سردار عبدالرشید |
| د نهرین | » | » ملاغلام نبی |
| د اندراب | » | » غلام نبی |
| د قند ز د لوی حکومت | » | » غلام نبی (ناشر) |
| د کلای زال | » | » عبد الستار |

## د ننګرهار ولایت

| | | |
|---|---|---|
| د خوګیاڼیو | » | » عبدالاحد |
| د سرخ رود | » | » دوست محمد |
| د کامی | » | » سید کریم |
| د بر کنړ » | » | » محمد کریم |
| د خوګی | » | » کمبود |
| د پیچ د دری | » | » میرزا نورزمان |
| د لنډي سین | » | » محمد کبیر |
| د سرکاڼو | » | » محمدعمر |
| د حصارك غلجیو | » | حاجی سعادت |
| د نور ستان | » | » کمبود |
| د قرغهیو | » | » سید عاشق الله |
| د شنوارو | » | » کمبود |
| د اچین | » | » خایسته |
| د مهمندری | » | » غلام نبی |
| د ننګرهار د کوچیانو | » | » عبدالباقی |

## د پکتیا ولایت

| | | |
|---|---|---|
| د ګردیز د مرکز | » | » نیك محمد |
| د سپری | » | » سایل |
| د ګو ملی | » | » تاج محمد |
| د محا جیو | » | » حاجی رحمت |
| د محمد راڼو | » | » عقل الدین |

| | | |
|---|---|---|
| د زرمت | وکیل | ښاغلی پیرمحمد |
| دارزی | » | » آدم |
| د سیدکرم | » | » عبد الغنی |
| د خوست دمرکز | » | » صالح گل |
| دخوست دقنیو | » | » جنګک شاه |
| دمنګلو دموسی خیلو | » | » فقیرمحمد |
| دحاجی میدان | » | » رحیم گل |
| دجانی خیلو | » | » محمد خان |

## دفراه اعلی حکومت

| | | |
|---|---|---|
| دفراه دمرکز | » | » میرزا گل احمد |
| دانار دری | » | » حاجی محمد حسن |

## دمیمنی اعلی حکومت

| | | |
|---|---|---|
| داندخوی | » | » حاجی حبیب الله |
| دپشتون کوټ | » | » محمد امین |
| دبلچراغ | » | » عبد الرؤف |
| دشیرین تګاب | » | » عبدالاحد |
| دقیصار | » | » فیض الله |

## دبدخشان اعلی حکومت

| | | |
|---|---|---|
| دبدخشان دمرکز | وکیل | ښاغلی محمد قسیم (نعیم) |
| ددرواز | » | » عبدالحلیم |
| دجرم | » | » میرزا امان الدین |
| دکشم | » | » سید شیر |
| دواخان | » | » کمبود |
| داشکاشم | » | » میرزا محمد |

## دپروان اعلی حکومت

| | | |
|---|---|---|
| دپروان دمرکز | وکیل | ښاغلی محمد ولی |
| دبگرام | » | » سید جمیل (یعقوبی) |
| دپنجشیر | » | » میرسکندر بیک |
| دسرخ و پارسا | » | » حاجی میر فراموز |
| دغوربند | » | » عبدالوهاب |
| دنجراب | » | » محمداکبر |

همایونی معظم اعلیحضرت او دهند جمهور رئیس ښاغلی دکتور راداکرشنان دکابل په هوائی ډگر
داحترام دگارد سلام اخلی .

همایونی معظم ټولواک دهند لهجمهور رئیس ښاغلی دکتور راداکرشنان سره داخبرو اترو په حال کښې

هما یونی معظم اعلیحضرت د پکتیا ولایت د کتنی په ترڅ کښې دهغه ځای پر قومی مشرانو لطف کوی او دخپلو شاهانه رعایاؤ حال واحوال پوښتیی .

همایونی معظم اعلیحضرت د پکتیا ولایت د کتنی په ترڅ کښې دهغه ولایت دلومړنیو ښوونځیو دځینې زده کړو نکو دحال او احوال پوښتنه کوی .

### دغزني اعلي حکومت :

| | | |
|---|---|---|
| دغزني دمرکز | وکیل | شاغلی غلام غوث (سلیم عالمي) |
| دناور | » | » رستم علي |
| دمقر | » | » نور محمد |
| دقره باغ | » | » غلام نقشبند « ناشر» |
| د جغتو | » | » حاجي سلطان محمد |
| دجاغوري | » | » قمبر علي |
| دکتواز دلوی حکومت | » | » امیر محمد |
| دشرنی | » | » دریا |
| دوازی خواه | » | » محمد |
| دغزني دکوچیانو | » | » موسی |
| دکتواز » | » | » کشمیر |

### دګرشك اعلی حکومت :

| | | |
|---|---|---|
| دګرشك دمرکز | وکیل | » حاجي محمد موسی |
| دنهر سراج | » | » احمد |
| دنوزاد | » | » عبدالعزیز |
| دموسی کلا | » | » حاجي عبدالرشید |
| دګرمسیر وکیل | » | » محمد عمر |
| دپشترود دکوچیانو وکیل | » | » ولي محمد |
| دریګستان » | » | » خان محمد |

### دشبرغان اعلی حکومت :

| | | |
|---|---|---|
| دشبرغان دمرکز | وکیل | شاغلی عبدالرحیم |
| دسنګ چارك | » | » محمد اکرام |
| دقرقین | » | » کمبود |

### دغوراتو اعلی حکومت:

| | | |
|---|---|---|
| دشهرك | » | » حیات الله |
| دچقچران | » | » ابوبکر |
| دتولك | » | » محمد اسلم |
| دپرچمن | » | » عبدالوهاب |
| دلعل وسرجنګل | » | » میر محمد سرور بیګ |
| دپسابند | » | » محمد امین |

### دارزګان اعلی حکومت :

| | | |
|---|---|---|
| دارزګان دمرکز | » | » عبد الخالق |

| | | |
|---|---|---|
| دگیزاب | وکیل | شاغلی محمد نائب |
| داجرستان | » | » عبدالقادر |
| ددهراود | » | » غلام نبی |
| د دایکنډیو | » | » محمد اکبر (شاه‌عالمی) |
| دشهر ستان | » | » سهراب علی |
| دایه چوپان | » | » حاجی منگل |

**دبامیانو اعلی حکومت :**

| | | |
|---|---|---|
| دبامیانو دمرکز | » | » محمد نسیم |
| دکهمردو | » | » احمد جان |
| دیکاولنگ | » | » میرزا محمد ناصر |
| ددایزنګیو | » | » محمد انور |

**دتالقانو اعلی حکومت :**

| | | |
|---|---|---|
| درستاق | وکیل | » شیر علی |
| دچاه آب | » | » سید ایشان (جعفری) |
| دینگی کلا | » | » میر جهانگیر |
| دخوست وفرنگ | » | » میر علم |
| داشکمش | » | » میر مقیم |
| دفرخار | » | » میر محمد طاهر |

دپکتیا په ولایت کښې دهمایونی معظم اعلیحضرت دسفر له منظرو څخه

دهندجمهور رئیس ښاغلی د کتور راداکرشنان دښاغلی صدراعظم دکتورمحمدیوسف دخبرواترو په‌حال کښې

ښاغلی دکتور محمد یوسف صدراعظم هغه وخت چه دخپل کابینې سره دهمایونی معظم اعلیحضرت په حضور منلی شوی ده

# د ملي شورى فعاليتونه

## د ملي شورا د عمومي غونډو د مصوباتو راپور

۱ـ لر مړی لمبر تصويب د ثور د مياشتې په ۲۷ نېټه د عمومي مجلس د کار دورځو ټاکل او د ملي شورا د ۷ کميسيونو د تقسيم او د کميسيونو د کار د ورځو ټاکل په دې ډول چه: د عمومي مجلس د کار ورځې د يکشنبه، دوشنبه او سه شنبه او د کميسيونو د کار ورځې دې شنبه او چهارشنبه وي . علاوه پدې په کومو ورځو کې چه عمومي غونډه کار ونلري او په کميسيونو کې کار وي نو کميسيونونه هم داير کيداى شي.

۲ـ دوهم لمبر تصويب د ثور د مياشتې په ۲۹ نېټه د څلورو کميسيونو (مالي بودجې او تجارت د چارو کميسيون ، د قوانينو د وضع او تدقيق ، د شکاياتو داوريدلو ، داخله او قبايلو د چارو کميسيون ، د خارجه چارو کميسيون، د مخابراتو ، کرهنې، فوائد عامې او د معادنو او صنائعو د چارو کميسيون ) په باره کې.

۳ـ دريم لمبر تصويب د ثور د مياشتې په ۲۹ نېټه د خارجه چارو د کميسيون د رئيس مرستيال او منشي د ټاکلو، د قوانينو د شکاياتو داوريدلو ، داخله او د قبايلو د چارو د کميسيون د رئيس ، مرستيال او منشي د ټاکلو ، د مخابراتو، کرهنې ، فوائد عامې معادن او صنائعو د چارو د کميسيون د رئيس ، مرستيال او منشي د ټاکلو د مالي بودجې او تجارت د چارو د کميسيون د رئيس مرستيال لومړی او دوهم منشي د ټاکلو په باره کې .

٤ ـ څلورم لمبر تصويب د ثور په ۲۹ نېټه ، د افغانستان بانک د ذخيره بانکنو ټونو د څارنې د هيأت په جمله کې د ملي شورا د دوه تنو نمايندګانو ټاکل چه د شورا د يولسمې دورې په ۳ کال کې ښاغلی سيد عاشق الله د قرغيو وکيل او ښاغلی پيرمحمد د زرمت وکيل وټاکل شول .

٥ ـ پنځم لمبر تصويب د جوزا په ٤ تاريخ د کار د بين المللي سازمان د اساسنامې د ۷ مادې د (۱ـ۲ـ۳) فقرو تعديل د هغې موسسې د غړو د زياتولو په منظور د څلويښتو نه اته څلويښتو غړو ته چه د کار د بين المللي کنفرانس په ٤٨ غونډه کې د ۱۹٦۲ د جون په ۲۲ تاريخ شويدی .

٦ـ شپږم لمبر تصويب د جوزا په ٤ نېټه د قوانينو د وضع او تدقيق، د شکاياتو داوريدلو او د داخله او قبايلو د چارو د کميسيون د لومړی او دوهم منشي د ټاکلو په باره کې .

۷-اووم لمبر تصويب د (عدليې، معارف ، روغتيا اومطبوعاتو او دملي دفاع دچارو ددرى گونو كميسيونو دغړو ټاكل شو.

۸-اتم لمبر تصويب دجواز په ٤ نيټه دملي شورا دداخلي وظايفو داصول دلومړى او دوهمې مادى تفسير دمعينانو اومنشي دانتخاب او ټاكلو دموضوع په باره كي.

۹- نهم لمبر تصويب دجواز په ۱۳ نيټه د (عدلي چارو د كميسيون دملي دفاع دچارو كميسيون معارف روغتيا او مطبوعاتو د چارو دكميسيون ددرى گونو د رئيسانو معاونانو اومنشيانو دټاكلو په باره كي.

۱۰ - لسم لمبر تصويب دجوزا په ۱۳ نيټه دښاغلي دكتورمحمد يوسف صدراعظم دحكومت دخط مشي او اعتماد په باره كي.

۱۱- يولسم لمبر تصويب دجوزا په ۱۹ تاريخ دذروى قوى دبين المللي ادارى داساسنامى ددريم جز د ٦ مادى دالف دمادى دفقيرى دتعديل په باره كي چه د ۲۳ غړو څخه ۲۵ غړو ته جگ شوى او دهغه كنفرانس په پنځمه غونډه كي تصويب شوېده.

۱۲- دولسم لمبر تصويب دجوزا په ۲٦ نيټه دملكيه تقسيماتو داصولنامى ۱۹ مادى تعديل دوردگو دچك دنوى تشكيل شوى دريمه درجه حكومت دميدان دلوى حكومت پورى.

## دليك دمديريت اجراآت

۱ - ۱۹ لمبر تصويب د ۱٤ كال دسنبلې په ۲٦ نيټه، دعسكرى مكلفيت داصولنامى د ۲ مادى دتبصرى د موضوع دپاېو اعاده او د ۱٤ مادى دتبصرى تعديل دشوراد قوانينو دكميسيون دزيات غور دپاره.

۲- ۲۰ لمبر تصويب د ۱٤ كال دميزان په ۲۹ نيټه، دكجكي اوارغنداب د محكو لپاره داوبو پيرودلو اوقيمت ټاكلو داصولنامى دپروژى باره كي.

۳- ۲۱ لمبر تصويب د ۱٤ كال دميزان په ۱٦ نيټه، دعسكرى مكلفيت د ۲ مادى دتبصرى دپروژى او د ۱٤ مادى دتبصرى دتعديل په باره كي.

٤- ۲۲ لمبر تصويب د ۱٤ كال دميزان په ۱٦ نيټه، دتالقانو داعلي حكومت دنوى تشكيل د ۱٤ كال دبودجى دجزو په باره كي.

۵- ۲۳ لمبر تصويب دميزان په ۲٤ نيټه، دپست دمحصولاتو داصولنامى د ٦ مادى تعديل او دتلگراف داصولنامى د ۲٦ مادى تعديل چه د زيات غور لپاره د شورا دقوانينو كميسيون ته وړاندى شي.

٦- ۲٤ لمبر تصويب د ۱٤ كال دميزان په ۲٤ نيټه ، د تالقانو د لوى حكومت په باره كي چه اعلي حكومت ته ئي ترقي كړېده دضميمى په نوم چه ٤ برخى لرى.

۷- ۲۵ لمبر تصويب د ۱٤ كال دميزان په ۲٤ نيټه، دخپلواكى دجشن د رخصتي

«بقيه در صفحه ۹۷»

گران ټولواك اوجلالتمآب هنريش لوبكه دآلمان دفدرالي جمهوريت جمهور رئيس كوم وخت چه همايوني ذات اوعلياحضرته معظمه ملكه دكلن اوبن هوايي ډګرته ورسيدل د احترام ګارد معاينه فرمايي

همایونی معظم اعلیحضرت د بن او کلن په هوایی ډګر کښی له مستقبلینو سره روغبړ کوی

# داعیانو د عالی مجلس تشکیل

رئیس . . . . . . . . .
معین ښاغلی حافظ عبدالغفار
د مجلس غړی « عبدالحکیم مشرقیوال
« « « محمدامین خوګیانی
« « « خواجه جانګل
« « « ایشان امان الدین
« « « نظرمحمد زرمتی
« « « آخند زاده محمد رسول قندهاری
« « « عبدالستار
« منشي « میرزا محمود

داعیانو د عالی مجلس معین
ښاغلی حافظ عبدالغفار

---

# داعیانو د عالی مجلس فعالیتونه

د قانونی لوایحو او تشکیلاتو پروژه چه د وزارت خانو او مربوطو ادارو له خوا ترتیب او د ملی شورا او د وزیرانو د عالی مجلس له تصویب نه وروسته د اصولی مراتبو د طی کولو لپاره د ۱۳٤۱ کال د سنبلې د میاشتی څخه تر ۱۳٤۲ د جوزا د میاشتی پوری داعیانو مجلس ته را رسیدلی او د غور او سنجش نه وروسته تصویب شویدی په لاندی ډول دی:

۱ـ د نښانونو او مدالونو د اصولنامی د (۷٤) مادی تعدیل چه په نوموړی تعدیل کی د همایونی اعلیحضرت د امضا په عوض پادشاهی مهر قبول شویدی.

۲ـ د محاکمو د تشکیل او د ملکي مامورینو د محاکماتی د اصول د اصولنامی د لومړی مادی تعدیل.

۳ـ د ترافیکو د اصولنامی د ۲۰ مادی تعدیل.

٤ـ د ملکی مامورینو او عسکری منصبدارانو او منسوبینو د شتو او د املاکو د ثبت اصولنامی پروژی په باره کې.

۵- دافغانستان دشاهي دولت او دایران د شهنشاهی دولت تر منځ ترانزیتی موافقت نامه چه ۱۵ مادی لری د ۱-۲-۳ - پروتوکول او ددواړو مملکتو دورکړی دموافقت نامی سره .

۶- دملکی تقسیماتو دضمیمی په باره کې

۷- دافغانستان بانك داساسنامی د۹ ۱مادی تعدیل .

۸- د بندیانو دمکافاتو او مجازاتو اصولنامی د ۱۹ مادی تعدیل .

۹- دمځدره دواګانو دیوواحد تړون په باره کې او دتړون دترجمې سوا د چه یو پنځوس مادی لری .

۱۰- دافغانستان دپادشاهی حکومت او دپولیند دجمهوری حکومت تر منځ هوایی حمل ونقل موافقت نامه .

۱۱- دمحاسباتو ددیوان دپلټنی داصولنامې پروژه چه ۳۰مادی او پنځه فصلونه لری دهغی دوو جملو سره چه د۳ فصل په ۱۱ ماده او د٤ فصل په ۲۷ ماده کښې دملی شورا له خوا په کی زیاتوالی راغلی دی .

۱۲- دکجکی اوارغنداب دبند دلاندی مځکو دپاره داوبوخرڅولو دپروژې په باره کښی چه ۶ مادی لری .

۱۳- دعسکری مکلفیت داصولنامی ددوهمی مادی د تبصری او د۱٤ مادی دتبصری دتعدیل په باره کې .

۱٤- دماموړینو د حاضری او رخصتی د اصولنامی په ۳۸ ماده تبصره .

۱۵- داجباری کار د لغو کولو د۱۰۵ لمبر مقاولی په حقله چه ۱۰ مادی لری او۱۰۳ توصیه لیك چه ۷ مادی لری اودیوی هفتی داستراحت مربوط ۱۰۶ مقاوله نامه چه ۲۱ مادی لری .

۱۶- د۷مادی په موجب دافغانستان دشاهی حکومت او دعربی متحد جمهوریت دحکومت ترمنځ دتادیاتو اوتجارتي موافقت نامه .

۱۷- دعامه امنیت اومنفعت پەخلاف دمامورینو اومجرمینو دجزا داصولنامي دپروژی په باره کي چه۱۹ مادی لری .

۱۸- دقطغن دولایت پوری تړلي دتالقانو دلوی حکومت تشکیل چه دنوموړی ولایت څخه بیل او اعلي حکومت ته ئي ترقي ورکړیده .

۱۹- دکار دبین المللي سازمان داساسنامي د۷ مادی دلومړی ، دوهمې ، څلورمې فقری دموضوع تعدیل .

۲۰- دذروی قوی د بین المللي اداری داساسنامی د ۳ جزوی د۶مادی دالف دفقری دتعدیل موضوع چه له ۲۳ غړو څخه یې ۲۵ غړو ته ترقي ورکړیده . «ختم»

همایونی معظم اعلیحضرت او علیاحضرته معظمه ملکه په هغه میلمستیا کښې چه د بناغلی هانریش لوبکه

د آلمان د فیدرالی جمهوریت رئیس او محترمی میرمنی یې له خوا هغوی ته ورکړه شوې وه.

همايونى معظم اعليحضرت او عليا حضرت معظمه ملكه په هغه ميلمستيا كښې چه د فدرالى آلمان په جمهوريت كښې
د هامبورگ د ښاروال له خوا د هغوى په وياړ ترتيب شوې و

# دصدارت عظمی دلوړ مقام تشکیل

| | |
|---|---|
| صدراعظم | ښاغلی دکتور محمد یوسف |
| لومړی مرستیال | » عبدالله ملکیار |
| دوهم مرستیال | » دکتورعلی احمد پوپل |
| دوزیرانو دعالی مجلس منشی | » سید قاسم رښتیا |
| ددارالانشاخلورمه رتبه مدیر | » ....... |
| دمخصوص قلم مدیر | » محمد عالم نوابی |
| دلیك مدیر | » غلام جیلانی |
| ددار الانشأ پنځمه » » | » عبدالله |
| اداری لوی مدیر | » تاج محمد |
| مرستیال | » عبدالرزاق |
| دماموریتو مدیر | » عبدالوکیل حمید |
| دآرشیف مدیر | » علی حیدر وردکی |
| اداری مدیر | » میر محمد حسن |
| دخدماتو مدیر | » عبداللطیف |
| دمحاسبی مدیر | » ........ |
| دعمومی محاسباتو دپلټنی رئیس | » ....... |
| مرستیال | » عبدالحمید |
| مشاور | » ....... |
| دلیك مدیر | » عبدالنبی |
| دمدعی العمومیت مدیر | » ...... |
| دخپرونو اوتدقیق مدیر | » اکرام الدین |
| داحصاییی مدیر | » گل محمد کوهستانی |
| دکرحنده پلټنی آمر | » محمد زمان |
| څلورمه رتبه غړی | » ۹ تنه |
| پنځمه » » | » ۱۱ تنه |
| **دپرو گرامو د ترتیبولو مدیر** | » .......... |
| دراپورونو دمراقبت مدیر | » محمدجان ژوبین |
| دبرآوردی مدیر | » ۲ تنه |
| ډگروال | » محمد آصف |
| ډگرمن | » محمد یونس |
| جگړن | » ۲ تنه |
| دتصفیی آمر | » عبدالعلی |
| دڅلورمه رتبې غړی | » ۵ تنه |
| د پنځمه » » | » ۵ تنه |
| دمخزن مدیر | » ....... |
| دالمپیك رئیس | » محمدفاروق سراج |
| فنی مدیر | » نور محمد |
| اداری مدیر | » محمد کبیر |
| دارتباطو مدیر | » یارمحمد |

# د ښاغلي صدراعظم ډاکټر محمد یوسف د حکومت کرنلاره

## ګرانو وطنوالو!

په داسې حال کښې چه د صدارت عظمی د رنه وظیفه په غاړه اخلم غواړم چه د نوي حکومت د خطمشي په شاوخوا کښې تاسو سره خوخبرې وکړم او د هغې په سر ته رسولو کې چه همدا اوس د وزیرانو د هیئت په لومړۍ غونډه کښې تصویب شوي دي تاسو خبر کړم .

څرنګه چه وطنوال خبر دي والاحضرت سردار محمد داؤد چه څه د پاسه ۹ کاله د صدارت عظمی مهمه وظیفه په غاړه درلوده او دا وظیفه یې په ډېر ښه ډول د وطن په ښه والي نه جدیت او کفایت تر سره کړه په دې ورځو کښې یې له خپلې وظیفې څخه استعفی وکړه د افغانستان د حیثیت او ملي ګټو د ساتلو په لاره کښې د افغانستان د اجتماعي او اقتصادي ښېګڼو د لوړوالي او د داخلي او خارجي سیاست د متینو اساساتو د پاره د سردار محمد داؤد ستر خدمتونه دومره واضح او ځلانده دي چه شرح او بیان ته اړه نه لري او د افغانستان په تاریخ کښې د دوي د تصدۍ د دورې د افتخار نه هېرېدونکو یادګارونو په حیث ثبت شوي دي .

زه یو ځلې غواړم په دې وخت کښې چه د غه والاحضرت د ادرنده وظیفه پرېږدي د یوه افغان او داسې همکار په حیث چه همېشه مې د هغوی له لارښوونو څخه استفاده کړې ده دوالاحضرت حضور ته د خپلې ډېرې خوشالۍ مراتب وړاندې کړم او د لوی خدای له دربار د هغوی روغتیا او نېکمرغي وغواړم .

زه باور لرم چه ټول افغان ملت زما سره د دې خوښۍ په عرض کولو او خالصانه دعا کښې شریک دي .

د معظم ټولواک همایوني اعلیحضرت حضور چه لوړې آرزوګانې یې همېشه د یوې متینې او ترقي غوښتونکې نقشې په اساس د هېواد د وړاندې تګ او د چارو تحول ته متوجه دي ما ته افتخار و بښه چه د افغانستان نوې کابینه جوړه کړم دا افتخار په حقیقت کښې د هېواد ټولو ځوانانو ته عاید دی او زه خپله وظیفه ګڼم چه د دې لوړ اعتماد په نسبت خپله ډېره خالصانه شکریه د شهریاري ذات حضور ته عرض کړم !

ګرانو وطنوالو !

زموږ ګران وطن افغانستان د خپل تاریخ په ویاړلي دوره خصوصاً په معاصرو دورو کښې چه د بشر نوې تمدن په هغو کښې وده کوي له یو لړ ستونزو سره مخامخ

# ښاغلی ډکتور محمد یوسف صدراعظم

ښاغلی ډکتور محمد یوسف د ښاغلي محمد حسن زوی په ۱۲۹۳ کال کښې په کابل کې زیږیدلی او خپل علمی تحصیلات یې د نجات په لیسه کښې سرته رسولي دي. د بکلوریا د شهادتنامې د اخیستلو نه وروسته د عالي تحصیلاتو د زده کړې دپاره **المان** ته واستول شو او د ګوتینګن په پوهنتون کښې یې چه خپل تحصیلات **د فزیك** په شق کښې د دکتوری درجې ته ورسول بیا وطن ته راغی او د علومو په پوهنځی کښې د فزیك په درس ورکولو مؤظف شو، وروسته بیا په ۱۳۲۲ لمریز کال کښې د علومو د پوهنځی د ریاست کفیل مقرر او په عین حال کښې یې د فزیك او د ریاضیاتو د مضمونو درس هم ورکاوه، په ۱۳۲۶ کال کښې د پوهنې د وزارت د مسلکی تدریساتو په ریاست او په ۱۳۲۸ کال کښې د هغه وزارت د تدریسی معین په حیث مقرر او د ۱۳۳۱ تر نیمایی پورې په نوموړی عهده مصروف ؤ، وروسته له هغه په اروپا کښې د افغانستان د کلتوری او عرفانی څانګې د ارتباط د رئیس په حیث مؤظف او هغې خواته واستول شو.

په ۱۳۳۲ کال کښې د سردار محمد داؤد د افغانستان د صدراعظم په کابینه کښې د کانو د وزارت د کفیل په حیث وټاکل شو او له هغه وروسته په ۱۳۳۴ کال کښې د کانو او صنایعو وزیر مقرر شو. وروسته بیا د ۱۳۴۱ د کب په میاشت کښې د همایونی معظم اعلیحضرت له حضوره د صدراعظم په حیث مقرر شو.

**نښانونه:** د پوهنې د ریمه درجه او د سردار عالی د نښانونو په اخیستلو هم بریالی شوی دی.

ښاغلی ډکتور محمد یوسف په آلمانی او انګلیسی ژبو کښې ویل او لیکل کولای شی او له **عربی او** فرانسوی ژبو څخه هم په ښه شان استفاده **کوی**.

**مسافرتونه:** د هیواد مهمو ځایو ته او په خارج کښې یې آلمان او نورو ډیرو هیوادو ته مسافرتونه کړی دی.

شو چه زمونږ پلرونه دیوی دینی او ملی فریضی په حکم له هغو سره دمقابلی دپاره چمتو شول په هغه وخت کښی چه په دنیا لوی انقلاب خپور شو او د دنیا دهیواد وحالات یی یو په بل پسی د علم او نوی تخنیك له لاری بدلول زمونږ په هیواد کښی دوطن ددفاع مقدسی وظیفی ددی موقع ورنکړه چه ددی هیواد خلك لکه څرنګه چه ښایی دخپلو مدنی، عرفانی او اقتصادی شتو نو د لوړولو کار تر سره کړی او د نوی تمدن په لویه لاره کښی له نورو هیوادو سره یو ځای ګام اوقدم واخلی.

نو نن چه دهغوی دمجاهداتو له برکته افغانستان ددنیا د آزاد وهیوادو په جرګه کښی خپل لایق مقام ساتلی او تر سره کړیدی په مونږ لازمه ده چه د تیرو زیانو د تلافی دپاره اقدام وکړو او په ډیر زیاراوکوښښ هغه فاصله لنډه کړو چه دعصری تمدن له نظره زمونږ دهیواد او ددنیا دنورو وړاندی تللو ملکو ترمنځ تولید شوی ده تر څو چه دخدای په مرسته یوه ورځ ددی وطن زامن دغه تفاوت بیخي لهمنځه یووړلای شی.

دا هغه درنده اوو یاړلی وظیفه ده چه د تیری کا بینی په دوره کښی شروع شوی ده او باید په زیاتو هغو ابتکاراتو او تحولاتو سره زمونږ له خوا تعقیب شی چه دعصر مقتضیات او د حالاتو انکشاف یی ایجابوی.

داو طبقه ما اوزما همکاران و سره له دی چه دلاری په سختوالی او د تو ښی په لوړوالی پوره خبر یو منلی ده او هیله لرو هغه چه دخلکو دټولو طبقاتو په اتفاق په تیره بیا دهیواد د ځوانی او منوری طبقی په ملګرتوب چه افغانستان تاریخ دتحول او انتقال په دی دوره کښی تر ټولو ستر ملی مسئولیت دهغی په غاړه ږدی تر سره کړو.

ښکاره ده چه دداسی مهمی او ستری وظیفی دسرته رسولو دپاره دیوی اساسی او ښکاره خط مشی غوره کولو ته اړه لرو چه زمونږ فعالیتونه په صحیح استقامت سم کړی او مطلوب هدف ته یی نژدی کاندی.

ددی خط مشی ستر مطالب چه دمعظم ټولواك همایونی اعلیحضرت، دافغانستان د خلکو آرزوګانی او دزمانی ایجابات یی منبع ګڼل کیږی په دی ډول خلاصه کیږی:

۱- داسلام دحلانده دین ابدی او نه فنا کیدونکی لارښودنی تل زمونږ داعمالو سرمشق او لارښوونکی دی.

۲- ترټولو ستره او لویه وظیفه چه مونږ ورته ځان مکلف ګڼو د افغانستان دخپلواکی دخاوری دتمامیت او حقه حقوقو او ګټو ساتل دی.

نوی حکومت دپخوانی حکومت په شان دغه مقدسه وظیفه دخپلو ټولو وظایفو په سر کښی ټاکلی او خپل ترټولو ښه زیار به هغی ته وقف کړی:

۳ـ داقتصاد په ساحه کښي دپلان جوړولو او رهبری شوی اقتصاد د سیستم داقتصادی بنیې د تقویه کولواودهیواد دخلکو دژوندانه دسویې دلوړولو دپاره دوام کوی ، ډیر زیار به و باسو چه روانی پروژی او ددوهم پنځه کلن پلان نوی پروژی دخپل مالی توان اوامکاناتو په حدودو کښی تطبیق اوعملی کړو. انفرادی تشبثات به دهغه اقتصادی سیاست په چوکات کښی چه غور ره کړی مو دی نو رهم حمایه او تشویق شی .

٤ـ دهیواد داداری په طرز کښی به دديمو کراسی دتطبیق دپاره دهغو پیشنهادو له مخی اساسی او مناسب بدلون راولو چه دپخوانی صدراعظم والا حضرت سردار محمد داؤد له خوا ملوکانه حضورته وړاندی شوی او اساساً دشاهانه ذات له خوا منل شویدی .

حکومت داتحول چه اصلی مقصد یی دټولنی سلامتی او هدف یی په اجتماعی او حیاتی شئونو او دقوا نینو دتدوین په چارو کښی خلکوته دنیاتی برخی ور کول دی چه اجتماعی عدالت او د فردی حقوقو مصونیت تر سره کوی یومهم ضرورت او دهغهٔ عصر له ایجاباتو سره مطابق بولی چه یکښی ژوند کوو .

حکومت تصمیم لری چه دی مبادیوته چه دهیواد دخلکو په راتلونکی سر نوشت کښی خاص ارزښت لری دخپلو نورو وظایفو په سلسله کښی اهمیت ورکړی او سمدستی دمتخصصینو او پوهانو په همکاری خپل مطالعات په دی باره کښی شروع کړی او تر هغی ژوری کتنی او غور وروسته چه دموضوع اهمیت یی ایجابوی دقانونی مراحلو له ترسره کولو ور وسته دهغه دتطبیق پروګرام تر اجرا لاندی ونیسی .

حکومت به دبیطرفی عنعنوی سیاست او په ډلو کښی د نه ګډون او دآزاد قضاوت لاره چه مقصد یی دهیواد دخپلواکی ، ملی حاکمیت او دخاورې دتمامیت ساتل او دمتقابل احترام او اعتماد په اساس له ټولو خلکو او ولسونو سره د دوستانه علایقو ټینګول دی او له دی لاری سولی ته خدمت کول او دهغی په دنیا کښی په سوله کښی ژوندا وزمونږ دهیواد د انکشاف او دخلکو دژوندانه دسویې پېه والی دی تعقیب کړی .

دملګرو ملتو منشورته پابندی ، دبشرد حقوقو داعلامیې احترام او دسر نوشت دټاکلو دحق او داستعمار او دهغه دبقایاو دلغو کولو طرفدا ری په مختلف شکل سره دد نیا په هرګوټ کښی چه وی او بین المللی همکاری دافغانستان د سیاست له اساساتو څخه دی .

دافغانستان حکومت د باندو نګ د کنفرانس اسا سات او په بلګر اد کښی دبیطرفو هیوادو دټولنی اعلامیه چه مقصد یی دولسونو تر منځ ددوستی او ښه تفاهم دپیدا کولو او په روغه ددولتونو ترمینځ ګډ ژوند او جنجالی مسئلو دحل کولو

ښاغلی سردار محمد داؤد صدر اعظم هغه وخت چه نوي صدر اعظم ښاغلی دکتور
محمد یوسف ته دعظمی صدارت دعهدې مبارکی ورکوي (د ۱۳٤۱ د کب میاشت)

د افغانستان د مطبوعاتو نمایندګان هغه وخت چه د ۱۳۴۲ کال د ورې په میاشت کښې د صدارت عظمې په ماڼۍ کښې د افغانستان د نوي صدراعظم ښاغلي دکتور محمد یوسف سره ملاقات وکړ .

دپاره له قوي څخه دصرف نظر کولو له لارې په دنیا کښې دسولې تر سره کول دی
یوځل بیا تایید وي .

دافغانستان حکومت دخپلو خلکو دآرزو ګانو په بنا د پښتونستان د خلکو
دروامطالباتو همیشه طرفداري کړې او نن هم په کلکه د هغوطرفداري کوي . زمونږ
آرزو ګاني د پښتونستا نیو و رونږو دهیلو په مطابق د هغوی د ملي آمالو تر سره
کول دي او د پښتو نستانو ورو نو د دی مشروع حق د تر سره کولو د پاره به
دافغانستان کوښښونه په سوله غوښتونکو لار و د دوام وکړي .

هیله لرو چه د پاکستان حکومت به واقع بیني او د ننني نړۍ دمقتضیاتو سره سم
د پښتونستان د خلکو دملي آمالو او آرزو ګانو احترام وکړي .

له دوستو دولتو سره به دافغانستان مناسبات دملګرو ملتو د منشور د اصول
په اساس په متقابل احترام او اعتماد اوصا د قانه همکاري د دوستي په تقو یې او
پر اختیا ولاړ وي .

دخوشحالي ځای دی چه دافغانستان روابط له دوستو دولتو سره د ملي ګټو
سره سم او د بین المللي اساساتو سره موافق په زړه پوري انکشاف کوي او توسعه
مومي .

افغانستان د اسلامي مملکتو سره چه دیني او تهذیبي مزو سره نږدي کړی یو
خپلو منا سبا توته خاص ارزښت ور کوي او د ورور ګلوي د دغو علا یقو د زیاتی
تقویې په لیاره کښې یې کوښښ کړی دی او دغه کوښښونه به دوام ولري ،

افغانستان تل له ګاونډیو هیوادو سره دخپلو مناسباتو دساتلو او ټینګوا لی
په لیاره کښې کوښښ کړی دی او په آینده کښې به هم د دغې هیلې د پاره چه په ښه
ګاونډیتوب ولاړه ده کوښښ وکړي .

د افغانستان مناسبات زمونږ د دوست او ګاونډي هیواد اتحاد جماهیر شوروي
سوسیالیستي سره له اوله څخه د ښه ګاونډیتوب او متقابل احترام له مخې روان دي
او دغه علایق په ور وستیو کلو کښې په نږدې تماسونو او د دواړو هیوا دو نو
دمشرانو په تګ راتګ او ګټو رو او په زړه پوري فني ، اقتصادي او فرهنګي
مرستو سره د هیو اد دملي ګټو سره سم پراخ او ټینګ شوي دي . دافغانستا ن حکومت
به د یخوا په شان خپلو کوښښونو ته ددغوښو روا بطو د ساتني ، تقویې او پراختیا
دپاره دوام ورکړي .

دایران له ګاو نډي هیواد سره دافغانستان دوستا نه او دورورګلوي مناسبات
په زړه پوري په ښه نیت او د ښه ګاونډیتوب دروابطو په اساس دوام لري .

افغانستان ته داعلیحضرت دایران دشا هنشاه راتګ او د دوی جمیله کوښښو نه
او د افغانستان په تر انزیټ کښې آسانتیا وی ددغو دو ومسلمانو ورو نړو هیو ادو
تر منځ د دو ستی علایق نور هم تقویه کړي دي .

له بل ګاونډي هیواد و لسی چین دجمهوریت سره دافغانستان روابط د ښه نیت او نیك ګاونډیتوب او متقابل احترام له مخی دوام لری او په وروستیو کلو نو کښی دغه مناسبات ددواړو مملکتو دمشرانو په مسافرت او دد وستی او متقابل نه تیری د تړون په لاسلیك سره زیات تقویه شوی دی او په دی وختو کښی ددواړو هیوادو ترمنځ د اوسنی سرحدد کرښی د رسمی تحدید او د سرحد تړون د لاسلیك د پاره موافقت چه په نظر کښی په نژدی آینده کښی عملی شی په دغه لیاره کښی یو بل مثبت ګام ګڼل کیږی .

دامریکا له متحدو ایالا تو سره دافغانستان دوستانه مناسباتو د ښه نیت او متقابل احترام په اساس انکشاف موندلی په فنی ، اقتصادی او فرهنګی مرستو او همکار یو سره دغه روابط پراختیا مومی .

دامریکا متحدو ایالتو ته د متحد ایالتو دجمهور رئیس جلالتمآب په بلنه

داعلیحضرت مسافرت چه په راتلونکی دو بی کی به وشی د دواړو مملکتو ترمنځ د روابطو په تحکیم او ټینګتیاکی بل مثبت قدم ګڼل کیږی ، دافغانستان حکومت به دامریکا دمتحده و ایالتو سره دخپلو دوستانه مناسباتو دساتنی تقویی او پراختیا دپاره خپلو کوښښو ته دوام ورکړی .

افغانستان خپلو روابطو ته له هغو هیوادو سره چه په یوه منطقه کښی ورسره اوسی تل خاص اهمیت ورکړی دی لکه چه دافغانستان او ددغو مملکتو ترمنځ دوستانه او رضائیت بښونکی روابط موجوددی .

دهند له جمهوریت سره دافغانستان مناسبات دعنعنوی دوستانه روابطو په اساس تل دنیك او دوستانه تفاهم سره ملګری دی .

داعلیحضرت همایونی په بلنه دهند دجمهور رئیس جلالتمآب نژدی راتلونکی مسافرت ددغو ښو روابطو په زیاته تقویه کی موثردی .

په خوا شینی سره باید وویل شی چه له پاکستان سره دافغانستان روابط دافغانستان د آرزو ګانو په خلاف او په دغه لیاره کی د کوښښو نو سره سره تراوسه پوری ندی ښه شوی هغه کشاله چه د پاکستان دحکومت د یواړخیز حرکت په اساس چه ددغو دوو هیوادو ترمنځ بی سیاسی روابط وشلول اوس هم روانه ده ، د توقع په خلاف هغه مفاهمه چه په نیویارك کی دعادی وضع داعادی دپاره ددواړو هیوادو دخارجه وزیرانو ترمنځ دایران ددولت په کوښښ شوی وه تراوسه لا د پاکستان د حکومت له خوا په ښه نیت سره نده تلقی شوی او بی نتیجی پاتی شوې ده .

مونږ په دغه زمینه کی دایران داعلیحضرت شاهنشاه د کوښښو نو موفقیت دهغه ښه نیت په اندازی پوری زیات مربوط ګڼو چه د پاکستان د حکومت له خوا په دغه لیاره کی ښکاره شی .

د افغانستان حکومت د هیواد د انکشافي پلانو په وړاندې بیولوکي د دوستو دولتو له بې غرضانه مرستو او همکارۍ څخه صمیمانه ممنونیت او قدرداني کوي.

د شوروي اتحاد د سوسیالستي جماهیرو او د امریکا د متحده ولایاتو دویلو وړ مرستو نه علاوه چه تل په زړه پورې او د تقدیر وړ دي د المان د فدرالي دولت دوستانه مرستې چه مخ په زیاتیدو دي د خوښۍ موجب او د یادولو وړ دي.

د نورو دوستو مملکتو له همکارۍ او مرستو څخه هم صمیمانه امتنان کوو.

د افغانستان حکومت هیله لري چه دغه مرستې او همکارۍ په آینده کې هم دوام او پراختیا ومومي او د نیك تفاهم او ښو مناسباتو د تقویې په لیاره کې چه د دغو دوستو دولتو سره وجود لري له پخوانه زیاتې ګټورې او موثرې واقع شي.

د افغانستان حکومت د ملګرو ملتو د اختصاصي موسسو مساعدت او همکارۍ چه تر اوسه پورې شوېدې تقدیروي او دوام او پراختیا ئې ګټوره او په زړه پورې ګڼي.

په بین المللي ساحه کې د افغانستان د حکومت د سیاست هدف په ملګرو ملتو او په نورو بین المللي ټولنو کې د پخوا په شان د هیواد د ملي ګټو ساتنه او د عمومي سولې په لیاره کې خدمت او د بین المللي همکارۍ د پاره د زیات تفاهم ایجاد دولدی، د دغه مطلب په نظر کې نیولو سره به د افغانستان موقف د هغو مسئلو په مقابل کې چه د نننۍ نړۍ ورسره مخامخ ده د تل په شان په آزاد قضاوت ولاړ وي او د افغانستان حکومت به هر قدم چه له هرې ناحیې څخه د با دوامه سولې د ترسره کولو په لیاره کې واخیستل شي وستایي.

داوو د حکومت د خط مشي اساسي ټکي.

زمونږ د کامیابۍ او پرمختګ درجه چه د دغه خط مشي په تعقیب او تطبیق کښې په تیره بیا پدې لحظه کې چه دیوه تحول په درشل ولاړیو د ملت د ټولو وګړو په استقبال او مرسته پورې اړه لري. مونږ ټولو افغاني نارینه ؤ او ښځو د معارف منسوبینو، د دولت مامورینو او د هیواد ټولو وطن دوستو پوهو زلمیانو ته بلنه ور کوو چه په دغه لوی اقدام کښې زمونږ سره ګډون وکړي او د دغې عالي وظیفې په سرته رسولو او ګډ مسئولیت کښې چه نن به ئې د کلونه کلونه د وطن په آینده ژوندکې باقي پاتې شي، له حکومت سره مرسته او ملګرتیا وکړي.

د خدای په یارۍ او د خلکو د مرستې په اعتماد د خپل رعیت پالونکي او ترقي غوښتونکي پادشاه په ارشاد او لارښوونه په کار پیل کوو. (ومن الله التوفیق)

IIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIIII

# د خارجه چارو وزارت تشکیل

وزیر — ښاغلی دکتور محمد یوسف ( صدر اعظم )
مرستیال — « نوراحمد اعتمادی

**مشاورتی کابینه**

د سفیر کبیر په رتبه کښې
د مختار وزیر « « . . . . .
د رمزاو مخصوص قلم لوی مدیر
ښاغلی محمد نعیم یوسفی

**سیاسی معین** . . . . . .

سیاسی لوی مدیر . . . . .
د سیاسی روابطو لوی مدیر
ښاغلی عطاوالله ناصر ضیاء
د ملګرو ملتو او د بین المللی
روابطو لوی مدیر
ښاغلی حلمی محمود غازی
د اقتصادی روابطو مدیر
ښاغلی محمد یونس رفیق
د فرهنګی روابطو لوی مدیر
ښاغلی سید مسعود پوهنیار
د معاهداتو او وثایقو مدیر . . . . .

**اداری معین** . . . . . . .

د تشریفاتو رئیس . . . . .
اداری لوی مدیر — ښاغلی عبدالرزاق ضیایی
د تابعیت او قونسلګری لوی مدیر — « غلام محمد نیکزاد
د ویزی لوی مدیر — « . . . . .
د مامورینو لوی مدیر — « عبدالغنی

د خارجه چارو د وزارت مرستیال
ښاغلی نوراحمد اعتمادی

## په باندنیو هیوادو کښی دافغانستان دسیاسی هیأتونو رئیسان

په نوی ډیلی ، کتمندو ، کولمبو او رنگون کښې افغانی لوی سفیر او په تایلند (بنکاك) کښی مختار وزیر جنرال محمد عمر .
په واشنگټن اومکزیك کښی افغانی لوی سفیر اوپه برازیلیا او بوینس آیرس کښی مختار وزیر دکتور عبدالمجید .
په ملگروملتو کښی دافغانستان سفیر کبیراودایمی نماینده ، ښاغلی عبدالرحمن پژواك .
په ملگروملتو کښی د افغانی نمایندگی مستشار او مختار وزیر دکتور عبدالحکیم طبیبی .
په انقره کښی افغانی لوی سفیر ډگر جنرال سید حسن .
په تهران کښی افغانی لوی سفیر ښاغلی محمد عثمان امیر .
په ماسکو اوستوکهلم کښی افغانی لوی سفیر او په بخارست او هلسنکی کښی مختار وزیر ښاغلی عبدالحکیم شاه عالمی .
په لندن کښی افغانی لوی سفیر او په هاگ کښی مختار وزیر ښاغلی محمد کبیر لودین .
په بن کښی افغانی لوی سفیر او په برن کښي مختار وزیر ښاغلی دکتور غلام فاروق .
په قاهره ، آتن او اکرا کښی افغانی لوی سفیر او په بیروت او خرطوم کښی مختار وزیر ښاغلی غلام محمد سلیمان .
په جده کښی افغانی لوی سفیر ښاغلی محمد قاسم شریف .
په بغداد کښی افغانی مستشار او مختار وزیر ښاغلی غلام حسن صافی .
په جکارتا کښی افغانی لوی سفیر ښاغلی عبدالحمید عزیز .
په پیکنگ او اولن باتور کښی افغانی لوی سفیر ښاغلی محمد شعیب مسکینیار .
په توکیو کښی افغانی لوی سفیر .....
په کراچی کښی افغانی منتخب لوی سفیر ښاغلی محمدهاشم میوندوال .
په روم کښی افغانی لوی سفیر او په مادرید کښی مختار وزیر ښاغلی انجنیر محمد کبیر .
په پاریس کښی افغانی لوی سفیر او په بروسل کښی مختار وزیر ښاغلی اسدالله سراج .
په بلگراد اوصوفیه کښی افغانی لوی سفیر جنرال محمدعارف .
په وارسا کښی افغانی لوی سفیر ښاغلی میر محمد یوسف .
په پراگ او بوداپست کښی د افغانی لوی سفارت موقتی شارژ دافیر ښاغلی محمد عظیم امینی .
په مشهد کښی افغانی جنرال قونسل ښاغلی عبدالقیوم .
په نیویارك کښی افغانی افتخاری قونسل ښاغلی صلاح الدین طرزی .
په پیښور کښی افغانی قونسل ښاغلی سید تاج الدین .
په کویټه کښی افغانی قونسل ښاغلی محمدایوب عزیز .

(پاتې په ٤٧٠ مخ کښې)

# توسعهٔ روابط خارجی افغانستان

حکومت افغانستان توسط وزارت امور خارجه در ظرف نیمه اخیر سال ۱۳۴۱ و نیمه اول سال ۱۳۴۲ برعلاوه اینکه یك سلسله مجاهدات در شقوق مختلف از قبیل تهیه و ترتیب معاهدات وتصویب آن از طرف شعبات ذیعلاقه افغانستان باکشورهای دوست نموده در راه توسعه روابط خارجی نیز اجرا آتی بعمل آورده است .

## اعزام نمایندگان سیاسی افغانستان به کشور های مختلفه :

۱ـ تعیین وتقرر شاغلی محمد شعیب مسکینیار بحیث سفیر کبیر اعلیحضرت همایونی در اولانباتور ( پایتخت مغلستان ) بتاریخ ۱۲ سنبله ۱۳۴۱ .

۲ـ تقرر شاغلی ادل بیش سفیر کبیر مغلستان در دهلی جدید بحیث سفیر کبیر آنکشور بدربار کابل بتاریخ ۲۸ میزان ۱۳۴۱ .

۳ ـ صدور اگریمان شاغلی یادونات خانال سفیر کبیر نیپال در دهلی بحیث سفیر کبیر آنکشور بدربار کابل بتاریخ ۱۹حوت ۱۳۴۱ .

٤ـ تقدیم اعتماد نامه شاغلی سیت کوابلا انتونی های کمشنر گانا در دهلی بحیث سفیر کبیر گانا درکابل بحضور اعلیحضرت معظم همایونی بتاریخ ۲۲جوزا ۱۳۴۲.

٥ـ تعیین و تقرر شاغلی محمد عمر سفیر کبیر اعلیحضرت معظم همایونی در دهلی بحیث سفیر کبیر اعلیحضرت درکتمندو (پایتخت نیپال) بتاریخ ۲۳ جوزای ۱۳۴۲

## مسافرت رؤساو شخصیت های بزرگ افغانی درکشورهای خارجی

شاغلی سردار محمد نعیم وزیر امور خارجه افغانستان و معاون دوم صدارت عظمی به حیث رئیس هیأت افغانستان در هفدهمین دورهٔ مجمع عمومی در نیویارك ( ماه سنبله ۱۳۴۱ )

## مسافرت رؤساوشخصیت هایبزرگ کشور های دوست به افغانستان

۱ـ نظر بدعوت اعلیحضرت معظم همایونی، اعلیحضرت محمدرضا شاهنشاه ایران بتاریخ ٤ اسد ۱۳۴۱ وارد کابل شدند و به حیث مهمان شاهانه الی ۷ اسد ۱۳۴۱ درافغانستان اقامت داشتند .

۲ـ نظربدعوت اعلیحضرت همایونی، شاغلی داکتر سروپیالی راداکرشنان رئیس جمهور هند بتاریخ ۲۰ ثور ۱۳۴۲ وارد کابل شدند والی ۲۶ ثور بحیث مهمان شاهانه در افغانستان اقامت داشتند .

# افغانستان و هفدهمین دورهٔ مجمع عمومی ملل متحد

## (سپتامبر سال ۱۹۶۲ـ سنبله ۱۳۴۱)

ریاست هیأت افغانستان را در هفدهمین اجلاسیهٔ مجمع عمومی بناغلی سردار محمد نعیم وزیرامور خارجه ومعاون دوم صدارت عظمی آنوقت به‌عهده داشت. معاون رئیس هیئت بناغلی پژواك، کمیتهٔ سیاسی اعضا، دکتور طبیبی کمیتهٔ مخصوص سیاسی وکمیتهٔ حقوقی دکتور فرهادی کمیتهٔ اقتصادی و مالی بناغلی فیض احمد ذکریا، کمیته قیمومت بناغلی حسرت کمیتهٔ بودجه واداره بناغلی عبدالصمد غوث کمیتهٔ فرهنگی بشری و ثقافتی. هیئت افغانستان درین دوره باساس سیاست عنعنوی کشور درموضوعات بین المللی حصه گرفت و نظر به‌قضاوت آزاد و بیطرفانه‌ازهمه پیشنهاد های که برای صلح وامنیت دنیا انکشاف درزندگی مردم دنیا و بالاخره تقویهٔ رول موسسهٔ ملل متحد مفید بود پشتیبانی کرد. رئیس هیئات افغانستان طی بیانیهٔ که درجلسهٔ کاملهٔ مجمع عمومی ایراد فرمودند موقف کشور را درموضوعات مختلف بین المللی کا مطرح بحث مجمع عمومی هفدهم بود شرح دادند وتمنیات حکومت افغانستان‌را بحیث یك کشور صلح دوست برای پایداری صلح درجهان وحسن روابط بین المللی ابراز داشتند که ما هر نکتهٔ آنرا دربارهٔ موضوعاتیکه درذیل به ملاحظه میرسد بحیث موقف حکومت افغانستان به مطالعه خواهم رسانید.

### فضای بین المللی در آغاز جلسه:

هفدهمین دورهٔ مجمع عمومی موسسهٔ ملل متحد بتاریخ ۱۸ سپتامبر ۱۹۶۲ در نیویارك آغاز گردید وتا بتاریخ ۲۰ دسامبر ۱۹۶۲ خاتمه یافت.

این جلسه برخلاف شانزدهمین اجلاسیهٔ مجمع عمومی دریك فضای نسبتاً آرام افتتاح گردید زیرا ازیکطرف اتفاق نظر به‌یك شخص که کرسی منشی عمومی ملل متحد رااشغال کند وجود داشت و آن‌اوتانت بود که‌بعد ازیك‌سال تجربه به‌اتفاق آرا برای پنج سال بحیث منشی عمومی انتخاب گردید وازطرف دیگر در بحرانیکه ملل متحد ازنقطهٔ مالی بآن مواجه‌شده بود باثر تصویب توزیع اسناد قرضهٔ ملل متحد تخفیف بعمل آمده ووضع ملل متحد درکانگو که انظار جهان‌را بخود جلب کرده بود وهرآن لطمهٔ برموجودیت این‌موسسهٔ جهانی‌وارد میساخت ویکی ازپرماجراترین مسایل در مقابل ملل متحد قرارداشت نظریه پلان‌های اوتانت‌راه‌حلی بخود اختیار میکرد ومعلوم‌میشد که‌کشورهای ذیعلاقه‌درکانگو آرزومند مصالحهٔ موضوع میباشند. گرچه در روز های بعد ازآغاز جلسهٔ هفدهمین وضع بین‌المللی نظربه‌بحران کیوبا تیره گردید و شورای امنیت ملل متحد موضوع‌را برای رفع خطرجنگ واستقرار صلح بین المللی مورد مداقه قرارداد اما باوجود تیرگی اوضاع این‌فیصله نظر به‌مجاهدات مؤسسهٔ ملل متحد راه حلی بخود گرفت‌ورول این‌موسسهٔ جهانی یکبار دیگر بحیث وسیلهٔ مهم ایجاد حسن تفاهم بین کشورها و پشتیبانی صلح دردنیا عرض وجود کرد که این بذات خود بر پرستیژ مؤسسهٔ ملل متحد افزود.

کرد . همچنان متخصص مذکور درتسوید قانون کوآپریشن با حکومت معاونت کرده است .

## امداد نمایندگی نیروی ذروی بین المللی

باثر خواهش حکومت افغانستان درسپتمبر ۱۹۶۱ یک نفر متخصص فزیک ذروی از طرف نمایندگی نیروی ذروی بین المللی اعزام گردید که در پوهنځی علوم پوهنتون کابل تدریس و برای تأسیس یک لابراتوار فزکس ذروی درپوهنځی علوم کابل مشوره داده ودرمورد طرح یک پروگرام انکشاف نیروی ذروی درافغانستان باحکومت کمک میکند .

ضمن پروگرام عادی سال ۱۹۶۰ نمایندگی نیروی ذروی بهقیمت ۲۵۰۰۰ دالر سامان ولوازم لابراتوار فزیک ذروی به پوهنځی علوم طور کمک داده شد که به کمک متخصص اعزامی مؤسسه نصب گردیده وشاگردان درآنمشغول تحصیل و تجربه میباشند . متخصص مذکور درین مضمون نیز بهآنها درس میدهد . طبق پروگرام توسعه یافتهٔ مؤسسه طی سالهای ۱۹۶۱ و۱۹۶۲ بقیمت ۳۰۰۰۰ دالر سامان و لوازم دیگر هم به فاکولته دادهشده کههمه رسیدهاست . درخواست حکومت برای یک دستگاه رادیو کاز یوم یک داکتر صحی وبعضی سامان دیگر و یکعده فیلو شپ ها ازطرف نمایندگی بین المللی نیروی ذروی تحت مطالعه است . قیمت این درخواست جدید مجموعاً ۱۲۲۰۰۰ دالر حساب شدهاست .

. بههمکاری دو شفاخانه راجع بهتطبیق رادیو ایزو توپ هادر طبابت پیشرفت حاصل کرده وپوهنځی علوم پروژه نصب یک لابراتوار تدقیقاتی را درین زمینه روی دست گرفته است تاعلاوه ازشق طبابت ، تطبیق رادیو ایزو توب ها در سایر شقوق مثل بیولوجی وغیره نیز صورت بگیرد . قیمت این پروژه ۵۰۰۰۰ دالر خواهد شد وپروگرام عادی سال ۱۹۶٤ نمایندگی تاحال چندین فیلوشپ بهپوهنځی علومدادهشده کهقیمت آن تاحال به۶٤۰۰۰ دالر میرسد . مد نظر است تادر آیندهٔ قریب نیز چند فیلوشپ دیگر داده شود .

جمله قیمت سامان . لوازم وفیلو شپهای کهازطرف نمایندگی مذکور تاحال بهافغانستان داده شده بالغ به(۱۷۰۰۰۰)دالر میشود .

## معاونتهای یونسیف

یونسیف درانکشاف پروگرام های معاونت بهاطفال باحکومت افغانستان کمک کرده وسامان ولوازم طرف احتیاج رااز خارج وارد ومامورات افغانی را برای اجراء وانجام این پروگرام هاتربیه میکنند . پروگرام هایعمده شامل امحای ملاریا خدمات مادران وکودکان، خدماتصحیدهات ، تعلیم وتربیه است . یونسف تاحال تقریباً ۳۰۰۰۰۰۰ دالر بهافغانستان کمک نموده است .

مختصر فعالیت یونسیف ازجشن ۱۳۴۱ تاجشن ۱۳۴۲ قرارذیل است .

تعلیم وتربیه : تربیه معلمان مکاتب ابتدائی :۱۳۲۰۰۰ دالر

یونسیف قبول کرد کهبرای سال اول پروژه معاونت در سی بهشمول وسایل سمعی وبصری، لوازم دفتروکتابخانه . وموتر برای اکادیمی ومعاش پنج نفر متخصص یونسکو مبلغ ۱۳۲۰۰۰ دالررا بدهد .

تحت این پروژه یك دارالمعلمین مختلط تاسیس وتنهادرآن بحیث شاگرد ، معلم ومتخصص شامل کار خواهند شد . طی پنج سال اول ۲۷۵ نفرمعلم بغرض تربیهمعلمین فارغ خواهد شد . چون در نظر است کهتاسال ۱۹۸۰ عده دارالمعلمین ها به (٦٤) برسد لذا اکادیمی میخواهد تا آن وقت عدهٔ کافی معلم راتربیه نماید . دستهٔاول این معلم ها که برای تدریس در دارالمعلمین تربیه میشوند در سال ۱۹٦۵ فارغمی گردند وبه دارالمعلمین جدید یکه در کابل تأسیس میبابد شامل کار میشوند .

## امحای ملاریا : تخصیصیه سال ۱۹٦۳ مبلغ (۳۵۵٫۵۰۰) دالر

مجموع تخصیصه ۱۱۷۹۹۰۰ دالر

بمقابل (۳۵۵٫۵۰۰) دالر فوق به اندازهٔ (۱۰٦۳٫۰۰۰) پوندډی ، ډی ، تی (۷۵)فیصده . (۸) موتر ، ادویه ضد ملاریا ، سامان لابراتوار وآلهٔ دواپاشی خریداری وبه مؤسسهٔ مجادلهٔ ملاریا تسلیم داده شده است . مجادلهٔ علیه ملاریا بوقت مناسب آغاز شدهوتوقع میرود که۳۵۲۰-۷۳۲ نفربهمقابل ملاریا حمایهشده باشد .

## پروگرام تغذی:

یونسیف بغرض رفع احتیاجات تغذیصحی ازاول اپریل ۱۹٦۲ تا ۳۰جون ۱۹٦۳ بقرار شرح ذیل شیر خشك، سابون وویتامین آوبو زارت صحیه داده است تا درمراکز توزیع کابل وولایات کهعدهٔشان به(۷۰) میرسدبه اطفال ومادران توزیع گردد.

| اسم جنس | مقدار | حدمتوسط استفاده کنندگان در هرروز |
|---|---|---|
| شیرخشك سکیم | ۸۱۹۷٤۸پوند | ۲۷۳۲۵طفل ومادر |
| شیرکامل | ۷٤۹٦٤پوند | ۲۵۰۰طفل کمتر ازیکسال |
| سابون | ٦۵۸۱۳ | ۱۰۹۷۰طفل و مادر هرماه |
| ویتامین آو، د | ٤۹۱۵۰۰۰کپسول | ۱۳٦۵۰طفل ومادر |

## سرویس صحی دهات

برای سه مرکز صحی دهات یعنی یکاولنگ (بامیان). اشکاشم (بدخشان) و پنجوایی (قندهار) سامان و لوازم بشمول موترهای جیپ و یك اسپ ارسال شده .عدهٔ یونت های صحی که یونسیف بآن کمك داده است باین صورت به (۱۱) یونت رسید وروی همرفته ۵۵۲۰۰۰ نفر در حوزهٔ آنها زندگی دارند. سه مرکز جدید در چمکنی ، پنج آب و وردك که شامل (۲۰۰) قریه و ۱۵۰۰۰۰ نفرمیباشد در سال ۱۹۶۲ افتتاح شد .

موضوعاتی که درین مراکز انکشاف خواهد کرد عبارت است از تربیه کار گران دهات، کار گران توسعهٔ زراعت، القاح و نسلگیری حیوانات ، سرویس های بیطاری، تاسیس مراکز صحی، پیش برد حفظ الصحه محیطی، توسعهٔ تحصیلات دورهٔ ابتدایی و تعلیمات اساسی و فعالیت های زنان، توسعهٔ اقتصاد خانگی ، پلاننگ قریه ها و خانه سازی دردهات .

یونیسف برای این سه مرکز جدید متذکره سامان ، لوازم وموتر خریداری و به مرکز تربیهٔ گلزار معاونت مزید کرده است. تخم سبز یجات ادویهٔ ضدحشره و(۱۶۰) سیت ساده سامان برای پروگرام پیله وری نیز توزیع نموده است .

## مؤسسهٔ صحت عامه

در جنوری ۱۹۶۳ یونسیف منظور کرد که برای تربیهٔ انواع مختلف کار گران صحی بامؤسسهٔ صحت عامهٔ کابل کمك کند. مؤسسهٔ صحت عامه برای کارگران مختلفهٔ صحی بحیث یك مرکزمشوره کارخواهد داد. وکورس های تجدید معلومات دایر نموده وکارهای عملی رادرخود محل برای کارگران صحت عامه نمایش خواهدداد. لابراتوار تحقیقاتی آن برای همه مملکت کمك کرده واد ویهٔ وقایوی توزیع خواهد نمود. تاحال لوازم کتابخانهٔ، مجلات، لوازم وسامان برای تعلیمات صحی ، برای مکتب روغتیا پال و برای لابراتوار بمؤسسهٔ صحت عامه داده شده است. علاوتاً یونسیف (۳ ) عراده فولکسواگن، یکعراده بس (۲۰) نفری(۲)عراده جیپ ستیشن واگون یکعراده پکپ ترك وسه عراده موتر سایکل بمؤسسهٔ صحت عامه خواهدداد. تمام این هاتا اخیرسال ۱۹۶۳ بکابل مواصلت خواهد کرد .

## تربیهٔ دکتورها ، قابله ها ومتخصصان اطفال درپوهنځی طب

یونسیف برای انکشاف شاگردان طبی سامان ولوازم لابراتوار، سامان ولوازم شفاخانه وسرویس اطفال وما دران را داده است و(٤) عراده موترهم بدسترس مقامات مربوط گذاشته است که قیمت آنها به ۲٤۰۰۰ دالر بالغ میشود. به همکاری چندین مرجع یك ساحهٔ تعلیمات عملی درکابل بوجود آمده که شاگردان قابلگی،

پرستاری، طب وقایوی واجتماعی پوهنځی طب پوهنتون کابل در آن درس عملی می آموزند .

## مرکز اطلاعات ملل متحد

ارتباط این مرکز بامطبوعات کشور مثل سال گذشته بوجه احسن دوام داشته است. مطبوعات افغانی در بارهٔ امور ملل متحد علاقمندی تام گرفته علاوه از تبصره ومقالات ازطرف خود نشریه های راکه مرکز اطلاعات برایشان فرستاده نیز طبع کرده اند . بلیتن هفته وار آن حالا یکی ازستون هائی شمرده میشود که هر دوشنبه درروز نامهٔ اصلاح خوانندگان زیاد دارد. کابل رادیو علاوه ازنشر منظم پروگرام هفته وار راد یوئی این مرکز یك عده تیپ هاشامل بیانیه ها، مصاحبه ها و غیره را بزبان انگلیسی که از طرف مرکز اطلاعات فرستاده شده برود کاست کرده است .

ایام مهم مثل روز ملل متحد، حقوق بشر، روزصحت، هفتهٔ مجادله باگرسنگی وغیره ازطرف مرکز اطلاعات استقبال شده وعلاوه ازنشر مضامین واشاعه نشریه ها یك تعداد عکس ومضمون مربوط به ایام مذکوررا برای جرایدار سال نموده است .غرفهٔ ملل متحد درنمایشگاه سالانهٔ جشن استقلال مورد توجه قرارمیگیرد .

درمدخل عمارت جدید مرکز اطلاعات یك غرفهٔ نمایش ساخته شده که وقایع مهم بین المللی راازنگاه ملل متحد باتصویرو نوشته مورد نمایش قرارمیدهد. کتابخانه ادارهٔ اطلاعات مرجع ارباب تتبع قراریافته. مجلات و نشریه های ملل متحد را توزیع کرده فلم وفلم هاسترپ هارا بدسترس مکاتب وسینماها گذارده است .

همچنان ادارهٔ اطلاعات باگروپ های مختلف معلمان ومتعلمان بسویهٔ بالا مسائل بین المللی و نقش ملل متحد رادرآنها مورد بحث ومذاکره قرار داده وچگونگی اجراآت مؤسسه ونمایندگی های اختصاصی را شرح کرده است .

احصائیهٔ ذیل قسمتی ازکارهای نشراتی مرکز اطلاعات را نشان میدهد .

پروگرام (۱۵) دقیقه ئی هفته وار پشتو ودری دررادیو ۵۲ پروگرام

بلیتن هفته وار حاوی خبرهای ملل متحد ۵۲ بلیتن، پروگرام فوق العاده

رادیویی (روزملل متحد، روزحقوق بشر، جشن ستارگان و کنفرانس ساینس تکنالوجی) ٤ پروگرام.

اشاعهٔ مطبوعاتی ۱۳۸ اشاعه

رسالهٔ حقایق دربارهٔ ملل متحد، مقام زن، ملل متحد درافغانستان ۳ جلد همچنان یك تعداد دریکارد های جشن ستارگان که ازطرف کمشنر عالی ملل متحد برای پناهگزینان تهیه شده بود باهتمام این مرکز بفروش رسیده است . (پایان)

# دمالیې وزیراو دصدارت عظمی لومړی مرستیال
# ښاغلی عبدالله ملکیار

ښاغلی عبدالله ملکیار دمرحوم عبد الاحمد زوی په ۱۲۸۷ لمریز کال کښې زیږېدلی او په ۱۳۱۱ کال کښې داستقلال د لیسې څخه د فارغېدو نه وروسته دصدارت عظمی ددریمې څانګې دمدیر په حیث په وظیفه کښې شامل شو او په ۱۳۱۵ کښې په اروپا کښې دمبایعاتو دریاست دنماینده په حیث ټاکل شوی ؤ او په ۱۳۱۹ کښې دافغانستان بانك دریاست دمرستیال اواد ملی اقتصادد وزارت ددریم معین په حیث مقرر شو، په ۱۳۲۰ کال کښې دهرات دولایت دنایب الحکومه ګۍ په وکالت او بیا په ۱۳۲۳ کال کښې دهرات د ولایت دنائب الحکومه په حیث مقرر شو .

دمالیې وزیراو دصدارت عظمی لومړی مرستیال
ښاغلی عبدالله ملکیار

وروسته له هغه په ۱۳۲۷ کال کښې د همایونی معظم علیحضرت په فرمان سره ترفیعاً د مخابراتو دوزیر په حیث تعیین او په ۱۳۲۷ کال کښې دوزیر په رتبه بیا دهرات دولایت دنائب الحکومه په حیث تبدیل او په ۱۳۳۱ کښې دوزیر په رتبه دهیلمند اوارغند او دناوې دانکشاف دعمومی رئیس په حیث مقرر شو . وروسته له هغه په ۱۳۳۵ کال کښې دشهریاری حضور دفرمان په اثر د تجارت دوزیر په حیث انتخاب او په ۱۳۳۶ کښې تبدیلاً دمالیې دوزیر په حیث مقرر شو .

ښاغلی عبدالله ملکیار په ۱۳۳۷ کال کښې دهما یونی معظم اعلیحضرت له حضور شخه دسردار عالی د نښان په اخیستلو موفق شو او د ۱۳٤۱ د کب په میـا شت کښې د دکتور محمد یوسف په کابینه کښې یی دصدارت‌عظمی دلومړی مرستیال په حیث‌ترقی وکړه چه په عین‌حال کښې د مالیې د وزیر په‌صفت‌هم وظیفه‌اجراء کوی .

## دمالیې دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| وزیر | ښاغلی عبدالله ملکیار (دصدارتعظمی لومړی مرستیال) |
| معین | « محمد انور ضیایی |
| مشاور | « عبد الو هاب حیدر |
| دمخصوص قلم مدیر | « رسول داد |
| دمشاوریت آمر | « محمد غوث |
| دقوا نینو لوی مدیر | « میر عبدالصمد |
| دخپرونو مدیر | « اکبر شهرستانی |
| داجراآتو دتنظیم دمراقبت‌مرستیال | « دکتور محمد اسمعیل |
| « « « « | « عبد الرحمن |

### اداری ریاست

| | |
|---|---|
| دریاست کفیل | « ښاغلی‌محمد افضل شهیر |
| « مرستیال | « رجبعلی یگانه |
| دمامورینو مدیر | « محمد جان |
| داداری بودجې مدیر | « محمد اسمعیل |
| دمحاسبې مدیر | « تاج محمد |
| دحوا له جاتو مدیر | « محمد هاشم |
| دکنترول مدیر | « سید یاقوتشاه |
| ددفتر دارۍ مدیر | « عبد الرازق |
| دآرشیف مدیر | « محمد عظیم |
| دپانو دحفظیې مدیر | « عبدالغنی |
| دخد ماتو مدیر | « محمد نعیم |
| دخدمتو دتهیې مدیر | « محمد عثمان |

### دخزاینو ریاست

| | |
|---|---|
| رئیس | « ....... |

مرستیال
دمرکزی خزاینو مدیر
» » »
» پورونو »
» صکوکو
د تادیاتو لوی مدیر
» » مرستیال
غړی
د تادیاتو دواردااتو مدیر

## ددولتی تصد یولوی مدیر

لوی مدیر
مرستیال
»
داسعارو مدیر
غړی

## د بودجی ریاست

درئیس کفیل
مرستیال
د بودجی دقوانینو مدیر
» دخد متو
» » »
» » »
» ، »

## دمحاسباتوریاست

دریاست کفیل
مرستیال
د تصفیی مدیر
د کنترول دمراقبت مدیر
دقطعی حساب د تنظیم مدیر
د آوانس دمراقبت مدیر
غړی

## دعوایدوریاست:

دریاست کفیل

ښاغلی ضیأ همایون
» خواجه احسام الدین
» فضل الرحمن
» نور محمد
» عبدالغفار
» محمد نسیم
» عبد القدیر
٦ تنه
» سیف الدین
» خواجه محمد عزت
» محمد فضل
» حبیب الله
» علی محمد
٣ تنه
» یار محمد
» محمد شریف
» محمد یوسف
» محمد أمین
» عبد الحکیم
» محمد رسول
» محمد رسول
» عبدالصمد
» محمدعوض
» عبدالمنان
» عبداللطیف
» غلام رضا
» عبدالغفور
٦ تنه
ښاغلی عبد الغفور

| | |
|---|---|
| مرستیال | ښاغلی شیر بهادر افریدی |
| دعوایدو مدیر | « میر عین الدین |
| دراپورونو دمراقبت مدیر | « عبد الرحمن |
| دمواشی او محکمو مدیر | « محمد رحیم |
| دخارجی مالیاتو مدیر | « محمد اکبر |
| دخارجی کنترولو مدیر | « عبد الباقی |

**داملاکو ریاست**

| | |
|---|---|
| رئیس | « میرغلام احمد صالحی |
| مرستیال او دمساحت مدیر | « روح الله |
| دمحکمو مدیر | غلام قادر |

**دگمرکاتو ریاست**

| | |
|---|---|
| د ریاست کفیل | « دکتور غلام حیدر داور |
| دگمرکاتو دمراقبت مدیر | « میر آقا |
| پلټونکی | دری تنه |

**د تهیې د تصفیې لوی مدیریت :**

| | |
|---|---|
| لوی مدیر | ښاغلی محمد اکرم |
| د لوازمو مدیر | « میراحمد |
| دمحاسبې « | « حیاة الله |

**دمحاکماتو مدیریت :**

| | |
|---|---|
| مدیر | « محمد کبیر |

**د تقاعدو لوی مدیریت :**

| | |
|---|---|
| لوی مدیر | « محمد سرور |
| د تقاعد مدیر | « محمدایوب |

**دسکو کو ریاست :**

| | |
|---|---|
| رئیس | « عبدالرسول |
| دمراقبت غړی | « احمد گل |
| « « | « محمد حسن |
| « « | « سیدمحمود |
| دسکوکو دچاپولوی مدیر | « محمدعمر |
| « د برېښنا « | « فضل احمد |
| « دخدمتو « | « فضل احمد |

**دضرابخانې ریاست :**

| | |
|---|---|
| رئیس | غلام دستگیر |

دمراقبت غړی — ښاغلی غلام حضرت
» — » محمد زمان
دمحاسبې مدیر — » محمد حکیم

**دپلټنې ریاست :**

رئیس — » شاه جهان
غړی — » محمد حسن
» — » عبدالحق
» — » گل علی

داملاکو د مرکزی تصفیې دریاست مرستیال

ښاغلی محمد حسین
» » » غلام حسن

## دمالیې دوزارت فعالیتونه

۱۳۴۱ کال دسنبلې داوښ نه د ۱۳۴۲ کال داسد دمیاشتې ترآخره پورې دمالیې وزارت پخپلو جاری فعالیتو نو کښې داسعارو او سکې د نرخ په تعدیل، دنوو سکو جاری کول، دتمرفو اصلاح او دگمرک مستقل نرخ د دولت دتصدی چارو داصلاح د پاره دکار ستر دکورس تاسیس او نور گمرکی املاکی او داداری حساب عادی اوطبیعی چارو په اجراکښې فعالیتونه درلودل.

دمالیې وزارت پروسږ کال دجهانی بانك په کلنیو کنفرانسو کښې دافغانستان دهیئتو دگډون په باره کښې د بین المللی پیسو دحساب څخه غوښتنې دی چه افغانستان ته دپولی وضیعت دمطالعې د پاره هیئتونه راولیږی اوسم ددغې غوښتنې مطابق دعقرب په ۲٤ نیټه نوموړی هیئت کابل ته راغی تریوی میاشتی پورې دغه هیئت دافغانستان دمتخصصینو اومالی او پولی چارو دمشرانو سره ئې دافغانی پیسو دنرخ دقلاری او توازن په باره کښې خبری وکړې داسې نتیجه راووتله چه دهیواد داخلی مال لیږونکو اومولدینو دتقویې د پاره دیو ۰ ډالر قیمت ٤٥ ، افغانۍ وټاکل شی نو په همدغه اساس دمالی دوزارت دتجویز په اثر او دبین المللی وجهی صندوق په موافقه دافغانی پیسو بین المللی رسمی نرخ دیوه ډالرقیمت ٤٥ ، افغانۍ په ۱۹۷٤۸۲ گرامو طلاتعیین او تثبیت شو.

دمالیې وزارت په بازارو کښې دداکړې ورکړې د ورځنیو معاملاتو زیاتوالی او دمبادلو ډیرښت دې ته روادار کړی چه ددغو چارو دآسانی د پاره دنوو پیسو برابرولو ته اقدام وکړی نو بنا په دغه ئې نوی دوه افغانگی اویوافغانگی پیسې

چه د دوام ماهیت ، جنسیت او نهایست له حیثه په زړه پوری بشکلي پیسي کټه‌ل کیږی ی
برابر او د ۱۳٤۱ کـال دعقرب په میاشت کښې دوه افغانـګۍ پیسي او د ۱۳٤۱
کـال دحمل په میاشت کښې یوافغانګۍ پیسې جاری اوچالان کړلی . د ۱۳٤۱ کال
دسنبلې نه ترحوت پوری په ۷ ، میاشتو کښې دمالیې د و زارت نه دولتی دوا یرو ته
دعا دی او انـکشافی مصارفو له درکـه ډو لي (۲۲۳۰۸۵۸۲۹۱) افغانۍ او
(۲۵۵٦۷۰۰٤) ډالره او د ۱۳٤۲ کال په‌لومړیو دریومیاشتو کښې (۸۷۷۰۰۹۸٤۳)
افغانۍ او ۱۲۱۸۳٤۹۹ ډالره ورکړی شوی دی . او په همدغه ډول دعمومو دضرورت
وړپاڼی لکه دقیمتی پاڼو چاپ اوویشل دعریضو وتایق، دپوستی ټکټونه په مختلف
ډول نفوسی تذکری اواظهار نامې اونورو په باره کښې په زړه پوری توجه شوی
د ۱۳٤۱ کال دسنبلې نه د ۱۳٤۲ کال داسد دمیاشتی تر پای پوری دسکوکـو په
مختلف ډول (۹۰۹۹۲۰۱) قطعې چه‌معادل ئې ډول (۲۵۳۱۱۱٦۵) افغانۍ کیږی
دمربوطو دوایرو دلاری نه دعمومو استفادی ته سپارلی شوی دی ددولت د ۱۳٤۲
کال انکشافی اوعادی بودجه دسرطان په ۱۵ نیټه دملی شورا له خـوا تصویب
شوی ده . د ۱۳٤۱ کـال دبودجې د (۱۱۱٦) ملیونو افغانیو په نظر د (۵۰۳۳)
ملیونه افغانیو ته زیاتی شوی‌دی په همدی شان د ۱۳٤۲ کال داول ربع تخصیصات
دمعاشونو دافزودیه اونورو مصارفو (٦۱۸۲۳۹۵٤۸) افغانۍ اودانکشافی درکه
پنځه سـوه ملیونه افغانۍ او دکـال د دوهم ربع عادی مصارفـو له درکـه
(۳٦۳٦۷۳۰۷٦) مربوطوځایو ته تخصیص ورکړی شوی دی .

سږ کـال ددولت دمالی وضع په نظر اوسپما داصولو درعایت اوداساس په‌نظر
(۲۳۰۰) ملیونه افغانۍ عادی بودجه ترتیب شوی دمعاشاتو دافزودیه سره بیا هم
د تیر کال په نظر ۸۸ ملیونه لږوالی پـکښې راغلی دی . انـکشافـی بودجه چه
د سرمایه گذاری دمرامونو په تطبیق لګښت کیږی په مهمو اقتصادی شقو ټو کښې
په لاندنی ترتیب توزیع او د تیر کال په نظر پکښې دملاحظې وړافزایش راغلی دی‌چه :

۱ ـ صنایع په سلو کښې ۱ر۲۳ د تیر کال دافزودیه په‌نظر په سلو کښې ٤۳ .

۲ ـ په کرهڼه‌او آبیاری‌کښې په سلو کښې ٤ر۱۲ د تیر کال دافزودیه په نسبت ۳٦

ـ ترانسپورت په سلو کښې ۹ر٤۹ د تیر کال دافزودیه په نسبت ۳٤

٤ ـ دفرهنگی چارو په سلو کښې ٤ر۸ د تیر کال دافزودیه په نظر ۳۵۰

۵ـ روغتیا، مخابرات او متفرقه په‌سلو کښې ۲ر٦ د تیر کال دافزودی په‌نسبت (۲۰۰)

په ۱۳٤۲ کال کښې ددولت‌مهم هدف دکارلاندې‌دانتقالی پروژو تکمیل او بوره‌کولو ته
تخصیص ورکړی‌شوی‌چه‌هغه دټولو انکشافی مصارفو په‌سلو کښې د ۹۳ ځخه عبارت‌دی .
او دنوو پروژو دپاره چه په لومړی مرحله کښې ئې یوازی سروی او مطالعات عملی
کول دی په سلو کښې د ۷ څخه لږ تخصیص ورکړی شوی دی په دوهم اقتصادی پلان
کښې‌چه دمامورینو دطبقې درفاه‌په منظور کوم تحقق او پیش بینی شوی وه . دمامور

د۱۳٤۰ کال په رتبوی معاش په سلو کښې شل نوری زیاتی شوی دی چه د غه سلسله په د دوهم پلان ترپای پوری هر کـال ادامه ولری د نوی مسحاسبوی سیستم تطبیق او د حسابونو د تنظیم په برخه کښې دمحینو نورو شقوقو تکمیل دلوی دفتر تطبیق او د تجارتی اومحاسبوی اصولوسره دحسابی مامورینو اشناکولوڅخه عبارت دی په همدغه دول د جنسی حسابونو سره جوخت د نقدی حسابونو په تنظیم کښې هم په زړه پوری کوشش شوی دی او په پخوانی سلسلی بسی سږکـال هم دلوی د فتر تطبیق د پاره محاسبوی او تجارتی کورسونه دمالیی په وزارت کښې جوړ شوی دی .

ددوایرو موسسو او اشخاصو په ذمه د پخوانیو بقایاو تحصیل او تصفیی دوام درلود. ددغی جملی نه(۱٤۹۱۰٦۳)افغانی ۷٤۹۷۱ډالره(د۶۰۸) پونډه (۲٤٤۱۹) کلداری او ۸۹۸۰۹ منه غله د ۱۳٤۱ کال دسنبلی نه ۱۳٤۲ کال ترجوزا پوری تحصیل او تصفیه شوی دی .

او همدغه رنگه د۱۳۳۳ کال دمیزان پوری او د۱۳۳۸ کال ترمیزان پوری او۱۳۳۸ کال دمیزان نه د۱۳٤۱ کال دحوت ترپایه پوری د(آنی) او پیشکی بقایاو دحسابونو (۸۱ ٦۷۰۲۲۳٦) افغانی(۲۸٤۷۳) پونډه(۱۳۸۵۳٤)ډالره .
٤۸٦۹۸ هندی کلداری ، ۳٤۸۹۵۸ پاکستانی کلداری ، ۳۷٤۲ سویسی فرانك ، ۲٤٤۰۰ فرانسوی فرانك او۳۷۵۱۲ جرمنی مارك او ۱۲۵ دیناره حسابونه تصفیه او دمربوطو دوایرو داسنادو له مخی مجراشوی دی . دمالیی وزارت تر اوسه پوری په حسابی شقوقو کښې دکورسونو د تدریسی دوروڅخه دپنځه سوه نه زیات کسان د نوی سیستم سره اشنا کړی دی .

او بنا په دغه ددوایرو پخوانی مامورین دکورسونو په جاری کولو د نوی سیستم سره اشنا کیږی او دبلی خوا د پوهنځیو او ښوونځیو فارغ التحصیلان بالخصوص دتحریر داصول دښوونځی فارغان دحسابی شقوقو نه استفاده کوی .

ددولت دعوایدو اومدارکو د منابعو داصلاح په برخه کښې کتنی جاری او په دغه باره کښې مربوط متخصیص په تدقیق لګیا دی .

دمالیاتو برعایداتو او دمواشی دمالیی اخیستل دسیستم په قوانینو نوی کتنی شوی او کوشش کیږی چه ددغو قوانینو روحیه دهیواد داقتصادی تقویې مطابق متناسب او هم آهنګک کړی شی . دسږنی کال دعوایدو زیاته برخه د ګمرك دواردا تی مالونو دمستقل نرخ او تعرفی داصلاح درکه او ددولت ددا ینو تصدیو څخه چه دعادی مدارکو پیش بینی شوی وه دقولو عوایدو دقلمونو او دمواشی دمال دعوایدو په تحصیل کښې داصلاحاتو په اثرچه کوم عوایدراځی امیدری ددغو څخه زیات عواید لاس ته راشی د۱۳٤۱ کال د۱۲ میا شتو تحصیلات په یقینی ډول قولی (۳۱۲۲۸۷۵۸۱۹) افغانی او ددغه کال د پیش بینی په نظر د (۷۳٤٤٦٦۱۷۱) افغانیو څخه الهولی دی .

د تعرفو او مستقل گمرکي نرخ چه د ۱۳۳۵ کال څخه ئې د تجارت د حجم او کتنې
وړ پراختیا سره د هر ډول تجارتي متاعو تجارت د پخوا په شان پخپل حال و . د مالیې
وزارت ناگزیرو، چه د موجوده ایجاباتو مطابق په تعرفو او مستقل نرخ نوی نظر
وگرځوي او هغه تنظیم کړي نو بناء د هیواد د اقتصادي ایجاباتو په نظر پخواني مستقل
نرخ او د تحولاتو موضوع د مطالعې لاندې ونیوله اصلاح شوه او ددې د پاره چه د شیانو
مستقلته نرخ د گمرك د مروج او زان او بین المللي کود په اساس د متر په سیستم
یو تحول ورکړی شي نو د ټاکلو کمیسیونو د تدقیق نه وروسته په مستقل نرخ او تعرفو
کښې اصلاحات وشول او په همدې ډول د افغاني پیسو د درك او ملي منابعو د حمایې
په فکر د لویو پروژو د کافي لگښت د برخې د پاره ئې غټ لگښتونه چه د کر یدن
د لارې ونشي په اصلاحاتو کښې درج او د عمومي احتیاج د رفع په ما لو نو او
شیانو مناسب محصول لگول په نظر کښې نیول شوی دی ، د گمرك د ټولو چارو د
اصلاحاتو په اثر ځینې جزئي محصولات چه په مختلفو نومونو لکه د نو ا قلمو پیسې ،
د روانیدو او سرغچ پیسې ، د حمالي او رنډی (بولك) د چاپ او نور محصول د پیسو په
نوم یادیږی یوه اندازه پیسې وټاکلې شوې او همدغه رنگه پخوا به چه په سلو کښې
د بیجك په مخ په محصول باندې زیاتیدلې د نو واصلاحاتو په لړ کښې چه د گمرکي محصولاتو
په برخه کښې شوي دغه امر په یوه مناسبه وضعه کښې راغلې اصلاح شوی دی .

د ۱۳٤۱ کال د سنبلې نه د ۱۳٤۲ کال د جوزا تر پای پورې (۲۶۶) قلمه
سامانونه او د صناعتي موسسو د ضرورت وړ مواد چه د ماشینو پرزې ، ماشینونه .
کیمیاوي مواد او نور د صنعت لومړنی مواد دی د هیواد د صنایعو د تشویق او ترغیب
د پاره د محصول نه معاف شوی دی د هغو موادو احصائیه کوم چه د ۱۳٤۱ کال د
سنبلې نه د ۱۳٤۲ کال د جوزا اتر پای پورې یې خارج ته د لیږلو گمرکي اجازې
اخستی دی ټول ٤۲ مختلف ډول قلمونه په پورتنۍ موده کښې د هیواد د صادراتو د
پراختیا زیری ورکوی .

د ۱۳٤۱ کال د سنبلې د اول نه د ۱۳٤۲ کال د جوزا تر پای پورې د قاچاق
برې ـ ډول ډول ۲۳٦ فقرې قضایا د اصولي دوران لاندې نیول شوي چه په دغه
جمله کښې ۲۰٦ فقرې یې ضبطې او (۳۰) نورې فقرې ئې مسترد دي وې . د هیواد د
محمکو سروې او کاد ستر چارې د فن او کچ (مساحت) له مخې د تیرو کلونو څخه
تر او سه پورې په عصري او فني صورت نه وبلکه په ډیرو ابتدائي آلاتو به د محمکو
کچ (مساحت) کیده نو د و مره د ډاډ او اطمینان وړ هم نه دی .

نو د دغه منظور له مخې د کاد ستر او فني کسانو د روزلو مسئله په دغه رشته کښې
په پنځه کلن دوهم اقتصادي پلان کښې پیش بیني شوی او په همدغه اساس د ۱۳٤۱ کال
په اخرو کښې د ۱۰٦ کسو په شمول په کابل کښې د کاد ستر کورس تاسیس او

(پاتې په ۵۱۱ مخ کښې)

# د پوهنې وزیر او د صدارت عظمی دوهم مرستیال
# ښاغلی دکتور علی احمد پوپل

ښاغلی دکتور علی احمد پوپل د مرحوم محمد مکرم زوی د ۱۹۱۶ د فروری په میاشت کښې زیږیدلی دی. ده خپل لومړنی او ثانوی تحصیلات په ۱۳۱۶ کښې د نجات په ښوونځی کښې ختم کړي، وروسته له هغه د لوړو تحصیلاتو د پاره خارج ته لیږل شوی و، په اطریش او المان کښې ئې د روحیاتو د ښوونې او روزنې تحصیل کړی د ډاکترۍ د ډیپلوم له اخیستلو نه وروسته په ۱۹۴۲ کښې کابل ته راغلی دی، ماموریتونه ئې: تر ۱۹۴۶ پورې د وزارت په مرکز کښې د ښوونې او روزنې غړی، د نجات د لیسې د جغرافیې او د دارالمعلمینو د تدریس د اصولو او روحیاتو ښوونکی او د نجات د لیسې مدیر.

د پوهنې وزیر او د صدارت عظمی دوهم مرستیال
ښاغلی دکتور علی احمد پوپل

له ۱۹۴۶ څخه تر ۱۹۴۷ پورې د دار المعلمین تدریسی مدیر.

له ۱۹۴۷ « « ۱۹۴۹ « د لوړو ښوونځیو تدریساتو رئیس.

له ۱۹۴۹ « « ۱۹۵۱ « د عمومی « «

له ۱۹۵۲ « « ۱۹۵۶ « تدریسی معین.

په ۱۳۳۵ لمریز کال کښې د پوهنې د وزارت کفیل.

په ۱۳۳۸ کښې ئې د صدارت عظمی مقام د نمبر ۸۴۸ پر ۳۰ر۵ر۳۸ فرمان په اثر د پوهنې د وزیر په حیث ترفیع وکړه.

له ۱۹۵۱ څخه تر ۱۹۵۲ پورې د امریکې د فیلوشپ په حیث د هغه ځای ښوونې او روزنې سیستم کتلی دی. او ضمناً د افغانی کلتوری هیأت د مشر په حیث هند، لویدیځ المان او چکوسلواکیه لیدلی دی او د ۱۹۵۵ په جون کښې ئې د ژنیو په روزونکی جرگه کښې د افغانستان له خوا نمایندگی کړې ده.

امریکه-مرکزی ختیزه او لویدېزه اروپائی‌په مفصل ډول کتلی‌دی .

له آسیائی هیوادو څخه ئې ترکیه- ایران- هندچین، برما - پاکستان او متحد عربی جمهوریت کتلی دی، هغه وخت چه همایونی‌معظم اعلیحضرت عربی‌متحدجمهوریت او یوګوسلاویې ته رسمی مسافرت‌وکړ،دی ئې‌په ملګرتیا مشرف ؤ.

لبنان او سوریه ئې هم لیدلی دی او په ۱۹۳۹ ع کښې د شوروی جمهوریتو د اتحاد دحکومت په رسمی بلنه مسکو ته تللی دی هغه وخت چه دی د نجات دلیسې مدیرؤ دهمایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه دعرفانی خدمتو په اثر د معارف نښان ورکړشویدی .

په خارجی ژبو کښې په المانی او انګلیسی پوهېږی او د مطالعې په‌وخت‌کښې له عربی ژبې څخه استفاده کوی . اوپه ۱۳۳۷ کښې د سردار عالی‌نښان په اخیستلو. مفتخر شویدی .

د کابینې له تغیر وته وروسته د۱۳٤۱ دکب په میاشت کښې دصدارت دمقام په پیشنهاد او دهمایونی معظم اعلیحضرت په منظوری دصدارت‌عظمی‌ددوهم‌مرستیال او دپوهنی‌دو زیرپه حیث مقرر شو.

## دپوهنی دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| وزیر | ښاغلی دکتور علی احمدپوپل (دصدارت عظمی دوهم‌مرستیال) |
| تدریسی معین | « « محمد انس |
| اداری « | « عزیز محمد الکوزی |
| مشاور | « دکتور میرنجم الدین انصاری |
| مشاور | « احمد علی کهزاد |
| « | « غلام سرور ګویا اعتمادی |
| « | « محمد اسمعیل |
| د مخصوص‌قلم‌مدیر | « محمد ابراهیم شریفی |
| د پوردواو پلان رئیس | « دکتورعبد الحکیم ضیایی |
| د ثانوی‌تدریساتو رئیس | « « عبدالصمدحامد |
| مرستیال | « محمدعمر |
| دنجونودروزنی مدیره‌میرمن | معصومهٔ عصمتی |
| دحبیبیې دلیسې‌مدیر | ښاغلی ضیااحمد فدایی |
| داستقلال « | « « « عبدالمجید تنومند |
| دنجات « | « « « حمید الله عنایت سراج |
| دغازی « | « « « حمایت الله |

| | |
|---|---|
| د نوی کابل د لیسې مدیر | ښاغلی خواجه داؤد شاه |
| د خوشحال خان « آمر | « تاج محمد |
| د رحمان بابا « مدیر | « غلام دستگیر |
| د نادریې « « | « غلام نبی نوشاد |
| د ملالی « « | میرمن صالحه فاروق اعتمادی |
| د زرغونې « « | میرمن رقیه سید اکبر |
| د عایشې درانۍ « « | پیغله ماری |
| د رابعهٔ بلخی « « | پیغله حمیرا نور زایی |
| د سوریا د متوسطې ښوونځي مدیر . | . . . . |
| د انصاری « « | . . . . . |
| د نجونو روزل د مجلې مدیره | میرمن معصومهٔ عصمتی |
| **د مسلکي تدریساتو رئیس :** | ښاغلی دکتور سیف الرحمن صمدی |
| د مسلکي تدریساتو تخنیکي مدیر | « محمد نسیم |
| د کرهنې د ښوونځي لوی مدیر | « محمد ابراهیم خان |
| د شرعیه مدرسې آمر | « محراب الدین |
| د ښوونکي د روزنې لوی مدیر | « عبدالسمیع حمید |
| د دارالمعلمینو مدیر | « محمد سالم |
| د شپې دارالمعلمین مدیر | « عبدالحبیب حمیدی |
| د هوټلدارۍ د ښوونځي مدیر | . . . . . . . . |
| د عربي دارالعلوم مدیر | « قاری غلام محمد |
| د تجارت د لیسې مدیر | « محمد اسحق |
| د ابن سینا د ښوونځي مدیر | « فضل الحق |
| د ثانوي تخنیك مدیر | « عبدالمجید |
| د دیني مدارسو مدیر | « عبدالغفور باهر |
| د کابل د میخانیکي ښوونځي مدیر | « محمد یعقوب |
| د کرهنې د لیسې مدیر | « اعظم گل |
| د ښوونځي مدیر | « سید ابراهیم |
| د لیك او شمیر د ښوونځي مدیر | « خداداد یفتلی |
| د بلقیس د مسلکي لیسې مدیره | میرمن سیمین عسکر |
| د صنایعو د ښوونځي مدیر | « غلام دستگیر احمد زی |
| د صنعتي انستیتوت آمر | « غلام دستگیر عظیمی |
| **د لوړو تدریساتو رئیس :** | « محمد آصف مایل |
| مرستیال | « محمد هاشم رحیمی |

د اساس تعلیماتو مدیر
دښار د لومړنیو ښوونځیو مدیر
د دلمړنیو ښوونځیو مدیره
د پروګراموجوړولو مدیر
د ښوونکی دمجلی مدیره

**د دارالتالیف رئیس :**

د تالیف او ترجمی مدیر
دعرفان دمجلی مدیر
د پوهنی دمجلی مدیر
د کتابخانی مدیر

**د پلټنی رئیس :**

« مرستیال
د پوهنی د تجارتی مطبعی رئیس
« صنایعو « «
« د روغتیا رئیس
د دایرة المعارف «
د پښتو ټولنی «
د تاریخ د « «
د څارندوی رئیس
دمیرمنو ټولنی د ریاست مرستیاله
دماموریتو او ښوونکو لوی مدیر
دماموریتو لوی مدیر
د ښوونکو مدیر
د تعمیراتو لوی مدیر
د سپورتو « «
د موزیم « «
د پښتو تدریساتو « «
دمسلکی ریاست د دینی علوموم مدیر
حسابی مشاور
اداری لوی مدیر
مرستیال
د بودجی مدیر
د نغدی محاسبی مدیر
د تحصیلی مدیر

ښاغلی عبدالعزیز حمید
ښاغلی عبدالغفور قرار
میرمن جمیله فضل
« فتح محمد منتظر
میرمن سجیهٔ شایق سلیمان
« حمیدالله عنایت سراج
« عتیق الله معروف
« محمداکبر روشنضمیر
« « « «
« سیدمحمد عارف یکتین
ښاغلی غلام حسن مجددی
« عبدالحبیب حمیدی
« عبدالغفور احمدی
« عبدالرسول
« دکتور محمد عزیز سراج
« سردار محمد منګل
« صدیق الله رښتین
« دکتور عبدالرحیم ضیایی
« « محمد عمرورد ک
میرمن صالحهٔ فاروق اعتمادی
« محمدعلم
« عبدالفتاح قاری
« محمد یاسین
« محمد عمر نفیس زاده
« عبدالوحید اعتمادی
« احمدعلی معتمدی
« محمدظاهر محدران
« عبدالغفور باهر
ښاغلی صوفی فخرالدین
« عبدالغفور
« غیاث الدین
« پاینده محمد
« محمد انور
« محمد انور خان

| | |
|---|---|
| د دفتر داری مدیر | ښاغلی فیض محمد |
| د نقدی تصفیی مدیر | « شهاب الدین |
| د جنسی « « | ..... |
| د آرشیف مدیر | « محمد امین |
| د خریداری « | « محمد طاهر |
| د جنسی شمیر « | « غیاث الدین |
| د دپوگانو « | « غلام حسین |
| د کنترول « | « میر حیات الله |
| د احصایی « | « عبدالعلی کندهاری |
| د کلوب « | « محمد ایوب |
| د معاینی دهیأت « | « محمد نادر |
| د آریانا د مجلي مدیر | « غلام سرور همایون |
| د کابل « « | « محمد صدیق روهی |

## په ولایاتو کښې د پوهنې مدیران

| | |
|---|---|
| د کابل د پوهنی لوی مدیر | « عبدالغفور ویاند |
| د قندهار « « | « میرمحمود |
| د هرات « « | « محمد حفیظ محرایی |
| د مزارشریف « « | « غلام نقشبند دشتی |
| د قطغن « « | « عبدالحلیم |
| د ننگرهار « « | « صاحب الدین |
| د پکتیا « « | « سلیم محمد |
| د غزنی « « | « عبد الشکور |
| د گرشك « « | « محمدآصف الکوزی |
| د فراه « « | « شمس الدین متین |
| د میمنی « « | « محمد حسن میا خیل |
| د غوراتو « « | « محمد عظیم |
| د پروان « « | « الیاس الدین |
| د شبرغان « « | « یار محمد |
| د بدخشان « « | « محمد یوسف |
| د ازرگان « « | « قیمت |
| د بامیانو « « | « محمدسرور |
| د تالقانو « « | « سید آقا |

# د پوهنې د وزارت فعالیتونه

## د پلان د بورډ فعالیتونه

د پوهنې د پلان بورډ د تیر کال دورې په میاشت کښې د پوهنې د وزارت د اداري تشکیلاتو په چوکاټ کښې داخل شو. د پلان د بورډ د ریاست د یوې مرستیا لې ځانګړې په حیث د اساسي پوهنې د وزارت د مقام تر لاس لاندې دی چه د وظیفو لایحې ئې داسې ده چه د لنډې مودې او اوږدې مودې د پلانو تطبیق په طرح کوي او نظارت په ئې کوي د بین المللي مؤسسو او دوستو هیوادو د مرستو انسجام او یوه الي بهراولي د پوهنې د بودجې عادي وي او که انکشافي پالیسي په طرح کوي او د پوهنې د حالت او انکشاف رپوټونه په جوړه وي.

د تیر کال د ژمي د میاشتې په آخرو ورځو کښې. د شوروي اتحاد فني هیأت کابل ته راغلي ؤ او د دغه هیأت د دوو میاشتو په استوګنه کښې د پو لي تخنیک په تیره د هغه د عمراني اړتیاؤ په باره کښې خبرې اترې وشوې او د هغه عمراني مقدماتو د طرح کولو اساسات تثبیت شول. مسکوته د هغه هیأت د بیرته تللو نه پخوا د بین المللي انکشاف د مؤسسې یو هیأت چه له هغې مؤسسې څخه د کابل د پوهنتون د یوه پوهنځي او د څو مسلکي ښوونځیو د ودانیو جوړولو له امله پورغوښتل شوی ؤ د ودې معلوماتو حاصلولو د پاره کابل ته راورسید. چه دغه هیأت د پوهنې د پلان د بورډ د هیأت له نمایندګانو سره بیل بیل ولایتونه وکتل او نه یوازې د پوهنې د وزارت له اراکینو بلکه د مالیې او د پلان د وزارتو له اراکینو سره ئې هم خبرې اترې وکړې او د هغو پر اساس ئې خپلې نظریې او پیشنهادونه خپل عامل هیأت ته وړاندې کړل چه د هغو له مخې تصمیم ونیسي.

پر ورځنیو اداري چارو سربیره د بین المللي مؤسسو او دوستو هیوادو په پښتو څو ابونه لیکل شوي او د پوهنې د کم او کیف له نظره رپوټونه ښودل شوي دي.

د کال په آخرو وختو کښې له یوې خوا په کابل کښې د ملګرو ملتو د نمایندګۍ له لیارې څخه د ملګرو ملتو له خاصو وجوهو سره تماس شوی دی د مرستې خپلې غوښتنې ته نهائي شکل ورکړي او له بلې خوا د یونیسف له هیأت سره چه د یونیسف او یونسکو د مرستې په باره کښې د ښوونکو د روزنې له اکاډمۍ سره د خبرو اترو له امله کابل ته راغلي ؤ خبرې اترې وشوې په پای کښې د ملګرو ملتو، یونیسف او یونسکو خاصو وجوهو د پوهنې د وزارت د مرستې غوښتنه ومنله او په راتلونکې تعلیمي کال کښې به د ښوونکو او د منځني او عالي دار المعلمینو د روزنې اکاډمۍ تأسیس شي.

د پلان او مالیې له وزارتو سره د انکشافي او عادي بودجې په باره کښې خبرې اترې شوې او د پوهنې او پوهنتون بودجه تثبیت شوه د مالیې او د پلان له وزارتو سره

تر هغې وخته پورې خبرواترو دوام درلود څو چه د بودجې څپل قانوني مراحل سرته ورسیدل او منظوره شوه .

دوزارت دمقام دابلاغیې له مخې پهدغېنوشانګو د خطمشی او دامریکې د بین المللي انکشاف د نماینده ګۍ د فعالیت ساحه ئې تریشچ کوله خبرې اترې پنځه میاشتې اوږدې شوې .

تردې چه یو ولس ګوني تړونونه چه له لومړنیو ثانوي تعلیماتو - درسي موادو تخنیکي تعلیماتو - د قوولني لهښوونې او روزنې، د مسلکي کرهڼې او تجارتي تعلیماتو، دکور تدبیر د تعلیماتو - دانجنیرۍ د پوهنځي، د کرهڼې د پوهنځۍ د ښوونکو د روزنې او د پوهنتون د مرکزي پروژې څخه عبارت دي. سم له هغو تړونونو سره به هغه نماینده ګي پوهنې او د کابل پوهنتون ته د پنځو ملیونو ډالرو څخه زیاته مرسته وکړي .

له دې امله چه د بین المللي موسسو او په کابل کښې دامریکې د بین المللي انکشاف د نمایندګۍ فعالیت غیرند نهشي او فعالیتونه ئې په له بلهمتمم وي د مربو طودایرو پهحضور څوځو غونډې وشوې او دا تثبیت شوه چه یو له بله په ګډه او په ښه شان فعالیتونه سره کوي .

د متخصصینو هغه پنځه کسیز هیأت چه د پلان د بور د د پاره له یونسکو څخه غوښتل شوی ؤ د یونسکو لهخوا تصویب شوا و څو تنهغړي ئې افغانستان ته راغلل او دوډ معلوماتو لاسته راوستلو له امله ئې لومړنۍ کتنې وکړې . دغه هیأت به داوږ دې مودې د پلانو په طرح کولو کښې د پلان له بور د سره مرسته وکړي، هماغه دې چه بایدد یونسکو له پیشنهاد او د پوهنې دوزارت له قبولي سره سم د پوهنې داوږدې مودې انکشافي پلان د ۱۹۶۵ تر نیمائې پورې طرح شي .

د پوهنې د پلان د بورد داحصائیې مدیریت .

۱- په ۱۹٤۱ - ٤۲ کال کښې د پوهنې د احصائیې راغونډو او جدول بندي کولو او د معلوماتو ورکولو په باب پر معمو او وظایفو سربیره له دې امله چه د آسیا د جنوبي او ختیزو هیوادو د پاره د پوهنې د احصائیې په سیمینار کښې چه د یونسکو له خوا په جاپان کښې دائر شوی ؤ او د پوهنې وزارت هم ګډون پکښې درلود د مشمولو هیوادو د پوهنې داحصائیې د معلوماتو د یو برابر کولو په باب څینې تصمیمونه ونیول شول او له بلې خوا د پوهنې داحصائیې د معلوماتو په خوانۍ فورمې چه داستعمال لیدو په اثر ختم شوې وې نوې چاپیدې .

داحصائیې مدیریت د توکیو د سیمینار د سفارښتو او د پوهنې د وزارت کښې د یونسکو د مشاور په مشوره دداسې څونو یو فورمو تجویز وکړ او د پوهنې دوزارت په منظورۍ سره ئې د پوهنې په چارو کښې د استفادې د پاره یو پوره اندازه چاپ کړې .

لومړۍ په دوو پا ړو کښې دالف او ب فورمې چه د پوهنې د مدیریتو له خوا د خپلو

مربوطو سیمو دښوونځیو په باب خانه پری شوی او د پوهنی د احصائیی مدیریت ته په کال کښی دوه ځله دوری او تللی په میاشتو کښی ورلاندی کیږی .

دوهم په پوه پانه کښی دځ فورمه چه د پوهنی دمدیریتو په واسطه مستقیماً هر یوه مربوط ښوونځی ته لیږل کیږی او د ښوونځیو آمرین په دی مکلف دی چه د خانه پری او د پوهنی وزارت ته ئی چمتو کړی. ددغو فورمو د پاره هدایت نامه هم تربیت شوی او د هغو سره یو ځای چاپ شوی ده له دغو فورمو څخه داڅکل په توګه دځلو ر و کلو د ضرورت په اندازه د پوهنی په مطبعه کښی چاپ شوی دی .

۲: د یو نسکو اداری په سږ کال کښی د پوهنی داحصائیی دادارې دتقویه کولو له امله دهغه اهمیت له مخی چه د رلودلی دحساب دماشینو د پیرولو د پاره یې یو څه پیسی مرسته کړی وه چه د پوهنی داحصائیی دمدیریت په سپار ښت سره ئی دحساب پنځه ماشینونه چه دوه ئی یوازی دجمع او تفریق او دوه نورئی دحساب څلور ګونی اعمال د لاسو په واسطه او یو بل ئی د حساب دځلو ر ګونی اعمال په برښنا سره کار کوی د یو نسکو له خوا د پور تنی مبلغ په بدل کښی پیرودل شوی او د پوهنی وزارت ته را رسیدلی دی البته یو بل دیتکتو ډو له ماشین به هم له دغو پیسو څخه وپیرودل شی او په نږدی وختو کښی به ئی د پوهنی وزارت ته را ولیږی.

## دلومړنیو تدریساتو در یاست فعالیتونه :

په دوهم پنځکلن پلان کښی هم لکه دلومړی پنځکلن پلان غوندی دلومړنیو تعلیماتو په اصلاح او توسعه کښی لاندی دوه اصلونه پاملرنه کیږی .

الف: دلومړنیو تعلیماتو داوسنی حالت اصلاح کول .

ب: د « « پراخول او تعمیمول .

الف: د « « داوسنی حالت اصلاح کول

۱: د « « داوسنیو پروګرامو اصلاح کول

په تیر کال کښی د درسو د کیفیت ښه کولو له امله لاندی ټکوته پاملرنه شوی ده:

۱: دلومړنیو ښوونځیو دتدریسی او اداری هیأت دکار دطرز اصلاح کول .

۲: دلومړنیو نصاب ښنا مواو تعلیماتنا مو تعدیل او دتدریس اوروزنې دلار ښودونکو چمتو کول .

۳: دداسی مقتضیی وسیلو اوذریعو برابرول چه ښوونکوته دښوونی اوزده کوونکوته دزده کړی کار آسانه کړی .

دلومړی اساس په باب دپوهنی وزارت دعمومی پوهنی دانکشاف اود معلمینو او معلماتو دمسلکی نظریی دپراخولو دپاره ترڅوئی چه په وسه وه علاوه پردار المعلمینو ئی دلومړنیو ښوونځیو معلمینو او معلماتو او سرښوونکوته مسلکی کورسونه او عمومی تعلیمات برابر کړل او له بلی خوائی هر کال په ولایتو کښی روزو نکی جرګې او په مرکز کښی مسلکی کنفرانسونه دائر کړل ددغو کنفرانسو متن په پښتو او فارسي چاپ

شو چه د استفادې د پاره د ولایتونو لوښونو ته وویشل شي. البته کوم شی ته چه له دغو فعالیتونو څخه انتظار کیږي هغه دادی چه د هغو په وسیله د ښوونکو او سرښوونکو د خپلې مسلکي پوهنې نظریې او اکادمیکې خواوې قوي کړي.

د ښوونې او روزنې د عملي الهٔ خو په باب هم تر کومه ځایه چه وسائل او امکانات ئې برابر شویدي ښوونکو ته لارښوونه شوې ده.

د کابل په مرکز کښې چه څو تجربوي ښوونځي او یوه ښوونکي شته دي معلمین او معلماتو ټولګي وار په وار د تدریس د هغو موادو او اصولو کتلو د پاره چه د ښوونکو له پلوه جوړ شوي دي. دغه ښوونځي او د هغوی د ښوونکو کار ئې لیدلی دی. له بلې خوا د نوي کار و معلمینو او معلماتو د پاره چه د تدریس په ساحه کښې پوره تجربه نه لري د تدریس د زده کړې د یوه پروګرام تجویز شویدی.

د دغه پروګرام له مخې هغه ښوونکي ټولګي وار په وار د شپږو هفتو د پاره په هره هفته کښې درې ورځې او هره ورځ درې ساعته د دغو ښوونځیو څخه په یوه کښې تدریس زده کوي او له دغه خپل کار څخه کریډت هم لاسته راولي.

د پورتني یاد شوي دوهم اساس په باب تراوسه پورې پراخه ګامونه اخیستل شویدي پدې ډول چه د لومړنیو تعلیماتو په تعلیماتنامه کښې د متخصصینو د مشورې پر اساس او د ابتدائي کمیټې تر نظر لاندې تجدید نظر وشو چه زر تر زره به له چاپ څخه و وزي او ټولو ښوونځیو ته به ورکړ له شي.

د لومړنۍ ساینس نوی پروګرام له لومړي ټولګي څخه تر شپږم ټولګي پورې تدوین او د هغه پر اساس د (۱-۲-۳ ټولګیو) د لومړۍ دورې د ښوونکو د پاره د ساینس د تدریس لارښودونکي بشپړ شوي دي چه اوس تر چاپ لاندې دي. او د (٤-٥-٦ ټولګیو) د لومړنۍ دوهمې دورې د پاره د ساینس د لارښودونکي د تدوین کار او دغه راز د وروستیو یاد شوو ټولګیو د ساینس د درسي کتابو تالیف جریان لري.
د دینیاتو په پروګرام د دین د صلاحیت لرونکو عالمانو له خوا تجدید نظر شویدی او د (٤-٥-٦ ټولګیو) د پاره به د دینیاتو نوي کتابونه زر په زر له چاپه ووزي او ښوونځیو ته به ورکړل شي. له بلې خوا د لومړنۍ اولې دورې د پاره د دینیاتو د تدریس یو لارښودونکی تر تألیف لاندې دی چه هغه به هم پدې نژدې وختو کښې چاپ کړی شي.

له لومړي ټولګي څخه تر شپږم ټولګي پورې د پښتو او فارسي قرائت په کتابو او د لومړنۍ دوهمې دورې د جغرافیې په کتابو هم تجدید نظر شویدی د لومړنیو ټولګیو د تاریخ کتابونه اوس د ښوونکو د یوې هیأت او د لومړنیو تدریساتو د علمي غړو تر تجدید نظر لاندې دي او چه تجدید نظر وربانډې وشي نو د چاپ او له امله به مطبعې ته واستول شي.

د هند جمهور رئیس ښاغلی دکتور راداکرشنان هغه وخت
چه د کابل موزیم گوری

.............................

له دی املهٔ چه د رسونه نظری جنبه و نه لری بلکه محتو یات د زده کوونکو له عملی حیات سره رابطه ومومی او د هغوی د ژوندانه له احتیاړ سره مطابقت و کړی په تیر کال کښی هم د نورو کلو پشان د لومړنیو ښوونځیو په پروگرامو کښی خو محلی کسبونه او د کرهڼی چاری زیاتی شوی دی.

د زده کوونکو د درسو تقویه کولو له امله له سمعی او بصری موادو څخه استفاده شوی ده، د درسو گران مطالب د بیلو بیلو سمعی او بصری موادو په ذریعه زده کوونکو ته څرگند او دوی ور باندی پوهول شوی دی. بله وسیله چه د زده کوونکو د معلوماتو

زیاتو لو د پاره استفاده ورڅخه شوې ده روزونکي، صحي او اجتماعي فلمونه دي چه په تیر کال کښې پر له پسې په لومړنیو ښوونځیو کښې ښودل شوي دي . داسې په نظر کښې ونیول شوې چه د پلان په هر کال کښې چه په ځینې لومړنیو ښوونځیو کښې دې وله کتابخانې تهیه شي له همدغه کبله د دغسې کتابخانو اساسنامه جوړه او درسي کتابونه چه باید هغو ښوونځیو ته تهیه شي وټاکل شول .

دغې پروژې خپل نهائي مراحل پوره کړیدي او زر به یوشمیر ښوونځي کتابخانې ولري . د سمعي او بصري تعلیماتو برخې هم خپل فعالیت ته دوام ورکړی داسې ګټور او د کمې بیې مواد ئې تهیه کړیدي، دغه راز د تجربوي ښوونځیو معلمینو او معلماتو له محلي مواد وڅخه بسیط ګټور مواد تهیه کړیدي چه د نورو لومړنیو ښوونځیو معلمین او معلماتې ئې په کنفرانسو او مشاهدو سره په جوړولو او استعمالو لو بلد کړې شویدي د عمومي تعلیماتو او دلو یانو د درسو په برخه کښې د پخوا په شان فعالیتونه روان دي او د موادو یوشمیر کورسونه د هیواد په بیلو بیلو ځایو کښې پرانیستل شوي دي .

له دې امله چه هغوی د کورسو د شاملو موادو د زده کولو سره سره یو یو محلي کسب هم زده کوي د لویانو د کورسو په جمله کښې یوشمیر داسې کورسونه هم تأسیس شویدي چه سر بیره پر سواد د یوه محلي کسب هم درس ورکول کیږي .

د پخوان و بدان د مجاې خپرول د پخوا په شان دوام لري او په هره میاشت کښې اس زره ټوک، چاپیږي چه مستحقینو ته ئې وړیا ورکول کیږي یوه بله وسیله هم له روزونکو صحي او اجتماعي فلمو څخه استفاده ده چه په وخت د ټولنې په تناسب سره ښودل کیږي .

د اساسي تعلیماتو له امله زیاته پاملرنه له ټولنې سره د ښوونځیو د روابطو انکشاف او ټینګولو ته شوې ده او د ټولنې په هرشمیر ښوونځیو کښې د وه نور هم زیات شویدي او س د ستې د ټولنې (۹) ښوونځي د هیواد په بیلو ځایو کښې شته دي چه د پروګرامو په پرمخ بیولو کښې ئې د اساسي تعلیماتو مدیریت او مربوط متخصصین مرسته کوي پدغو ښوونځیو کښې له یوې خوا د ښوونځي رابطه له مربوطې ټولنې سره تقویه کیږي او له بلې خوا زیار ایستل کیږي چه ښوونځي او ټولنه د اصلاح او پرمخ تګ د پاره یو له بله مرسته سره وکړي .

بله موضوع چه په دغه باره کښې د یادولو وړ ده د دغو ښوونځیو د پروګرامو علمي الهم تقویه کول دي او دغه کار پداسې پروګرام کښې د عملي کرهنې شمول د بیلو بیلو ورکشاپو تشکیل او نور فعالیتونه دي چه شویدي، په تیر کال کښې د دولایتو څو تنه ښوونکي او د پوهنې مدیران د یوې میاشتې په موده د ټولنې د ښوونځیو د پروګرامو کتلو له امله فلیپین ته لاړل . د وی د بیرته راتګ نه وروسته د ټولنې په بیلو بیلو ښوونځیو کښې په کار کښې داخل شویدي .

۴: دوو دانیو اصلاح او پشپړوالی:

له دی امله چه د اوسنیو ښوونځیو زیاته برخه په دوهم پلان کښی اساسی وداني ولری په دوهم پنځکلن پلان کښی پیشبیني شوی وه چه په کال کښی دی په ټولو ولایتو کښی د لومړنیو ښوونځیو د پاره پنځوس اساسی ودانی چه (۹) درسی خونی او نوری ورځونی ولری جوړی شی.

په دوهم پلان کښی هر کال د (۳۰) اساسی ښوونځیو پرانیستل په نظر کښی ؤ چه (۲۰) ئی نوی او (۱۰) نور ئی له پخوانیو کلیوالی ښوونځیو څخه په اساسی توگه تعدیل شول.

دغه راز د پلان په هر کال کښی (۱۰۰) کلیوالی ښوونځی (۳۰) د لویانو کورسونه او (۲۰) د سواد کورسونه د محلی کسبو په شمول او په پخوانیو ښوونځیو کښی د (۳۴) محلی کسبو د ځانگو پرانیستل پیشبیني شوی دی چه دغه ټولی پروژی تطبیق شوی او بلکه د اساسی او کلیوالی ښوونځیو په پرانیستلو کښی د خلکو د تقاضا له مخی له هغو څخه چه پیش بیني ئی شوی وه زیات تو ته اقدام شوی دی.

دځارندوی نجونی د کمپنگ په حال کښی

## دثانوي تدریساتو دریاست داجراآتو رپوت :

په ٤١، ٤٢ کال کښې دثانوي تدریساتو ریاست دنورو کلو غوندې د تعدیل دلایحو په طرح کولو، دپروګرامو په تجدید نظر، دددرسو په خارنه‌اود ازمویښو په کنترول کښې مجاهده کړې اود هیواد په نورو عرفاني چارو کښې هم دپوهنې دوزارت له بېلو بېلو دایرو سره یې همکاري کړې ده . له هغې جملې څخه په ٤١ کال کښې چه دګران هیواد ددوهم انکشافي پلان لومړی کال و دثانوي تدریساتو ریاست دلومړي پلان په شان دپوهنې دپروژو په عملي کولو اود انکشافي پلان په پیشبینیو کښې جدیت کړی دی .

هغه ښوونځي چه‌ددوهم پلان په لومړي کال کښې ئې له لومړنۍ څخه منځنۍ ته ارتقاء کړې ده په لاندې ډول دي .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ : دبدخشان د جرم منځنی ښوونځی . | | | ۱۰ دشبرغان د سرپل منځنی ښوونځی | | |
| ۲ دبامیانو منځنی ښوونځی | | | | | |
| ۳ : دننګرهار دخوګی | « | « | ۱۱ دپکتیا دزرملې دلومړي برخې « | | » |
| ٤ دغزنی دښرنی « | » | « | ۱۲ دګرشك د خلیج | « | » |
| ٥ : دکندهار د ترین | » | « | ۱۳ دمزارشریف دخلم | » | » |
| ٦ دقندز دنجونو | » | « | ۱٤ د غوربند د سیاه ګرد | « | » |
| ۷ دسلطان شهاب الدین « | | » | ۱٥ د ا.بدخوی دنجونو | » | » |
| ۸ دشیوی | » | « | ۱٦ دجلال آباد دنجونو | « | » |
| ۹ دمیدان | » | « | | | |

دزیاتو معلوماتو دپاره څرګندیږي چه‌د دوهم پنځکلن پلان په کلو کښې هرکال داسې پیشبیني شوې ده .

۱ : په منځني سره د۱۲ لومړنیو ښوونځیو ارتقا چه‌له هغې جملې څخه د پنځه یو ټولګیز یو دوه ټولګیز اویو دري صنفي ټولګیز ښوونځي دایرشي .

۲ : دیوه منځني ښوونځي ارتقاء په لیسې سره .

۳ : دیوې نوې لیلیې پرانیستل.

له‌دې کبله چه‌د لومړنیو ښوونځیو فارغ التحصیلان کم وو نو لکه څنګه‌چه لومړۍ پیشبیني شوې‌وه منځني ښوونځي په دو ځانګو او دریو ځانګو سره و نه شو پرانیستلای نو ځکه ددې دپاره چه ټولنې ته دمنځنیو ښوونځیو دفارغ التحصیلانو په‌تقدیمولو کښې کموالي رانشي داسې تجویز وشو چه‌د دوو ځانګو اودریو ځانګو دمنځنیو ښوونځیو په‌عوض کښې‌دې دځانګو په تناسب سره منځني ښوونځي پرانیستل شي لکه چه‌همدغه خبره عملي‌شوه دخلکو دپرله پسې تقاضا په اثر دښوونځیو ودانۍ په بشپړولو، دمعاشو اود ښوونکو په‌ورکولو کښې ئې‌خپله‌همکاري وکړه له بست څخه اضافه څوارلس یوټولګیز منځني ښوونځي اودوه نورمنځني ښوونځي تأسیس‌شوې‌دي‌چه

له دغو دوو څخه یو د غور بند د سیاه ګرد د منځنۍ ښوونځۍ او بل دسلطان شهاب الدین د منځنی ښوونځۍ څخه عبارت دی .

هغه یو منځنی ښوونځی چه تراکل شوی و د دوهم پلان په لومړی کال کښی په لیسه مبدل شی. دابونصرفراهی منځنی ښوونځی دی . دغه رنګه لکه څنګه چه پورته یادشول په دوهم پلان کښی داسی تأسیسات تشکیل شو ل :

۱: دپنجشیر درخی منځنی ښوو نځی د پروان په پو هنه کښی

۲: دچاریکار و منځنی ښو ونځی د پروان په پو هنه کښی .

۳: دکندر خیلو » » دپکتیا » »

٤: دزوړ ارګون » » دپکتیا » »

٥: دکره باغ » » د غزنی » »

٦: دشینډنډ » » د هرات » »

۷: دسید آباد » » دکابل » »

۸: دچارآسیا » » دکابل » »

۹: دپغمان » » دکابل » »

۱۰ : دمحمدآغی » » دکابل » »

۱۱: دپنجوایی » » دکندهار » »

۱۲: دموسی‌عبداالواسع » » دکندهار » »

۱۳: دده‌راود » دګرشك » »

۱٤: دبدخشان دنجونو مختلفی منځنۍ ښوونځی.

دیوه منځنی ښوونځی سهمیه چه په لیسه بدلی ارتقا کوله دهرات دپوهنی دمدیریت په غوښتنه تیرکال دمهری منځنی ښوونځی ته ورکړل شوی وه لکه چه په ٤۰ کال کښی لسم ټولګی تشکیل او د بو د جی چاره یی د پوهنی د مدیریت دخپل مدیریت له بودجی څخه ورکړه او پدی کال کښی یی بو د جه له انکشافی بو دجی ورکوله کیږی .

دپوهنی وزارت له دی امله چه وکولای شی چه دمرکز دلری ځایو څخه او ولایتو طلا بو ته له لومړنیو څخه دلوړ و تحصیلاتو چانس ورکړی دمرکز په لیلیه ښوو نځیو علاوه یی په دوهم پلان کښی هم دلومړی پنځکلن پلان په شان هرکال دهر و لایت په مرکز کښی د یوه لیلیه ښوونځی پیشبینی وکړه چه دپلان دلومړی کال سهمیی په سپین بولدك کښی دیوی لیلیی دایریدل لازمول هلته یوه لیلیه پرانستل شوه اودهغی په څلورمو او اوومو ټولګیو کښی یوسل او شل تنه نوی زده کوونکی شامل کړل شول پدغی لیلیه کښی دلومړنی دوری پرفارغ التحصیلانو علاوه په نظر کښی نیول شوی و چه دکلیو الی ښوونځیو دفارغ التحصیلانو دځلورم

ټولګی دوې ځانګی هم دولایتو له لری ځایو څخه مرکز ته راغونی او په څلورم
ټولګی کښې یې ترزده کړه لاندې ونیسی. پدغه پورتنی ترتیب سره د دوهم پلان
په اومړی کال کښی دمتځنیو ښوونځیو، لیسو او لیلیو شمیر چه دثانوی تدریساتو
په ریاست پورې مربوط دی (۹۲) ته رسیدلی چه له دغی جملی څخه (۲۳) لیسی (٦٤)
منځنی او (۷) لیلیې دی چه د لیلیو په جمله کښی دخوشحال خان او رحمان بابا لیسی هم
شاملی دی .

د ٤٢ کال په اولو وختو کښی هم لکه د نورو کلو په شان د دی د پاره چه د مضمونو
تدریسی ښی لاری او عصری میتودونه وموندلی شی او خپل تدریسات ښه ژوندی کړی
نو دغی مفکوری له مخې د لیسو د دوو لسمو ټولګیو د فزیک او ریاضیاتو په پروګرام کښی
د سیانس د پوهنځی د استادانو تر کتنه لاندی تجدید نظر وشو او ددا سو مسألو فهرست
واخستل شو چه زده کوونکی یې له آسانه لیاری څخه تطبیق وکړای شی چه د ښوونکو
د استفادې د پاره د نوموړو استادانو نظر یې په پوره اندازه
د دار التألیف د ریاست د ګستتنر په دستګاه کښی چاپ او معلمینو او معلماتو ته
ورکړ لی شوی .

د ثانوی او مسلکی ښوونځیو تعلیماتنامه د استخراج د لایحې په شمول
چه ځینی موادیې تعدیل شویدی او هم لازمه وه چه دغه تعلیماتنامه دې په فارسی او پښتو
واخستله شی د ټولو اصلاحاتو نه وروسته د چاپولو له امله د پوهنې مطبعی ته واستول شوه
چه یو زرټوکه چاپ کړی، لکه چه اوس دغه تعلیماتنامه په مجلد ډول چاپ او د پوهنې وزارت ته
لیږدول شویده. دغه راز د فزیک کیمیا او بیالوژی د لابراتوارسیټونه چه په پخوانی
فرمایښت سره له خارج څخه رارسیدلی دی د ګوښې هیأت
په واسطه سیټ بسط شوی او هغو لیسو ته ورکړل شول چه اصلا
یې لابراتوار نه درلود .

له دی امله چه دغه سامانونه د مرکز او ولایتو لیسو او ښوونځیو ته ویشل شویدی ددی
له امله چه په تشریح کښی ئی مشکلات پیښ نه شی د ثانوی تدریساتو په لازم ګڼلو سره د هغو
سیټو د مربوطو سامانو له هری یائی څخه دوه سوه نسخې د دار التألیف د ګستتنر په دستګاه
کښی چاپ کړی شوی او هم دغه سیټو ته مربوطو مرجعو ته واستول شول .

د پوهنی وزارت له دی امله چه د ساینس پیاوړی ښوونکی ئی کم دی نو د پس له وخته
کورسو په واسطه چه د پوهنتون د ریاست په سلسله او د پوهنې د نورو تدریسی چارو
په همکاری سره دوام مومی د هغو ښوونکو د علمی او تجربوی سویې په لوړولو کښی
هر کال جدیت کوی او په دی هڅه کښی دی چه تر څو ئی چه امکان وی زیاته استفاده دی
له هغو ښوونکو څخه وشی او زیات ښوونکی دی د هغوی له درس څخه استفاده وکړی . کوم
تجویز چه په دغه زمینه کښی شویدی او په ٤١ کال کښې عملی کړی شو د زرغونې په لیسه کښی
د ساینس د ورکشاپ پرانیستل وو چه د نجونو د لیسو د معلماتو د استفادې د پاره ئی د ښوونی

اور وزنی دمؤسسی پههمکاری په کار پیل کړی دی . دغه راز دمرکزاو ولایتو دلیسو دمعلمینو اومعلماتو داستفادی دپاره دثانوی تدریساتو پهمشوره داد بیاتو دپوهنځی دجغرافیی دمؤسسی لهخوا داسی تجویز وشو چه په هره میاشت کښی دیوه د داسی جغرافیی بلوټن چهدمربوطی جغرافیی موضوعات پکښی درج وی دثانوی تدریساتو دریاست پهسلسلهدی مربوطو مراجعو تهواستول شی لکهدهری میاشتی په پای کښی هغه بلوټنونه دثانوی تدریساتو ریاست ته رارسیږی او دمعلمینو او معلماتو داستفادی دپاره لیږل کیږی .

لکه څنګه چهپدی وختو کښی د ادبیاتو دپوهنځی ریاست خبر راکړی دی دجغرافیی دموسسی په خیال کښی دی چه دا لاندی کتابونه هم چاپ او دمعلمینو اومعلماتو داستفادی دپاره ئی واستوی :

۱ : فزیکی جغرافیه .

۲ :داقتصادی جغرافیی مبادی .

۳ : جیو مور فولوژی .

په ٤۱ کال کښی هم لکه دنورو کلو پهشان درحمن بابا دلیسی اته تنه لایق فارغ التحصیلان دلوړو تحصیلاتو دپاره اروپائی هیوادو ته لکه المان، بلژیك اتریش او انګلستان لیږل شویدی . چه د ساینس په درجه ددیپلوم له اخیستلو نه وروسته بیرته راشی او ضمناً د خپلو تحصیلاتو له ختمیدلو نه وروسته د ستاژ په توګه د یو څه مودی دپاره د هغو ځایو په ښوونځیو او روز و نکو مرکزو کښی کار وکړی سربیره پر هغه د فرانسی د خارجه چارو د وزارت د مربوطو مقاماتو او په پاریس کښی د افغانی اوی سفیر سره د ثانوی تدریساتو ریاست دمستقیم تماس پهاثر موافقهشویده چه هر کال دیدوهتنهد پنځو کلو دمودیدپاره دسکالرشپ تر پروګرام لاندی په معلمی او اداری شقوقو کښی ومنی. دغه دوه تنه باید دفرانسوی ژبو لیسو له فارغ التحصیلا نو څخه وی لکه چه ددغو کسانو دمعرفی پهباره کښی په ٤۱ کال کښی اوهم دهغو دوو تنو په باب چه باید په٤۲ کال کښی له هغو شرطو لاندی ولیږل شی اقدام شویدی.

دثانوی تدریساتوریاست دنورو کلوغوندې دښوونځیو ددری میاشتنی ازموینی په تیره د هغو دکالنی ازموینی څارنی او کنترول کړیدی .

په ٤۱ کال کښی زمونږ لیږل شویو هیأتو دکندهار احمد شاه بابا ، میرویس د مزار شریف دباختر ، دهرات دسلطان غیاث الدین دخان آباد دلیسو د بکلوریا په ازموینو کښی دپوهنی له مدیریتو اودښوونځیو لهروزو نکو هیأتوسره همکاری اومعاونت کړیدی . دثانوی تدریساتو دریاست په مرکز کښی دپوښتنو د انتخاب دهیأتو په مرسته له څلورو زرونه زیاتی پوښتنی اوپهلومړی اوددوهم چانس کښی

دبکلوریا ددورې دپاره دوه زره پیلې پوښتنې تهیه کړې او سم له هغو سره
و۴۱ کال دلیندی او دکب په میاشتو کښې ازموینې اخیستل شوې دي .

دکابل دمرکز دلیسو په ازموینو کښې چه د مرکز د لیسو نه علاوه د پروان
دنعمان لیسه ، دغزني دسنایي لیسه هم پکښې شاملې دي .

دهلـکانو دلیسو دپاره داستقلال لیسه او دنجونو دلیسو دپاره دملالۍ لیسه دازموینې
مرکز ټاکل شوي و چه دلیندی او دکب دمیاشتو دازموینو له جریان څخه دوه سوه
تنه پوهنځیو متخصصینو او واکمنو کسانو دلیسو له ښوونځو سره د ممیز او ممتحن
په حیث په ګډون کښې کړیدی .

دبکلوریا دازموینو مشمولین نسبت (۴۰) کال ته په (۴۱) کال کښې ( په سلو
کښې ۲۵) زیات وو دغه راز نسبت تیر کال ته ئې په (۴۱) کال کښې د هلـکانو
په ښوونځیو کښې ( په سلو کښې ۳۰ ) او دنجونو په ښوونځیو کښې ( په سلو کښې
۲۵) فارغ التحصیلان زیات وو .

د هلـکانو دطبقې دبکلوریا فارغ التحصیلان حربي پوهنځي، د پولیسو عالي
ښوونځي او دپوهنتون ریاست او دنجونو د لیسو فارغ التحصیلاني لوړو تحصیلاتو ته
ددوام ورکولو دپاره دپوهنتون ریاست ته او یا دنجونو په ښوونځیو کښې د معلمو
په حیث دمقررولو دپاره دپوهنځي دښوونـکو مدیریت ته معرفي شویدي .

**متفرقه چارې:** دثانوي تدریساتو دریاست همکارۍ دپوهنې دوزارت له نورو
دایرو سره په تیره دثانوي مربوطو ښوونځیو دپاره دمعلمینو او معلماتو په استخدام
او موندلو کښې دښوونـکو له مدیریت سره ـ دضرورت وړ سامانو په توزیـع او تهیه
کولو کښې داداري لوی مدیریت سره دبیلو بیلو ټولـګیو د درسي کتابو په تهیه
او چاپولو کښې چه یدی وختو کښې دمتعلمینو او متعلماتو شمیر ورځ په ورځ زیاتیږي
د دارالتالیف له ریاست سره د پخوانه زیاته ده او ددغو ټولو پرابلمو په حل کولو
کښې په تیره دښوونـکو دکموالي په مقابل کښې چه ورځ په ورځ کمیږي دتدبیرو
په نیولو کښې یو له بله کوښښونه شویدي .

لـکه څنـګه چه پورته یاد شول دپوهنې وزارت له څو کلو راپدې خوا داجتماعی
او ساینس په بیلو بیلو شقوقو کښې دروزلو له امله دبکلوریا یو شمیر فارغ التحصیلان
خارج ته لیږلي دي چه د بیرته راستنیدو په وخت کښې دښوونـځیو د معلمي
چوکاټ تقویه او ټـول مضمونونه دلیسو په عالي ټولـګیو کښې دداخلي پیـاوړو
ښوونـکو په واسطه تدریس کړی شي .

د پوهنې ددغو زلمیـانو دمصارفو دتحصیلاتو او اجرا کـولو اداره دثانـوي
تدریساتو دریاست څخه دباندې دپوهنتون دریاست په سلسله عملي کیږي. سربیره
پرهغو له دې کبله چه زده کړونـکي له بکلوریا څخه وروسته په خارج کښې د افغاني

مامور په حیث دخپلو اولیاؤ د تقرر په‌نظر له اولیاؤ سره خارج ته ځی او باید خپلی زده کړی ته هلته دوام ورکړی دهغوی د تدریسی چارو کنترول اوڅارنه او کوم کسان چه پدغه جمله کښی په حکومتی نرخ دا سعارو اجازه غوالی دا ډول دثانوی تدریساتو دریاست په واسطه‌سره کیږی لکه‌چه په۱٤ کال کښی دپخوا په څیر دهغوی د تعلیمی ر پوټ درار سیدو په وخت کښی له (۵۰) تنو نه زیاتو کسانو له پاره افغانستان بانك‌ته دهغوی دا سعارو پیرودلو اجازه صادره شوده.

دپوهنی وزارت له څو کلو را پدی خوا خپله پاملر نه دآرت او مستظرفه صنعت په لوری اړولی ده اوددی له امله چه دښوونځیو متعلمین اومتعلما تی زیاتی تشویق اوترغیب شی او هغوی دښه ذوق په‌ژوندی کو لو کښی مرسته ورسره وشی په کال کښی یوځل دمتعلمینو اومتعلماتو دلاسی چارو درسامی، نقاشی آثار چه پخواد خزان دسالون په نامه دایرکیده ښودل کیږی اوددی دپاره دولایتو دښوونځیو او لیسو دزده کوونکو درسامی آثار هم وښودل شی په۱٤ کال کښی دچنګاښ دمیا شتی په آخره هفته کښی چه هغه وخت دولایتو دپوهنی مدیران دمدیرانو په کا لنی مجلس کښی دګډون له‌امله مرکز ته راغلی دخپلومربوطو زده کړونکو آثار ورسره راولی چه وښودل شی. لکه چه په غه‌ښودنه کښی دمرکز دلومړینو ښوونځیو دمسلکی او ثانوی ښوونځی اودولایتو دمسلکی اوثانوی - ښوونځیو دزده کړونکو آثار چه (۵۰۰۰) نه‌زیات ؤو ښودل شول او مسابقه ئی وشوه اولدی امله چه‌ددغه‌کار تشویقی جنبه نوره هم تقویه‌شی دثانوی‌تدریساتو ریاست دوزارت له مقام څخه‌د منظوری له اخیستلو نه وروسته یوواکمن هیئات وټاکه‌چه په‌یوه ټاکلی تناسب سره دالومړنیو، منځنیو اودهلګانو اونجونو دلیسو) دبیلو بیلو دواوړیرومهمو آثارو ته‌جا ئزی‌وویشی.

لدی کبله چه زده کوونکی دبکلوریا ددوری له‌بشپړو لو نه وروسته او د زده کړی له بشپړ و لو نه دپخوا له خپلو اولیاؤ سره خارج ته‌ځی دبیر ته‌را ګرځید و په وخت کښی ئی تعلیمی تصدیق په‌انګلسی ژبه ور کول کیږی .

دمعلمینو، معلماتو مامورینو مستخدمینو اواجیرانو بودجه‌چه‌ددوهم پنځکلن پلان پراساس ئی پیشبینی‌شوی‌ده اودمفصل لست ئی دمرکز او دثانوی تدریساتو دمربوطو ولایتو له‌ښوونځیو څخه جزوار غو بښتل شوی دی بو دجه ئی دپلان دبور ددریاست اودبودجی دمدیریت سره دمشوری نه‌وروسته‌درارسیدلی دمنظوری‌سره سم ترتیب اومربوطو مراجع ته‌ئی واستول‌ه شو . او ضمنا د پخوانیو ودانیو ترمیم او دنمیکاره ودانیو دبشپړولو اود هغو ودانیو چه دمرکز او ولایتو دښوونځیو دپاره ئی نوی پیشبینی شوی‌ده منظور شوی‌پیسی ئی دتعمیراتو له‌مدیریت سره‌دمشوری نه‌وروسته‌دهغو ښوونځیو دضرورت له‌مخی ویشل شوی او د تعمیراتو مدیریت په‌لاس مربوطو مراجعو ته ایستول شوي دي.

## دمسلکی تدریساتو دریاست فعالیتونه:

دمسلکی تدریساتو ریاست چه دمربوطو ښوونځیوغایه ئې په بیلو بیلو شقو کښې دفنی کسانو روزل دي دګران هیوا په بیړه تحولاتواو پرمختګو کښې ئې دانکشافی پروژوسره سم دپرو ګراموا و کارکاؤ په اصلاح او تکامل دښوونځواوزده کوونکو په روزنه او زیاتولو د مسلکي ښوونځیو په زیاتولو اودودانیو په اصلاح کولو کښې فعالیتونه کړیدی چه لنډیز یې پالاندې ډول دی :

۱: نوی تاسیسات او ځانګو او ښوونځیوته ترقی ورکول .

الف: په ولایتو کښې دمستعجله دارالمعلمینو دځانګو پرانستیل .

له دې کبله چه دهیواد په مرکز اوولایتو کښې دلومړینو ښوونځیو د انکشاف ـ او زیاتوالی په اثر ښوونکو ته ز ښته زیاته اړه لیدله کېږی نو دښوونکی دکموالی دلری کولو له امله په ۴۱ ـ کښې په ولایتو کښې دمستعجل دارالمعلمینو په نامه دمنځنیو ښوونځیو اودارالمعلمینو په څنګ کښې دښوونکو درروز لو «۲۹» څانګیجوړې شوی چه ۱۳ څانګی ئې لیلیه او ۱۶ ئې نهاری دی او په غو ولایتو کښې پرانیستلی شوي دی :

د قطغن د پوهنې په مدیریت کښې یوه لیلیه او دری نهاري ځانګی .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د هرات | » | » | » | » | یوه | » | |
| د پکتیا | » | » | دوه | » | . | . | . |
| دغوراتو | » | » | یوه | » | . | . | . |
| د بدخشان | » | » | » | » | . | . | . |
| د ننګرهار | » | » | یوه | » | څلور | » | » |
| دغزنی | » | » | | | یوه | » | » |
| دمیمنی | » | » | | | » | » | » |
| دپروان | » | » | | | دوې | » | » |
| د کابل په لوګر کښې | « | » | | | یوه | » | » |
| په شبرغان کښې | | | | | » | » | » |
| «فراه کښې | | | یوه | » | . | . | . |
| «ګرشك کښې | | | دوه | » | . | . | . |
| «کندهار کښې | | | | | » | » | » |
| «تالقانو کښې | | | . | . | » | » | » |
| «مزارشریف کښې | | | دوه | » | . | . | . |

دغه راز د کندهار او ننګرهار په ولایتو کښو دوه نوی تجربوی ښوونځې تأسیس شویدی .

پدغو ښوونځیو کښی دمربوطو دارالمعلمینو دښو و نځیو زده کوونکی درسی تطبیقات کوی

## ب: دهوټلدارۍ ښوونځی :

دهوټلدارۍ د پاره چه فنی او اداری پرسونل می په کارونو د پوهنی وزارت دسږ کال په سرکښی دهوټلدارۍ ښوونځی تأسیس کړ . پدغه ښوونځی کښی دنهو تو لګیو فارغ التحصیلان منل کیږی چه ځینی ئی لیلیه او ځینی ئې نهاری دی .

## ج: ددیپارتمنتو تشکیل :

دغه لوی تشکیل په اساس چه په ٤١ کښی دمسلکی تدریساتو دپاره منظو ر شو دالاندی ډول دیپارتمنتونه دمربا طو ښو ونځیو دځارنی او لارښو دنی له امله ددغه ر یاست په تشکیل کښی زیات کړی شول :

### ۱: دښوونکو دروزنی لومدیریت:

دغه مدیریت په ۱۳٤۰ کښی په کار پیل وکړی چه دمرکزاوولایتو ددا را لمعلمینو دښو و نځیو ، د بدنی روزنې د ښو و نځی او دا بن سینا دښو و نځی ځارنه اولارښو د نه کوی .

### ۲: تخنیکی لوی مدیریت:

تخنیکی لوی مدیریت چه دمرکز اوولا یاتو دمیخانیکیی ښو و نځیو ځانه او لارښو د نه کوی او د ټا نوی تخنیک ښو و نځیی هم ورپوری تړل شو یدی د ٤١ کال دلږم دمیاشتی له اول ځخه چه تأسیس شوی او په کار ئی کړ یدی

### ۳: دکرهنی دښوونځیو لوی مدیریت:

چه دکرهنی دښو و نځیو لارښو د نه کوی دسږ کال په اول کښی ی تأسیس شو یدی

### ۴: ددینی مدرسو لوی مدیریت :

دغه مدیریت چه دمرکز او ولایاتو ددینی مدرسو چاری اجراه کوی د ٤١ کال دکب په میاشت کښی تأسیس شوی دی.

د: دصنایعو په ښو و نځی کښی دسیرا میک دځانګی په نامه یوه نوی ځانګه زیاته کړی شوی ده.

ه: دشاه دخت بلقیس مسلکی لیسه چه په ۴۰-٤١ کښی ئی ۱۲ ټولګی ته ارتقاء کړی وه د ٤١ دمرغومی په میاشت کښی ئی دخپلو فارغ التحصیلا تو شپا ړ س کسیزه لومړی دسته ټولنی ته تقدیم کړه چه په مربوطو پوهنځیو کښی وویشل شوې .

په ٤١ کال کښی د مسلکی ښوونځیو د فارغ التحصیلانو شمیر په لاندی ډول توضیح کیږی:

| | | |
|---|---|---|
| عربی دارالعلوم | ٤١ | تنه |
| شرعیه مدرسه | ۲۷ | » |
| بلقیس | ۱٦ | » |
| اسدیه | ۸ | » |
| دننګرهار دارالمعلمین | ۱۹ | |

## نوی مقرری

دمطبوعاتو دوزارت معین
ښاغلی محمد خالد روښان

د پلان دوزارت معین ښاغلی
عبدالله یفتلی

دمخابراتو دوزارت معین ښاغلی
انجنیر نصرت الله ملکیار

دفوایدعامې دوزارت معین
ښاغلی محمد یعقوب عطایی

## نوی مقرری

د پوهنې د وزارت د مسلکي
تدریساتو رئیس ښاغلی
دکتور سیف الرحمن صمدی

د پوهنې د وزارت د پلټنې رئیس
ښاغلی پوهاند غلام حسن مجددی

د پوهنی د وزارت د پښتو ټولنې مشر
ښاغلی پوهاند صدیق الله رښتین

د پوهنتون د انجنیری د پوهنځي
رئیس ښاغلي دکتور عبدالغفور قیسانی

د پوهنې د تجارتي مطبعې رئیس
ښاغلی عبدالغفور احمدی

| | |
|---|---|
| دارالمعلمین | ۸۰ تنه |
| نجم المدارس | » ۱۳ |
| فخرالمدارس | » ۵ |
| دکندهار میخا نیکی | » ٤۹ |
| دخوست میخا نیکی | » ۳۳ |
| دفراه په صنا ئعو کښې | » ۱۲ |
| دابن سینا په ښوونځی کښې | » ۳۲٦ |
| دثانوی تخنیك » » | » ۷۲ |
| دکرهڼې » » | » ۷۵ |
| دتجارت » » | » ۲۵ |
| لیلك او شمیر » » | » ۳۱ |
| دصنایعو » » | » ۵٦ |
| دسپورت » » | » ۹ |
| دکابل دمیخانیکی ښوونځی له نهم ټولګی څخه | » ۱۲٦ |
| » » » » دوولسم » » | » ۱٤ |
| دهرات په جامع مدرسه کښې | » ٦ |

دمسلکی تدریساتو د ریاست دمربوطو ښوونځیو دداخله شمیر لست په ٤۲

کابل کښې

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | دتجارت په ښوونځی کښې | ٤۰۰ تنه |
| ۲ | د بلقیس » | » ۳۲٦ |
| ۳ | دکابل دصنایعو » | » ۳۷۹ |
| ٤ | دثانوی تخنیك » | » ۳۵۲ |
| ۵ | د کرهڼې » | » ۲٦۰ |
| ٦ | دهوټلداری » | » ۲۸ |
| ۷ | دکابل ددارالمعلمینو » | » ٤۷۲ |
| ۸ | د بدنی روزنی » | » ۲۰٦ |
| ۹ | داداری انستیتوت » | » ٦۵ |
| ۱۰ | دکابل په میخانیکی ښوونځی | » ۷۵٤ |
| ۱۱ | دخوست » » | » ۱٦۳ |
| ۱۲ | دکندهار » » | » ۱۵۵ |
| ۱۳ | دصنا ئعو » » | » |
| ۱٤ | دفراه » » | » ٤۲۸ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۵ | دبغلان دکرهنی پهښوونځی کښي | ٤ تنه |
| ۱٦ | دهرات ددار المعلمینو « | ۳۰۳ » |
| ۱۷ | د ننگرهار « « | ٦۱٦ » |
| ۱۹ | دکندهار پهمیرویس « « | ۳٤۸ » |
| ۱۹ | د ابن‌سینا په ښوونځی کښي | ۱۲۷۹ » |
| ۲۰ | دلیك او شمیر « | ۲۹٦ » |
| ۲۱ | دکابل په عربی دار العلوم « | ۲۰٤ » |
| ۲۲ | دپغمان په شرعیهمدرسهکښي « | ۱۸۹ » |
| گڼه | ښوونځی | داخلهشمیر |
| ۲۳ | په نجم المدارس کښي | ۱۲۵ تنه |
| ۲٤ | دمزار شریف په اسدیه کښي | ۱۱۰ » |
| ۲۵ | دمیمنی په ظاهر شاهی کښي | ۵۰ » |
| ۲٦ | دتخارستان په مدرسه کښي | ۷٦ » |
| ۲۷ | د هرات په فخرالمدارس کښي | ۱۳۹ » |
| ۲۸ | په جامع مدرسه کښي | ۱۳۸ » |
| ۲۹ | دغزنی پهمستعجل دارالمعلمین کښي | ۳٤ » |
| ۳۰ | د کندهار « « | ٦۵ » |
| ۳۱ | دگرشك « « | ٦۹ » |
| ۳۲ | دفراه « « | ۳۵ » |
| ۳۳ | دبدخشان « « | ۳۰ » |
| ۳٤ | دمزارشریف « « | ۷۰ » |
| ۳۵ | دشبرغان « « | ۳۵ » |
| ۳٦ | دمیمنی « « | ۳۵ » |
| ۳۷ | دهرات « « | ٦۲ » |
| ۳۸ | دغوراتو « « | ۳۵ » |
| ۳۹ | دلوگر « « | ۳٦ » |
| ٤۰ | دننگرهار « « | ۱٦۰ » |
| ٤۱ | دپکتیا « « | ٦٦ » |
| ٤۲ | دپروان « « | ۹۵ » |
| ٤۳ | دقطغن « « | ۱۰۵ » |
| ٤٤ | دتالقانو « « | ٤٤ » |

**ښودنهاوروزنه**

دمسلکي ښوونځیو ښوونکي تر روزنه لاندی نیول شوی دی او یو شمیر تهلي

خارجي سکالر شپونه ورکي شوي دي چه دهغوي علمي سويه جګه شي او دخپلو درسي پروګرامو پرمخ بيولو کښي پرېالي وي لکه چه په تير کال اوسني کال کښې (۴۰) تنه دلويديز المان د سکالر شپ تر پروګرام لاندې لويديز المان ته او (۱۸) تنه دامريکي متحده ولاياتو ته لېږل شوي دي سربيره پر هغو وخت په وخت د ښوونکو د پاره ژمني اودوبيني ورکشاپونه داير شوي دي چه د متخصصينو تر کتنه لاندي پخپلو اختصاصي څانګو کښې زيات معلومات حاصل کوي په تطبيق کولو کښي ئي هم لارښوونه شوي ده.

دمسلکي ښوونځيو دکتابخانو او لابراتوارو په باب داسي اجراآت او اکمالات شويدي.

**الف:** دطلابو د زياتو معلوماتو او کتابخانې د اکمال د پاره دپغمان دشرعيه علومو مدرسي ته څو علمي کتابونه تهيه شويدي.

ب: دکابل ددارالمعلمينو کتابخانه ښه ترتيب شوي ده اوطلابو تر استفادې لاندي شوي ده.

ج: دثانوي تخنيك دښوونځي کتابخانه چه دساينس او اجتماعي (۸۵۰۰) کتابونه پکښي دي ترتيب شوي او دکتابخانې دعمومي دستور سره سم تر استفادې لاندې ده. دغه راز دکندهار او ننګرهار ددارالمعلمينو کتابخانې مرتبې شويدي.

دمربوطو ښوونځيو په نورو کتابخانو کښي څو ئي چه امکان ؤ نوي کتابونه تهيه او ترتيب شويدي.

ه: دکابل ددارالمعلمينو دپخوانيو لابراتوارو کمبود سامانونه او لوازم بشپړ شوي او تر استفادې لاندې دي.

و: دکندهار، ننګرهار، هرات ددارالمعلمينو او د تجارت، بلقيس اود بغلان دکرهڼي ښوونځيو ته دلابراتوار سامانونه تهيه او تراستفادې لاندې دي.

ز: بو اندازه سامانونه دموټرو، ماشينو، برښنا اودنجارۍ دشاپونو دپاره تهيه او تراستفادې لاندې دي. دغه راز د شاپ، دکرهڼي د فارم او نورو دپاره هم سامانونه او لوازم بشپړ شويدي.

ح: دثانوي تخنيك دکابل، خوست، کندهار ميخانيکي ښوونځيو اود کابل او فراه دصنايعو دپاره دضرورت په اندازه سامانونه او لوازم تهيه شويدي.

دانګليسي ژبي يومجهز لابراتوار دکابل په دارالمعلمينو کښي په کار پيل کړيدي دغه رنګه دلسان يو لابراتوار په ثانوي تخنيك کښي پرانيستل شو.

## درسي پروګرامونه:

دکرهڼي دتخنيك، ميخانيکي دصنايعو په ښوونځيو اودينې مدرسو کښې چه پخوا به پښتو تدريس نه پکښي کيده د پښتو مضمون پکي زيات شويدي دولايتو ددارالمعلمينو په پروګرامو کښې دښوونې اوروزني مسلکي مضمونونه او د تدريس زده کړه اضافه شوي دي.

دمستعجلو دارالمعلمینو دښانګوډپاره نوی پروګرام ترتیب او دسږنی تعلیمی کال له اول څخه به تر تطبیق لاندی کړی شی .

دلیك او شمیر دښوونځی به پروګرام کښی تجدید نظر شوی د ساینس مضمو نو نه اجتماعی درسونه، لسان او مسلکی مضمونو نه تهیه او تقویه شویدی. دصنایعو دښوونځی پروګرام هم نوی او تقویه شو .

به موسیقی کورس کښی دتیر کال په نسبت زیات فعالیت شویدی او او س (۱۲۰) تنه زده کړونکی لری او په نظر کښی دی چه په دی نږدی وختو کښی به دهغوی شمیر زیات کړی شی. دغه کورس د پرمختګ په حال کښی دی او تر اوسه پوری ئی دزیاتو بلبل شویو کسانو په مخکښی دری کانسرتونه ورکړیدی .

## دپښتوټولنی داجراآتو رپورت

### الف ـ چاپ شوی کتابونه:

۱ـ دزده وینا دښاغلی الفت داشعارو مجموعه .

۲ـ دپښتونستان دورځی مشاعره (د یوی رسالی په شکل) دکابل مجلی دمدیریت له خوا .

### ب ـ هغه کتابونه چه تر چاپ لاندی دی:

۱ ـ سیرة النبی څلورم ټوك دښاغلی سیفی ترجمه .

۲ـ پښتانه شعراء دریم ټوك .

۳ـ راز ـ دښاغلی بختانی داشعارو مجموعه .

٤ـ دپښتو ادبیاتو تاریخ دریم ټوك دښاغلی حبیبی تالیف .

٥ـ دفلسفی تاریخ ـ دښاغلی سیفی ترجمه .

٦ـ احمدشاهی شاهنامه دحافظ ګل محمد مرغزی اثر او دښاغلی عبدالشکور رشاد تعلیق او تحشیه ـ (خطاطی شوی ده) .

### ج ـ نوی تالیفونه او ترجمی:

۱ـ سیرة النبی (ص) پنځم ټوك دښاغلی سیفی ترجمه .

۲ـ دماشومانو دپاره قیصی دانګریزی نه دښاغلی عزیز الله پښتو نمل ترجمه او ټولونه.

۳ـ ملی موسیقی ـ دپښتو ملی بد لی او غاړی په ۶۰۰ مخونو کښی د ښاغلی اتمان تالیف .

٤ـ تام سایر (انګریزی ناول) دښاغلی لودین ترجمه .

٥ـ انشاء اصول دښاغلی شپون تالیف په سلو کښی اویا لیکل شوی دی .

٦ـ دپښتو ګرامر دښاغلی خادم له خوا په سلو کښی شپیته لیکل شوی دی .

۷ـ دمعاصرو شاعرانو دغوره اشعارو یوه مجموعه ـ د ښاغلي بختاني انتخاب او ټولونه.

۸ـ ژوري څیړنې د ښاغلي حفیظ الله امین تالیف چاپ ته تیار دی .

۹ـ تاریخ قرون جدیده دالبرماله تالیف د ښاغلي ثابت ترجمه تر نیمائی پوري ترجمه شوی دی .

## قاموسونه :

۱ـ د پښتو ادبي او شعري قاموس:

د دغه قاموس مقدمه او تمهید د ښاغلي واسعي په قلم لیکل شوی او په کابل مجله کښې خپور شوی دی چه د (۱۰۰) مخو په شاوخوا کښې یوه رساله تری جوړه یږي. د قاموس د موادو دراټولو د پاره د پښتو پخوانی دیوانونه ترکتنې لاندې دی. دا کار ښاغلي واسعي کوی .

۲ـ د پښتو د نوی قاموس د جوړولو ترتیبات د لغاتو د مدیریت له خوا نیول شوی دی.

په دې قاموس کښې به د پښتو لغاتو تشریح په پښتو وشي چه دا کار هم د ښاغلي واسعي له خوا شروع شوی دی .

۳ـ د (انگلیسي ـ پښتو) یو قاموس په جوړولو پیل شوی دی. دغه قاموس به د دیرش زرو تنو لغتونو په شاوخوا کښې جوړه یږي. ترا وسه پوري یې د ( ای ـ بي ـ سي ) رد یفونه پای ته رسیدلي دی او س به دې قاموس کښې د اکسان کار کوی .

(شپون ـ پولاد ـ لودین)

## د کابل مجله:

د کابل میاشتنی مجله په مرتب ډول خپره شوی ده.

## پښتو کورسونه:

د ۱۳٤۱ د عقرب په اول کښې د پښتو تدریساتو لوی مدیریت او ورسره د ( زیری ) اوونۍ ورځنۍ جریده په پښتو ټولنې پوري مربوط شوی دی :

د مرکز د شپږو سمستړو امتحانونه اخستل شوی او اوس په ولایاتو کښې امتحانونه اخستل کیږي .

## مقرریه:

څرنګه چه ښاغلي الفت د پښتو ټولنې پخوانی رئیس د ښاغلي دکتور محمد یوسف په کابینه کښې د قبایلو د مستقل رئیس په حیث مقرر شونو د ۱۳٤۲ د سرطان په (۷) ښاغلي پوهاند صدیق الله رښتین د پښتو ټولنې د رئیس او ښاغلي عبدالخالق واسعي د لغاتو د شعبې مدیر د پښتو ټولنې د مرستیال په حیث وقاکل شول.

## متفرق کارونه :

د دایرو او موسساتو د رالیږل شوو ـ نومونو ـ لوحو او لایحو ترجمه په پښتو د دایرالتالیف د ریاست د پښتو ترجمو کتنه .

## د تاریخ دټولنې د ریاست داجرا آتو رپوټ:

د تاریخ دټولنې دریاست د اجرا آتو کښې دا لاندې نکتې د یادولو وړدي:

۱: دمسلکی غړو برابرول : لکه چه تیر کال دغې موضوع ته اشاره شوې ده چه دمسلکی غړو شمیرې زیات شویدی اواوس ئې شمیر ۱۰ تنو ته رسیږي. دوې ټولو ته دطرح شوی پروګرام سره سم موضوعات سپارل شویدي او ددوی د کار نتیجه دمیاشتنی رپوټ په ډول دټولنې د اخلي مجلس ته ښودل کیږي. ضمناً هغو کسانو ته چه د تحقیقی چارو له مهدې څخه یښه وجه وتلي وی په خارج کښې دمطالعې فرصت هم ورکول کیږي لکه چه پدې وختو کښې په دتاریخ دټولنې د ریاست یو مسلکی غړی دزیاتو معلوماتو دپاره دبرټش کونسل د مرستې له لیارې څخه انګلستان ته واستول شی. پدغه اساس هیله شته چه په څو را تلونکو کلو کښې لایق اشخاص دتاریخ دټولنې ریاست ته وروزو .

**۲: د کتابخانې تأسیس :** دتحقیق دوسایلو برابرولو د پاره دیوی کتابخانې تأسیس چه ښخوا منظور شوی وه یو بل ګام دی چه دغړو او منسوبینو په کار کښې اسانتیا پیښوی لکه چه دټولنې په تشکیل کښې اوس دستی یو مدیریت د خپرونو او کتابخانې دمدیریت په نامه زیات شویدی چه له یوې خوا دکتابو په غونډولو ترتیب او تصنیف کښې اوله بلې خوا دتاریخ دټولنې دخپرونو په چاپولو او تصحیح کښې مجاهده کوی. ضمناً دتاریخ دټولنې ریاست له ځینې فرهنګی مؤسسو سره لکه بریټس کونسل اود پاریس دمطالعاتو لهعالی ښوونځی سره په تماس کښې شوی دی او خطی نسخو دملګرو فلمو او فوتوکوپی ګانو دتهیه کولو دپاره ئې دغو وړده حاصله کړې ده .

**۳: مسلکی چارې:** سربیره پرموقوته خپرونو لکه چه ( دآریانا مجله هره میاشت په پښتو او فارسی او د افغانستان مجله په هرو درو میاشتو کښې په انګلیسی اوفرانسوی ژبو ) خپریږی دتاریخی کتابو اومتونو دچاپولو او خپرولو په برخه کښې داسې چارې سرته رسیدلې دی .

**الف:** هغه کتابونه چه د۴۱کال له نیمائی راهیسې چاپ شویدی .

۱ : طبقات الصوفیه دخواجه عبدالله انصاری له امالی څخه، دښاغلی عبدالحی حبیبی تعلیق او تحشیه .

۲ : پښتو و لویکان غزنه دښاغلی حبیبی تألیف.

۳ : افغانستان درعصر ګورګانیان هند ( افغانستان دهند دګورګانیانو په عصر کښې) دښاغلی حبیبی تألیف .

۴ : دافغانستان درقرن نزدهم (افغانستان په نولسمه پیړۍ کښې) دښاغلی سید قاسم رشتیا د تألیف څخه په پښتو ترجمه .

٥ : یوه رساله په فرانسوی ژبه د موسیو کیفر تألیف چه عنوان ئی (غور د پخوا یك دود مان ملی افغانی است) دی (غوریان یوه افغانی ملی کورنی ده).

ب : هغه کتابونه چه ترچاپ لاندی دی :

۱ : طبقات ناصری د ښاغلی حبیبی له حواشیو او تعلیقاتو سره.

۲ : زبان دو هزار سال قبل افغانستان (د افغانستان دوه زره کاله پخوا ژبه) یادسره کوتل د کتیبی تحلیل له ښاغلی حبیبی څخه.

۳ : هنر خطاطی افغانستان دردو قرن اخیر (په افغانستان کښې په دوو وروستیو پیړیو کښې د خطاطۍ هنر) د ښاغلی عزیزالدین وکیلی پوپلزائی له تالیف څخه ترجمه.

٤ : غور وغوریها (غور او غوریان) د ښاغلی عتیق الله معروف څخه.

٥ : وهوتکیها (هوتك) کتاب په پښتو ژبه د ښاغلی بینوا تألیف.

٦ : د غونو یاتو د نظامی تشکیلاتو په باره کښې. د غه ددی ورو ستی کتابونه د طباعتی مشکلاتو په نسبت د آریانا په مجله کښې ټوټه ټوټه خپریږی. البته د نشر په پړول به هم جلا چاپ او خپاره شی.

ج : هغه کتابونه چه چاپ ته چمتو کیږی.

ذین الاخبار گردیزی چه میکرو فیلم ئی راوسیدلی دی او د تصحیح، تحشیې او نور کار به ئی ژر په زړه شروع شی.

۲ : تاریخ احمد شاهی (احمد شاهی تاریخ) چه ژر بـه ئی میکـرو فیلم راوړ سیږی.

۳ ـ په سلسلۀ افغانستان در متون قدیمه : (د افغانستان په پخوانیو متنو کښې) د افغانستان په باره کښې د چینی زوارو یاد داشتونه.

## د پلټنې دریاست اجرا آت :

د لومړۍ څانګې :

۱ ـ دهغو معلمینو او متعلمانو تغییر او تبدیل چه له مرکز څخه ولا یتو ته او یا د هغه په معکس نقل مکان کوی د پارچې پرمخ تبدیلیږی او هغه ښوونځی ته معرفی کیږی چه دوی وغواړی او دریاست مقام ئی لازمه وګڼی. همدغه ډول ئی له پخوانی ښوونځی څخه توی ښوونځی ته د سوانحو کلاتونه او نور سوابق ئی د همدې څانګې په وسیلو غوښتل کیږی او مربوطو مراجعو ته ئې استول کیږی.

۲ ـ هغه متعلمین چه د مرکز او ولایتو په لیسو او ښوونځیو کښې شامل وی او د متعلمی په موخت کښې ئې ته په عسکری کښې نوم لیکنی د مربوط ښوونځی د اطلاعین له مخې ئې د پیچې جلب د همدې څانګې په واسطه تیاریږی. په همدغه ترتیب سره کله چه هغه ذده کړونکی له ښوونځی څخه فارغ شی او یا په کوم بل علت له ښوونځی څخه واېستل شی عسکری مقدس خدمت ته ئی د جلبولو او لیږلو لپاره د همدې څانګې په واسطه مربوط مکلفیت ته خبر ورکول کیږی.

۳ ـ هغه زده کوونکی چه له ثانوی یا مسلکی ښوونځیو څخه فارغ شوی او زده کړې ته ئې د دوام ورکولو د پاره د پوهنې وزارت له خوا خارج ته لیږل کیږی او هغه کسان چه په خارج کښې ئې د زده کړې په وخت کښې پخپله وخیږی وطن ته د هغوی د بیرته راتګ ترو خته پورې له مربوطو څانګو څخه له معلوماتو نه وروسته هم د پېچې د پاره د هغوی د جلب تمالیدل د همدغې څانګې څخه کیږی .

٤ : هغه زده کوونکی چه د مرکز او ولایتو د لیسو له دوو لسمو ټولګیو څخه او له مسلکی ښوونځیو څخه فارغ شوی او یا په کوم علت سره د ښوونځی له دوولسمو ، یوولسمو ، لسمو ټولګیو او ، ښکته له هغو څخه پرتلی وی او هغه زده کوونکی چه تر عسکری جلب لاندې وی او غواړی چه د احتیاط د ضابطانو په کورس کښې ځان شامل کړی د ملی دفاع وزارت د هغوی معرفی کول او د هغوی د سوانحو د کارتو خانه پرې کول د دفاع د وزارت په سلسله د مربوطو ښوونځیو په ذریعه د همدې څانګې په ذریعه کیږی .

۵ ـ د ځینو زده کوونکی ایستل او هغوی ته جواز ورکول چه د پر له پسې ناکامیدو په نسبت له ولایتو څخه مرکز ته او یا له مرکز څخه ولایتو ته نقل مکان کوی او د ناکامۍ ئې د لوړ رياست ته تثبیت شی دغه اجراآت هم د دغې څانګې په ذریعه کیږی .

٦ ځینې متفرقه لیکونه چه د پلټنې له ریاست څخه صادر یږی او یا له نورو څانګو څخه را رسیږی هغه هم له دغې څانګې څخه اجراء کیږی .

۷ : هغه زده کوونکی چه د لیسو او مسلکی ښوونځیو په اوومو ، اتمو ، نهمو او لسمو ټولګیو کښې وی او نوم ئې په عسکری کښې و رزی ایستل ئې د زیات کلنۍ په نسبت د همدغې څانګې په واسطه کیږی .

## ددوهمې څانګې د اجرا آتو لنډیز :

۱ : له یوه ښوونځی څخه بل ښوونځی ته د لیسو د طلابو تغییر او تبدیل ، د دوه کلنو ناکامانو ایستل او د جواز ورکول د دغې څانګې مربوط دی .

۲ : د لیلیه او نهاری طلابو معرفی کول هم د دغې څانګې وظیفه ده .

۳ : هغه زده کوونکی چه غواړی د نورو وزارتخانو په ښوونځیو او یا کورسو کښې شامل شی معرفی کول ئې په همدغه څانګه پورې اړه لری .

٤ : د هرات ، ننګرهار ، پکتیا ، قطغن او نورو ولایتو په لیلیه ښوونځیو کښې د (٦) ټولګیو د ځینی زده کوونکو د شاملیدلو امر همدا څانګه ورکوی .

۵ : په ٤۱ کال کښې په ح ـ ښ کښې د شاملیدو د پاره د ولایتو د پوهنی مدیریتو ته لاړ ښوونه شوی ده چه د ملی دفاع د هیأتو د ورتګ په وخت کښې د بست په قرار له خپلو مربوطو ښوونځیو څخه د (٦) ټولګیو له فارغ التحصیلانو څخه ورمعرفی کړی . لکه چه (٤۹۵) تنه فارغ التحصیلان له دغه امله تماکل شوی وو .

٦ : په ٤۱ ـ ٤۲ کښې د ابن سینا په ښوونځی کښې د شاملیدو د پاره د ولایتو او پوهنی څخه (۳۵۱) تنه معرفی شویدی .

## نوی مقرری

د پلان په وزارت کښی د پلان
رئیس ښاغلی محمد اسحق عثمان

د مالیې د وزارت د گمرکاتو رئیس
ښاغلی دکتور غلام حیدر داور

د پلان د وزارت د احصائیې
رئیس ښاغلی باقی یوسفزی

په چمن کښی افغانی وکیل التجار
ښاغلی عبد الرشید

# نوي مقرري

د تجارت د وزارت مشاور او د تجارت د اطاقو لوی رئیس ښاغلی دکتور نور علی

د تجارت د وزارت د تجارتي ریاست کفیل ښاغلی دکتور محمد اکبر عمر

د تجارت د وزارت د تدقیق او مطالعاتو او د احصائیې او پلان د څانګې رئیس ښاغلی عبدالغفور سراج

د مالیې د وزارت د ضرابخانې رئیس ښاغلی غلام دستګیر

۷: په ۱۳۴۱ ـ ۱۳۴۲ کښې د صنايعو په ښوونځي کښې د شامليدو د پاره د ولايتو له پوهنې څخه (۹۹) تنه

۸ » » » میخانیکي » » » » (۸۳) »

۹ » » » سپورت » » » » (۳۰) »

۱۰ » » » دليك داصولو » » » » (۱۲۲) »

۱۱ » » » » دقبائلو درياست په سلسله دخو شحال خان په ليسه کښې د شامليدو د پاره (۲۰۰) تنه معرفي شوي دي.

۱۲ » » » » ذ پښتو ليسو په ښوونځي کښې د شامليدو د پاره د ولايتو له پوهنې څخه (۳۰) تنه معرفي شوي دي.

۱۳ » » » » د کارتوګرافی په ښوونځي کښې د شامليدو د پاره (۳۰) تنه معرفي شوي دي.

۱۴ » » » » د ننګرهار د کانال په کورس کښې » (۵۰) تنه

۱۵ » » » » د کرهنې د وزارت » » » » (۲۵) »

۱۶ » » » » د مرکز له ليسو (حبيبيه، استقلال، غازي، نجات او نوي کابل) څخه هم د مستعدو ضابطانو او په ح ـ پ کښې د شامليدو د پاره د (۹ ـ ۱۲) ټولګيو پوښتنې فارغ التحصيلان تاکل شوي او معرفي شوي دي.

## د دريمې مخصوصه څانګې لنډيز راپور

د پلټنې د رياست د دريمې څانګې د رياست د چارو محور دي.

۱ ـ په دغه څانګه کې يو تن مفتش د آمر په حيث او يو نفر سرکاتب او يو تن کاتب کار کوي چه د ۱۳۴۱ کال د سنبلې د مياشتې څخه د ۱۳۴۲ کال د جوزا د مياشتې تر آخره پورې (۳۳۱۸) مکتوبونه وارد او صادر شوي او د سږ کال د سنبلې تر مياشتې پورې ګوندې (۶۷۰) نور مکتوبونه وارد او صادر شي.

۲ ـ د ولاياتو د پوهنې مديريتو د لايحوي تفتيش نتيجې چه په دغه کال د مرکز د مفتشينو له خوا تفتيش شويدي د پلټنې د رياست کميسيون ته وړاندې شوي او لازمې فيصلې اخستل شوي او مربوطه مراجعو ته خبر ورکړ شويدي او د ولاياتو د پوهنې نورو مديريتو د تفتيش نتيجې چه د مرکز د پلټونکو له خوا پلټل شوي وروسته د نتيجې د سپارلو نه کميسيون ته وړاندې کيږي او لازمه فيصلې اخستل کيږي او نتيجه ئې مربوطو مراجعو ته خبر ورکړ کيږي.

۳ ـ محاکماتي دوسيې چه د دغې څانګې ته رسيدلې مربوطو محاکمو ته ليږل شوي او وروسته د فيصلې څخه لازمه اجرآت شوي او همداسې نورې چه رسيږي د غه راز اجرآت کيږي.

۴ ـ د پلټنې رياست (۲۲) تنه مفتشين لري چه هر کار اپاره چه موظف کيږي نتيجې ئې ورد دې څانګې ته سپاري چه د نوموړې نتيجې په اساس د دې څانګې له خوا اجرآت شوي او کيږي.

۵- د پلټنې دریاست د مفتشینو څخه یو ګروپ میمنې او شبرغان یو ګروپ د غزنی داعلی حکمو متو د پلټنې لپاره موظف شو یدی چه لا یحوی تفتیش وکړی بر سیره پردی دری ګروپونه د پوهنې وزارت په مرکزی دایرو کښې د پلټنې لپاره موظف شو یدی چه د دوی د فتیجی په سپارید و او د کمیسیون د فیصلې سره سم به را تلو نکو اجرا آتو اقدامات کیږی.

٦- تعلیمی مفتشینو به جاری تعلیمی کال کښې د مرکز د ځینو لیسو او ښوونځیو څخه کتنې کړیدی د دوی درا پورونو په اثر مربوطو تدریساتو او نورو مراجعو ته خبر ورکړ شو یدی چه په خپله برخه کښې لازمه اجرا آت وکړی .

۷- د مرکز لیلیو، ښوونځیو چه د مرکزی مفتشینو لخوا یې کتنې شو یدی در اپو رونو د کتنې په اساس چه د نواقصو د لری کو لو لپاره مربوطو دایروته خبرورکړی شوی چه لازمه اقدامات وکړی او په راتلو نکی وخت کښې همداسې اجرا آت کیږی .

## د ځلورمې څانګې راپور:

د پلټنې ریاست څلورمه څانګه په ٤٢ د ثور په ٦٤ نیټه نوی تشکیل شوی د ه دی څانګې وظیفه دا د چه کاندید شوی کسان معرفي کوی چه مربوط څانګه د تحصیل او معلومات له پاره باندنیو مملکتو ته و لیږی تراوسه پو ری یې (۸) تنه معرفی کړی دی او د سنبلې ترمیاشتې پو رې له ۴۰ تنو لازیات اشخاص معرفي شوی دی .

## د دار التالیف دریاست فعالیتونه:

د دار التالیف در یاست د خپرو نو اداره موظفه ده چه په مطابعو کښې د کتابو د چاپو لو او خپرو او خاره وکړی لکه څنګه چه د الاندی د پوتښنې سر کال (۲۲۹۱۰۰) ټو که درسی کتابونه او (۲۱۵۳۰) ټوکه درسی کتابونه او د سالی چاپ او خپری شوی دی سربیره پر هغو د فنې څانګې د ګستتنر په دستګاه کښې د پوهنې د وزارت د څانګو یو شمیر ضرورد پاڼې او جدولونه چاپ شو یدی .

۱- د لومړی ټولګی د پاره فارسی الفبی د ښاغلی محمد آصف مایل تالیف (۹۰۰۰۰) ټوکه
۲- د څلورم » » » قرائت » » » (٤٠٠٠٠) ټوکه
۳- د پنځم » » » » » » » » (۳۰٤۰۰) »
٤- کلیوالی لومړی کتاب په فارسی ژبه « عبدالغفور احمدی » (٦٣٠٠٠) »
۵- اووم دینیات په فارسی ژبه « شاه محمد رشاد » (۱۳۷۰۰۰) »
٦- د افغانهای انګلیسی می آموزند (افغانان انګلیسی زده کوی) د وهم انګلیسی کتاب داتم ټولګی د پاره د ښوونې او روزنې د مؤسسې تالیف (۱٤۰۰۰) ټوکه
۷- د کیمیا کتاب په فارسی ژبه د لسم ټولګی د پاره د ښاغلی محمد یعقوب مفتون تالیف (۸۰۰۰) ټوکه
۸ » » به پښتو » » » » » » » (۲۰۰۰) ټوکه

۹ـ فزیك په پښتو «داتم ټولګیو لپاره د ډاکټر میر نجم الدین انصاري تالیف (۲۰۰۰) ټوك
۱۰ـ د پښتو قرائت کتاب په پښتو ژبه د لسم ټولګي د پاره د ښاغلي عبدالرؤف بینوا تألیف (۵۰۰۰) ټوکه
۱۱ـ دینیات په پښتو ژبه داووم ټولګي د پاره د ښاغلي شاه محمد رشاد تألیف (۵۰۰۰) ټوکه
۱۲ـ د میرزا عبدالقادر بیدل غزلیات (۳۰۰۰) ټوکه
۱۳ـ سل ز ره ولي (چرا) په پښتو او فارسي ژبو دام . ایلن تألیف د آ ئین ترجمه (۳۰۰۰) ټوکه
۱٤ـ د فټبال د تاکتیك کتاب د ډنمارکرامو اتر د محمد امین برین ترجمه (۳۰۰۰) ټوکه
۱۵ـ د سید جمال الدین افغان مبارز کتاب د محمود ابوریه په تألیف د غلام صفدر پنجشیري ترجمه (۲۰۰۰) ټوکه
۱٦ـ د فرید او پروین کتاب چه د پوهوني اوروزني مؤسسې ترتیب کړیدی (۵۰۰۰) ټوکه
۱۷ـ د طفل در آغوش مادر (کوچني د مور په غیږ کښي) موسسې ترتیب کړیدی . ترجمه (۵۰۰۰) ټوکه

دغه کتابونه د ٤۱ دوړي له میاشتي څخه د ٤۲ د غبرګولي ترمیاشتي پوري له چاپه وتلي دي.

هغه کتابونه چه د سږ کال دوړي ترمیاشتي له چاپه وتلي دي.

دوهم فارسي قرائت (قرائت فارسي دوم) (۲۸۰۰۰) ټوکه، پښتو الفبي (د پښتو الفبا) (۵۳۰۰۰) ټوکه پښتو لومړي کلیوالي (دهاتي اول پښتو) (۲۹۰۰۰) ټوکه، فارسي دریم کلیوالي (دهاتي سوم فارسي) (۱۵۰۰۰) ټوکه، پښتو دریم کلیوالي (دهاتي سوم فارسي) (۱۰۰۰۰) ټوکه، پنځم پښتو قرائت (قرائت پښتوی پنجم (۱۳۰۰۰) ټوکه، اتم فارسي دینیات (دینیات هشتم فارسي (۸۰۰۰) ټوکه ، اتم بیولوجي (بیولوجي هشتم) (۸۰۰۰) ټوکه ، اتمه هندسه (هندسهٔ هشتم ) (۸۰۰۰ ) ټوکه ، یو ولسمه کیمیا (کیمیای یازدهم ) ( ۲۰۰۰ ) ټوکه ـ نهم الجبر (الجبر نهم ) (٤۰۰۰ ) ټوکه ، اتم فارسي ( فارسي هشتم ) (۱۵۰۰۰ ) ټوکه د لومړني دوړي درسي ممد حساب (۱۰۰۰۰) ټوکه، اتمه درسي ممده هندسه ( هندسهٔ ممد درسي هشتم) (۲۰۰۰) ټوکه بازیهای دور دنیا (د نړۍ چارپیره لوبي) ۳۰۰۰ ټوکه .

د حضرت بیدل رباعیات ( رباعیات حضرت بیدل ) (۵۰۰۰ ) ټوکه ، محمد (ص) په کوچني توب کښي ( محمد در خورد سالي ) (۳۰۰۰) ټوکه ، داووم ټولګي پښتو قرائت ( قرائت پښتوی هفتم ) (۱۰۰۰۰) ټوکه ټول (٤٦٦۱۰۰) ټوکه .

دخپرونو داداري دګستتنر د دستګاه خپروني :

| | |
|---|---|
| ۱ : دجغرافیائي سیمینار نتیجې | دوه سوه نسخې |
| ۲ : د پوهنې د مدیرانو د مجلس اووم پیشنهاد | » » |

۳: د (ویلیهم تل) لنډه نمایشنامه  څلور سوه نسخې
٤: دسکالر شپ اوفیلوشپ لایحه  دوه سوه «
۵: د پوهنی دصنایعو د تجارتی موسسی اساسنامه  دیرش «
٦: دموزیم د لرغون پیژنداو لارښودونکې (رهنمای باستان شناسی موزیم) یوزر ټوکه
۷: دولایتو د پوهنی دمدیرانو دیوټ پنځه سوه ټوکه ټول (۲۵۳۰) ټوکه ٤۱۳۳۰ پاڼې.

هغه خپرونی چه د ٤۲ دودی ترمیاشتی په ګستتنر کښی چاپ شوی دی:
۱: د موجودی جدول  (۲۰۰۰۰) پاڼی
۲: د کیمیاوی درملتو لست  (۲۰۰) نسخی
۳: د آسیائی هیوا دو د پوهنی د وزیرانو کنفرانسونه (۳۰) نسخی.

دخپرونو دانکشافی پلان پراساس یو ۳٦۰ مودل ګستتنر په لندن کښی جوړه شوی ماشین ترپیرودل شو اوپه نظرکی دی چه زرپه زره یوچستو فکس ماشین هم دخپرونو څانګی ته ترپیرودل شی او پدغه صورت کی به دخپرونو څانګه دمطابعو سره د کوچنیانو داقسانو (کیسو) درسی ممد و کتابو په چاپولو کی مرسته وکړی او هرډول کتابونه، وړ رسالی، جدولونه اولایحی به ښکلی صورت او له اصل سره سمی په زړه پوری چاپ کړی.

دخپرونو څانګی د کتابو دخپرولو او چاپولو په څا رنه کی داسانتیا پیښواواولدی املمه چه کتابونه په زړه پوری چاپ شی د کتابو دهویت دکارت په نامه یو شمیرکاغذونه چاپ کړی هرکله چه کوم کتاب چاپ ته تحی ؤ دغه څانه پری شوی کارت یوه نسخه له اصل کتاب سره مطبعی ته استول کیږی او دبل کارت نقل د کتاب له مسو دی سره دخپرونو په څانګه کی پاتی کیږی چه دغو کارتو د کتابو صورت او مشخصات هم په مطابعو او هم دخپرونو په اداره کی څرګند او روښانه کیږدی.

بل تدبیرچه پدی وختو کی د درسی کتابو دچاپولو په کار کی د ښیړی په اره نیول شو یدی هماغه یو ته د پوهنی له مطبعی څخه نورو مطابعو ته د کتابو لیږل دی لکه چه څو ټوکه کتابونه هوملی او دولتی مطبعی ته استولی دی.

امکان لری چه زرپه زره درسی کتابونه عسکری مطبعی ته هم ولیږل شی څکه دسمدسمی ضرورت او د کتابو د شمیرزیاتوالی له کبله امکان نلری چه د پوهنی مطبعه په ځان کړی چوپړت سره د پوهنی د ټولو کتابو د چاپولو له عهدی څخه ووتلای شی.

## دعرفان او د پوهنی دمجلو مدیریت:

دعرفان مجله د هری میاشتی په آخرکی دوه زره ټوکه چاپیږی او د هری ګڼی مخونه ئی له ۱۰۰ نه تر ۱۱۵ پوری دی او په مصورډول چاپیږی، دعرفان مضمونو نه

اوهغا لې له‌دې‌امله زیاتره بنوونکي او روزونکي جنبه لري چه زده کوونکي اوعلاقمندان ئې وکولای شي‌چه‌له‌نوپو روښونو څخه چه په ښود نه او روزنه کښې څرگندېږي خبرشي اواستفاده ورڅخه وکړي .

د۱۳۴۲کال په سرکې ئې د گډ ون کوونکو په غوښتنه پنځه سوه ټوکه په چاپ پسولو کښې زیات شول یعنې په ۱۳۴۲کال کښې دعرفان دمجلې دوه نیم زره نسخې چاپېږي .

ځینې فوق العاده پامفلتونه اوخبرونې هم دعرفان او پوهنې دمجلو دمد یریت له خوا په ټاکلو مواقعو کې خپرېږي چه ځینې ئې په لاندې ډول دي .

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ـ دخپلواکۍ فوق العاده | په (٥٦) مخو کي | (۲۰۰۰) ټوکه | |
| ۲ـ دهمايونې‌معظم‌اعليحضرت‌دميلاد » | » (۳٦) » | (٥۰۰) | » |
| ۳ـ د ښوونکې‌دورځې‌د تجليل په مناسبت » | » (۷۲) » | (۱۰۰۰) | » |
| ٤ـ دملگروملتو د ورځې » | » (۷) » | (۱۰۰۰) | » |

**پوهنه** : د پوهنې مجله دهرې میاشتې په پای‌کې په پښتوپنځه سوه نسخې چه هره گڼه‌ئې له (٦۰) نه تر(۷۰) مخونه لري په مصور ډول خپرېږي .

ددغې مجلې مضمونونه په پښتو ژبه سره وي اودهغې لوستونکواوذوق لرونکوته علمي او روزونکي مقالې په پښتو ژبه خپروي .

د پوهنې مجله په ۱۳٤۱ کال‌کې پنځه سوه نسخې چاپیده له‌دې‌کبله چه د غه مجله زښت زیات علاقمندان لري نودهغوی دغوښتنې له مخې د۱۳٤۲کال له اول څخه ئې دوه سوه ټوکه نورهم زیات شول چه پدغه حسات دغه مجله په۱۳٤۲ کال کښې اوه سوه نسخې چاپېږي ددغې مجلې فوق العادې دعرفان له مجلې سره يوځای چاپ شویدي چه پورته يادې شوې .

## د کابل دعامې کتابخانې اجراآت :

### الف : د کتابخانې دفتر :

دکتابخانې دفتر سر بېره پر خپلو ورځنيوچارواودعرفانی‌اخبارو اود کوچنيانو ددغ دمجلې په توزيع چه ټولو ولايتو ، اشخاصو ، دمرکز او ولايتو کتابخانو او تبادلو ته رسماً لېږلي‌او عرفانی‌اخبار چه پههره‌مياشت کښې‌دوه زره نسخې‌دوستو هيوادو او په خارج‌کښې ټولو افغانی سفارتخانو ته داستفادې دپاره او دپوهنې دوزارت په گزارشاتو باندې ددوايرو او افغانی طلابوته د خبر تيا د پاره چه په خارج کښې‌په‌وظيفه اوزده کړې‌بوخت دي رسماً لېږل کېږي د٤۱ دوېې دمياشتې له اول نه د٤۲دوېې دمياشتې تر اول‌پورې‌دری زره ټوکه نوې کتابونه د هر بوط کتابدار په جمع‌قيد کړيدي .

### ب : د کتابخانې روزونکې‌پروگرامونه :

دغه پروگرامونه د کتلو او اورېدلو له لیاری څخه‌د کوچنيانو دافکارورونبانه

کولو له املا جوړ شوېدی او یه هغو کښې په هفته کښې دوه ځله د دوشنبې او چارشنبې په ورځو کښې د غرمې نه وروسته له دریو بجو نه تر څلور نیمو بجو پورې کوچنیانو ته روزونکي فلمونه ښودل شوېدي او په هفته کښې دوې ورځې یعنې د یکشنبې په ورځو کښې کنفرانسونه او د سه شنبې په ورځو کښې روزونکي ډرامونه او داسې کنسرتونه چه د کتابخانې د کوچنیانو د کمیټې له خوا ملي آهنګونه پکښې غږول کیږي وروسته له غرمې، له دریو بجو نه تر څلور نیمو پنځو بجو پورې د کتابخانې د کنفرانسو او ښودنو په سالون کښې اجراء او ښودل کیږي چه د ۴۱ دوېدی له میاشتې څخه د ۴۲ دوېدی تر میاشتې پورې (۳۶۰) کړې فلمونه (۳٦) کنفرانسونه، ډرامونه او کنسرتونه د روزونکو پروګرامو په لړ کښې د روزونکو بېلو بېلو موضوعاتو په باره کښې کوچنیانو او علاقه مندانو ته ئې وړکړې شوی او ښودل شوېدی چه د ۴۱ دوېدی له میاشتې څخه د ۴۲ دوېدی تر میاشتې پورې ئې په مکرر ډول د ننداره کوونکو شمېر شپېتو زرو تنو ته رسېدلی دی.

## ج : د توزیع خونه :

دغه خونه چه په هغې کښې نژدې پنځه دېرش زره ټوکه علمي کتابونه په بېلو بېلو ژبو سره د مراجعینو د استفادې د پاره په خاص ترتیب او د کتابخانو په مخصوصه طبقه بندۍ سره ایښودل شوېدی د عامې کتابخانې یوه فعاله غرفه ده او خلك د مخصوصو کارتو په ذریعه تر ګوښیو شرطو لاندې د عاریت په توګه د مطالعې د پاره خپلو کورو ته کتاب ورڅخه وړي او تر اوسه پورې ئې یوازې د هغو مراجعینو شمېر چه د کتابخانې کارتونه لري او اصولاً خپلو کورو ته د کتاب وړلو مستحق وي یو ولس زرو ته رسېدلی او په وار وار پنځوس زره تنه کتابخانې ته راغلي او د ۴۱ د وېدی له میاشتې څخه د ۴۲ کال دوېدی تر میاشتې پورې ئې پنځوس زره ځلې د کتابخانې د توزیع له خونې څخه د خپلې مطالعې له پاره کتاب وړی او بیائې بېرته سپارلی دی چه یوازې د یوولس زرو تنو مراجعینو څخه دوه نیمو زرو تنو پدې کال کښې په کتابخانه کښې ګډون کړی دی او نوی کارتونه ورکړې شوی او خانه پرې شوېدی.

دا هم باید وویل شي چه د ۴۱ د وېدی له میاشتې څخه د ۴۲ دوېدی تر میاشتې پورې د علمي نخبې شپږ سوه ټوکه نوي کتابونه په بېلو بېلو ژبو چه زیاتره ئې په پښتو ژبه دي د مراجعینو د استفادې د پاره پدغه خونه کښې اضافه شوېدي.

## د عامې کتابخانې د لوستلو سالون :

دغه خونه دروېشت ټوکه علمي کتابونه په بېلو بېلو ژبو لري چه زیاتره ئې له کتابې څخه اخیستل شوېدی. پدغې خونه کښې د اشخاصو د مطالعې د اسانتیا د پاره ډېر ترتیبات نیول شوېدي او هغه یوه ډېره مجلله، پراخه او آرامه خونه ده چه د برښنا او په ژمي او دوبي کښې د هوادتو د والي او سوړ والي وسایل په ډېره ښه توګه پکښې تهیه شوي دي.

پدغې خونه کښې د ۱ ٤ دوبړی له میاشتې څخه د ۴۲ دوبړی تر میاشتې پورې یوزر او دری سوه نوې مهم علمي کتابونه د مطالعینو تر مطالعې لاندې کړی شوی دي او پدې کال کښې ئې د نارینه ؤ او ښځو مراجعینو شمیر شپږ څلویښتو زرو تنوته رسیدلی سربیره پر هغه په همدغه خونه کښې په هغه موده کښې د دوستو هیوادو په تیره دامریکې او شوروی اتحاد پنځه سوه د آرت او نقاشۍ لوحې او هنری تابلو ګانې تر ښودنې لاندې ایښودل شوی دی .

## د : دمجلو خونه :

پدغې خونه کښې یو شمیر نوې داخلي او خارجي مجلې او جریدې د هغه چا د استفادې له پاره ایښودل شوی دي چه غواړي د انکشافي موضوعاتو، ورځینو اخبارو او نویو علمي مطالبو مطالعه وکړي، د ۱ ٤ دوبړی له میاشتې څخه د ۴۲ دوبړی تر میاشتې پورې په هغې خونه کښې یوزرو دری سوه داخلي او خارجي په بیلو بیلو ژبو مجلې او جریدې ایښودل شوې دی چه مراجعین پخپله په کتابخانه کښې استفاده ورځخه کوی چه مراجعین ئې په یوکال کښې یعنې دهغه کال د وبړی له میاشتې څخه د ۴۲ دوبړې تر میاشتې پورې دری زره پنځه‌سوو تنو ته رسیدلی دی .

## ه : مسلکی کتابخانه :

پدغې غرفه کښې چه داخلي او دراقیه خارجي هیوادو په پروګرامو کښې د ا محل دوه زره پنځه سوه ټوکه درسي کتابونه او داوم نیو ، ثانوي او مسلکی او د لویانو تعلیماتو دلار ښودنې کتابونه او دهغو کتابو کتلاکونه چه د نړۍ د کتاب پلورونکو کمپنیو څخه رارسیږی ایښودل شو یدی، پدغې کتابخانه کښې د ۱ ٤ دوبړی له میاشتې څخه دوبړی ترمیاشتې پورې د پورته معرفی شو یو کتابو له جملې څخه پنځه‌سوه ټوکه کتابونه نوی ایښودل شوی دی . له دغې کتابخانې څخه چه دا څلورکاله کیږی چه پرانیستل شوی‌ده یوازې هغه کسان استفاده کوی چه د اوم نیو ، ثانوی او مسلکی او نورو ښوونځیو د درسې او روزونکو پروګرامو په جوړولو مأمور وی .

**و: خپرونې :** البته ټول پوهیږی چه د پوهنې له کتابخانې څخه دوې خپرونې چه یوه ئې پنځلس ورځنۍ عرفاني او بله ئې د کوچنیانو د ږغ په نامه دې چاپ او خپریږی .

۱ : دکوچنیانو د ږغ مجله د ابتدائي زده کړونکو دافکارو د روښانه کولو او درسونه د دوام ورکولو له امله چاپیږی .

پدغې مجله کښې د ۱ ٤ دوبړی له میاشتې څخه د ۴۲ دوبړی تر میاشتې پورې (۳۸۵) مضمونونه او (۲۸۵) عرفانی او روزنکی تصویرونه چاپ شوی دی .

۲ : عرفاني پنځلس ورځنۍ اخبار چه یو ولس کاله پخوا تأسیس شوی دی او په هرو پنځلسو ورځو کښې یو نیم زر نسخې په مصورطور چاپیږی . دغه اخبار چه په هرو پنځلسو ورځو کښې یو نیم زر نسخې او په یوه میاشت کښې ئې دری زره نسخې په دولتي

مطبعه کښې چاپیږی دا یوازینی اخباردی چه د پوهنې دوزارت دعرفانی انکشاف او پوهنتـــو مربوط خبرونه اوعکسونه پکښې خپر یږی او دعرفانی مؤسسو دزده کړونـــکو ، په‌خارج کښې دافغانی سفارتخانو اودولایتو د پوهنې‌دمدیریتو او دنورو عرفانی مؤسسو داستفادی اودپوهنې دوزارت په‌گذارشاتو دهغوی دخبرون له امله ورلیږل کیږی چه زر نسخی ئی‌خارج ته او پنځه سوه نسخی ئی دننه په هیواد د کښې پورته یاد شوو ځایو ته رسماً لیږلی کیږی .

یعنې په‌هره میاشت کښې دری زره‌نسخی چاپیږی او په پورتنی ترتیب‌سره لیږلی کیږی .

پدغه اخبا ر کښې چه‌د ٤١ دوړی له‌میا شتی څخه د٤٢ دوړی ترمیا شتی پو ری شپږ د بر ش ز ره نسخی په خلیر ویشتو گڼو کښې یوزراوپنځه سوه نسخی په یوه کال کښې خپری شوی دی د پوهنې یوزرو دری سوه پنځه شپیته‌خبرونه اوځلورسوه انکشافی عکسونه چاپ اومربوطو ځا یو ته‌هغو کسا نو ته چه‌له‌هیواد اومر کز څخه لری پرا ته دی درسمی‌لیکلو په ذریعه‌په بیړه استو ل شو ی دی .

۳: دپوهنې دراډیو هفته ایز پرو گرامونه :

دغه پرو گرا مونه هم د پوهنې دوز ارت په‌کتا بخانه پوری تړ لی‌دی اود ٤١ دوړی له‌میاشتې څخه د٤٢ دوړی ترمیاشتې پوری دپوهنې (٤٤) پرو گرامونه له‌کابل راډیوڅخه بروډکا ست شویدی .

## دحفظ الصحی‌در یاست فعا لیتونه:

په٤١ کال کښې د پو هنې دحفظ‌الصحی دریاست دمر بوطو چارو اجرا آت:

دحفظ الصحی ر یاست ۱۷ صحی کا نتینو نه داستقلال ،حبیبیی، غازی، نجات، عایشهٔ درانی ، زرغونه ، ملالی شا دو خت بلقیس ، رابعهٔ بلخی، ابن سینا، دارا لمعلمین، میخا نیکی،مستوره‌غوری،محجو بهٔ‌هروی، شاه‌دو شمشیره (ح) نادر یی اودسیدجمالدین افغان په‌لیسو او ښوو نځیو کښې په‌داسی‌صحی تو گه پرا نیستل‌شو یدی‌چه‌ډیری ورځفسچی‌لری چه‌ښیښی اوسیمی جالی پکی لگولی شوی‌دی نه پر یږدی چه‌گرد اوحشرات ورننوزی چه پدغه ډول دمتعلمینو اومتعلماتو دحفظا لصحی په‌چا ر و کښې چه‌دبا زار د کثیفو اوناپاکو تیټنگو له‌میوو څخه په‌ئی استفا د ه کو له ددوی‌روغتیا ته‌په‌ئی ضرر پیښیداوه یو یل گام وا خستل شو .

دوا کمنومقامو نو په‌صوا بدید سره‌دښوو نکی له صندوق سره هم مر سته وشوه یعنې دهغو کانتینو دعایداتو پیسی چه‌په میا شت کښې (۱۰٤۳۰) افغا نی کیږ ی دمر ستی په تو گه د ښو و نکی صند وق ته تحو یلیږ ی .

دپوهنې دحفظ الحی‌دریاست‌ودانی په‌۳۹_ او ٤٠ کښې یو یو‌دړ ر لود خوپه ٤١ کال کښې دوه‌پوړه جوړه‌شوه چه‌په‌دو هم پوړ کښې تراستفادی وړځو نو څخه دبا ندی دکنفرا نس یو‌مجهز سا لون له فرنیچر سره چه‌سل تنه‌پکښې ځا ئیږی جوړشوی دی‌او ترا وسه پوری

دخارجي متخصصينو له خوا دځينې صحي مسائلو په باب څو کنفرانسونه پکې ورکړل شويدي د ٤١ کال په سر کښې د دار المعلمينو روغتون چه پخوا يې چارې د دار المعلمينو مديريت چلولې د حفظ الصحې رياست د واکمنو مقاماتو په امر په سره د دار المعلمينو روغتون له هغه ځايه منفک شو او اداري او صحي چارې يې مستقلاً په خپل لاس کښې واخستلې چه په دغه اقدام سره د کابل د ښار د ناحيو د مربوطو ښوونځيو د روغتيا په چارو کښې يو معقول ترتيب ونيول شو.

الف: د څلورمې کارتې په محوطه کښې په پرسونل او درملو مجهز د روغتيا څلور مرکزونه پرانستل شول.

لومړی د دار المعلمينو د روغتيا مرکز او يا د ليليه ښوونځيو سرطبابت.

دوهم د تخنيک » »

دريم د رابعه بلخې » »

څلورم: د خوشحال خان » »

د دار المعلمينو د روغتيا په مرکز کښې د دار المعلمينو، سپورت، ابن سينا، سپين کلي او علاء الدين ښوونځي معالجه او تداوي کيږي.

د تخنيک د روغتيا په مرکز کښې د محمود، جمال مينې، ميرويس ميدان او سيد جمال الدين د ښوونځيو او د غازي ليسې زدکوونکي معالجه او تداوي کيږي.

د خوشحال د روغتيا په مرکز کښې د کرهنې د ليسې زده کوونکي معالجه او تداوي کيږي.

د رابعهٔ بلخې د روغتيا په مرکز کښې د زينب هوتکې، وخشانې او د نجونو د تجربوي ښوونځيو زده کوونکې تداوي کيږي.

ب: نوی ښار: په کلاى فتح الله خان کښې د زرغونې ليسه د روغتيا يو مرکز لري چه د هغې ليسې او ناز و انا زده کوونکې په کښې معالجه او تداوي کيږي.

ج: په زاړه ښار کښې د نجونو د لومړنيو ښوونځيو په مديريت کښې د روغتيا يو مرکز جوړ شويدي چه د مستورهٔ غوري، محجوبه هروي، حاذقهٔ هروي، ستاره، حليمه فدوي امينې، ميرمن خجو د ښوونځيو زده کوونکې پکې معالجه او تداوي کيږي.

د: پخپله د پوهنې په وزارت کښې د رياست د روغتيا يو مرکز جوړ شويدي چه د خپل ورځرمه ښوونځيو زده کوونکي معالجه او تداوي کوي.

ه: د پغمان د شرعيه علومو د روغتيا په مرکز کښې پخپله د هغې مدرسې د طلابو معالجه او تداوي کيږي.

بل پروگرام چه د معلماتو د کوچنيانو د اسائتيا د پاره جوړ شوی و د وړو کتنو پرانستل دي چه په ٤١ کال کښې په دوو نورو ښوونځيو کښې چه يو ئې د محجوبهٔ هروي

په ښوونځیو او بل ځای درابعه بلخی په لیسه کښې دی په کار وا چول شول چه په دغو وړو کتونو کښې د معلماتو د طبقې له ۴۰ ورځو څخه تر پنځه کلنو کوچنیانو روزل کیږی.

باید وویل شی چه یو بل گام چه د لیلیو د ښوونځیو نارو غو متعلمینو ته د اسانتیاؤ برابرو لو د پاره اخستل شوی دی د تخنیك درو غتیا په مرکز کښې دیوه ځلو ینښت بستر ئی روغتون پرانستل دی .

چه دغه روغتون مجهز او ځلو ینښت عصری بستری او نور لوازم لری او زر به ژر ه به پرانستل شی .

په ۳۹-۴۰ کال کښې د مربوطو څانگو په هغې احصائیه کښې دیورتینو اجرآتو له یادو او سره د ۴۱ کال په معایناتو او معالجو کښې په سلو کښې شل ز یاتوالی راغلی دی .

د پوهنی د حفظ الصحی ریاست بخپل انکشافی تشکیل کی په ولایتو کی د روغتیا د مرکزو پرا نیستل په نظر کی نیولی دی.

دغه مرکزونه به په هغو ولایتو کی پرانیستل شی چه د زده کوونکو شمیر ئی زیات وی لکه ننگرهار، کندهار او هرات لکه چه د ننگرهار د روغتیا په ولایت کښې د روغتیا د مرکز په پرانیستلو کښې د کابل د پوهنتون له ریاست سره مفاهمه کړی، تصمیم نیول شو یدی چه هغه وخت چه د ننگرهار په ولایت کښې د نوی طب د پوهنځی چه امکان لری د ۴۲ کال دوزی په میاشت کښې پرانیستل شی د پرانیستلو په وخت کښې د روغتیا مرکز هم د هغه سره سم د طب د پوهنځی د مدرسینو په مرسته په کار پیل و کړی او هم د کندهار او هرات نائب الحکومه گیو ته رسماً خبر ورکړ شو یدی چه د هغو مرکز د پرانستلو د پاره وړ ترتیبات و نیسی چه په دغه ترتیب کله چه د ولایتو د روغتیا مرکزونه په کار پیل و کړی د هغو دریو ولایتو د زده کړونکو چه شمیر ئی نسبت نورو ولایتو ته زیات بلکه ورځ په ورځ زیاتید و نکی دی په تداوی او معالجه کښې به ښه مرسته وشی .

دا هم باید وویل شی چه د ښوونځیو د زده کړونکو د پاره یوه د روغتیا کو پراتیف ته هم هڅه شو یده چه اساس ئی ایښی شو ل دی چه له هر زده کړونکی څخه په یوه کال کی دوی افغانی اخیستلی کیږی چه ټولی غونډی شوی پیسی به په بانك کی په یوه حساب اچولی کیبزی زمونږ له زده کړونکو څخه که کله کوم یو داسی نا روغ شی چه اوږده او قیمتی تداوی غواړی او د دولت بودجه درمل نشی ور ته تهیه کولای هغه وخت د معالج ډاکتر د تصدیق اد نسخی له مخی زده کړونکی ته له دغو ټولو شو یو پیسو څخه وړه درمل اخیستل کیږی او که د کوم زده کړونکی په لیدو کښې څه تو پیر پیدا او سترگیو (عینکو ته) اړشی د سترگیو پیسی ئی هم ورکولی کیږی .

البته د لته مستحق زده کړونکی په نظر کښې نیول کیږی. هر بیړه پر د هغو له زده کړونکو سره چیښی نوری صحی مرستی هم کیږی

## د سپورت د لوی مدیریت اجراات:

د سپورت لوی مدیریت د ۱۳۴۱ کال د وږي د میاشتې له اول څخه د ۴۲ د وږي د میاشتې ترلومړۍ نیټې پورې د متعلمینو او متعلماتو په جسماني پشپړه او منظمه روغتیا، وده او انکشاف کښې خاصه پاملرنه کړې ده چه د لاندې ډول اجرا آتو مصدر گرځیدلی دی.

۱: د ۱۳۴۱ د خپلواکۍ د جشن په دوهمه ورځ د پوهنې د رسم گذشت مراسم سم له پروگرام سره د (۲۵۰۰) تنو متعلمینو او متعلماتو په شمول شوی دی او په ختم کښې ئې د ښوونځیو د (۱۲۰۰) تنو زده کړونکو هلکانو او نجونو له خوا جمنا ستیکې ښودنې چه د ر تمیک په ډول له (سامانو سره او بې سامانو) له آزادو خوځید و او ادمانو څخه عبارت دی اجراء شویدی.

۲: د خپلواکۍ د جشن په ورځو کښې د پوهنې ټیم د شوروی د فټبال له ټیم سره او د پوهنې هاکی ټیم د المان د فیدرالی جمهوریت له ټیم سره او بی کړی دی او نتیجې ئې د اطمینان وړ وې.

۳: د سپورت پروگرام چه د لومړنی - منځنی او ثانوی دوری د پاره ترتیب شوی و د سپورت د لوی مدیریت له خوا د دارالتألیف د ریاست په همکاری چاپ او د طبیقو لو له امله د مرکز او ولایتو ښوو نځیو ته استول شویدی.

۴: د ۴۱ د مرغومی د میاشتې له اول نه د مرکز او ولایتو د سپورت د ښوونکو د معلوماتو زیاتولو له امله د بدنی روزنې په ښوو ونځی کښې یو کورس دا یر شو. سربیره پر هغو چه په دغه کورس کښې د نوموړو ښوو نکو د پاره د نوی پروگرام د تطبیق د صورت تدریس ور کړ شو دغه کورس یوه میاشت دوام وکړ.

۵: د فټبا ل د تکنیك کتاب ترجمه شو او د پوهنې په مطبعه کښې چاپ او د زده کړونکو تر استفاده لاندې کړی شو.

۶: پدې کال کښې د باسکتبال څو عصری پایې له بین المللی پایو سره مطابقې د جنگلك په فابریکې کښې جوړې شوی او د ځینو ښوونځیو د هلکانو او نجونو د استفادې د پاره کار ورڅخه اخیستل کیږی.

۷: د والیبال د کافی اندازه عصری پایو فرمایښت د جنگلك فابریکې ته ورکړ شوی دی او څنگه چه جوړې شی نو سمدستی به د ښوو نځیو تر استفاده لاندې شی.

۸: (۱۰) جمناستیکی مکمل الاسبابه عصری پایې د جنگلك د دستگاه په ذریعه جوړې شوی او پدې وخت کښې په ښوونځیو کښې د رول شوی او د ښوونځیو زده کوونکی استفاده ورڅخه کوی.

۹: د ښوونځیو او د بدنی روزنې د ښوونځی د بوې اندازې د ضرورت وړ سامانو فرمایښت خارج ته صادر شوی دی.

۱۰: هغه د فټبال او والیبال توپونه چه پخوا له خارج څخه پیرودل شوی وو کابل ته رارسیدلی دی.

۱۱: د نجونو د ښوونځیو د پاره یوه ښوونکې له اتریش څخه استخدام او کابل ته رارسیدلې ده. دغه راززدې تنه معلمې له شوروی اتحاد څخه هم د سپورت د ښوونکو په حیث استخدام شوی او د نجونو په ښوونځیو کښې وظیفه اجراء کوی.

۱۲: د جمناستیك یوشمیر ثابت او یو تعداد تاتیف سیم د جنګلت د دستګاه په ذریعه جوړ شوی دی چه د ثقیله سپورتو په کلپ او د بدنی روزنی په ښوونځی کښې زده کوونکی استفاده ور څخه کوی.

۱۳: د پوهنی د ثقیله سپورتو کلپ چه له ډېرو کلونو راهیسی د کلپ شاملینو استفاده ور څخه کوله د تمرین په اثر ترمیم طلب شوی و ترمیم ئی بشپړ شوی او د جمناستیك - بکس - پهلوانی - وزن پورته کولو او د باسکتبال او والیبال سامانونه پکی په ښه ډول ترتیب شوی او استفاده ور څخه کیږی . سربیره پرهغو د جامو اغوستلو خونه - تشناب او نور هم په نظر کښې نیول شوی دی چه د کلپ غړی چه د ښوونځیو زده کوونکی دی په عصری توګه او له سپورټی مقرراتو سره سم خپلو تمریناتو ته دوام ورکړی او ور استفاده ور څخه وکړی .

۱٤ : د بدنی روزنی د ښوونځی د هفتئیزو درسی ساعتو په پروګرام تجدید نظر وشو نوی پروګرام او د هغه هفتئیز درسی ساعتونه د اصولی مراتبو له طی کولو نه وروسته تطبیق کړی شول .

۲۵ : د هاکی یو تن تیرینر له هند څخه استخدام شوی او کابل ته راغلی دی هغه د بدنی روزنی په ښوونځی کښی د هاکی تمرین او تدریس کوی او د ښوونځیو په زده کوونکوئی هم په عملی توګه تطبیقوی .

۱٦ : د ضرورت له مخی څو جمناستکی کړی - شطرنج او باسکتبال ساعت او نور د ضرورت وړ سامانونه پیرودل شوی او د بدنی روزنی او نورو ښوونځیو تر استفاده لاندی شوی دی .

۱۷ : په عمومی ډول او په عصری صورت او له سپورتی مقرراتو سره سم د ښوونځیو د هلکانو او نجونو د لوبو ډګرونه جوړ شوی او تر استفادی لاندی دی .

۱۸ : د خپلواکی په جشن کښی د رسم ګذشت او جمناستیکی لوبو د پاره د هلکانو او نجونو د ښوونځیو زده کوونکو په تمرین پیل کړی او د سپورت د لوی مدیریت له ترتیب کړی پروګرام سره سم جریان لری .

**لوبی :** د غوندارې په لوبه کښی ۱٤ تنه .
د نیزی غورځولو په لوبو کښی ۱٦ تنه .
د دیسك غورځولو په لوبو کښی ۱۳ تنه .
د جګ خیز په اچولو کښی ۱٤ تنه.
د پولوالت خیز په لوبه کښی ۱۱ تنه.

د منډې د خیز په لو به کښې ۱۵ تنه.
د قدمدار خیز په لو به کښې ۱۰ تنه.
د ۳۰۰ متره محفاستي په لو به کښې ۱٤ تنه.
د ۱۰۰ متره محفاستي په لو به کښې ۱۵ تنه.
د ۲۰۰ متره محفاستي په لو به کښې ۱۳ تنه.
د ٤۰۰ متره محفاستي په لو به کښې ۱۰ تنه.

د ٤ ـ ۱۰۰ په ربلی لو به کښې د پوهنتون ، نجات دلیسی ، تجارت د لیسی ټیمو ار د ربلی به ٤ ـ ٤۰۰ متره کښې د پوهنتون ، نجات د لیسی او د غازی لیسی ټیمو ګډون کړی ؤ .

د پوهنی د خزانی اجتماعی سپورتو تورنمنت د تلې د میاشتی په ۱۱ نیټه شروع او نتیجې ئې په لاندی ډول دی :

۱ : فټبال : پدغه تورنمنت کښې د پنځو ښوونځیو د فټبال ۱۱ ټیمو ګډون کړی ؤ چه په نتیجه کښې د خوشحال د لیسی ټیم د پوهنی خزانی قهرمان وګڼل شو .
۲ : هند بال : د هند بال په تورنمنت کښې پنځه ښوونځی شامل شوی وو او په نتیجه کښې د بدنی روزنی د ښوونځی ټیم د پوهنی خزانی قهرمان وګڼل شو .
۳ : هاکی پدغه تورنمنت کښې د ښوونځیو د لسوو ټیمو ګډون کړی ؤ چه په نتیجه کښې د رحمن بابا د لیسی ټیم د پوهنی د هاکی خزانی قهرمان وګڼل شو .
٤ : باسکتبال : د باسکتبال په تورنمنت کښې اوه ښوونځی شامل شوی وو او په نتیجه کښې د حبیبیی د لیسی د باسکتبال د ټیم تورنمنت د پوهنی د باسکتبال خزانی قهرمان وګڼل شو .
۵ : والیبال پدغه تورنمنت کښې د وولس ښوونځی شامل شوی وو او په پای کښې د دارالمعلمینو ټیم د پوهنی خزانی قهرمان وګڼل شو .

**یادونه :** دغه تورنمنت د ناك اوټ په ډول شوی دی د ٤۱ د تلې په ۱۱ نیټه د نجات غازی ، حبیبیی ، نادریی ار د استقلال د لیسو د کوچنیانو د ټیمو تر منځ دفټبال تورنمنت او به وشوه چه په نتیجه کښې د غازی لیسی ټیم خزانی قهرمان وګڼل شو . د ملالی ، رابعهٔ بلخی ، زرغونی ، عائشهٔ درانی د لیسو تر منځ د باسکتبال او به وشوه چه په نتیجه کښې د ملالی د لیسی د باسکتبال ټیم لومړی ، د رابعهٔ بلخی د لیسی د باسکتبال ټیم دوهم او د عائشهٔ درانی د لیسی د باسکتبال ټیم دریم نمره شول .

## دو دانیو دلوی مدیریت اجراآت :

۱ : د رابعهٔ بلخی د الحاقیې ودانی (۲٤) صنفی بشپړه شوی او استفا ده ورڅخه کیږی .

۲ : د خوشحال خان د لیسی د ډوډی خوړ لو خونه او پخلنځی بشپړ شوی او استفاده ورڅخه کیږی .

۳ : د خوشحال خان د لیسی لا براتوار د قیچی ترحده رسیدلی او جوړ و ته ئی لاجاری ده .

٤ : د دارالمعلمینو د مربوطو ځانگو یو ( ٤ ) پوړ یزه خونه بشپړه شوی او استفاده ورڅخه کیږی .

۵ : د بی بی مهرو (رح) د ښوونځی (۸) ټولگیزه الحاقیه او یوه پیره دار خانه بشپړه شوی او کار ورڅخه اخیستل کیږی .

٦ : د بیهقی ښوونځی ۵ (٦) ټولگیزی الحاقیی لومړی پوړ بشپړ شوی او استفاده ورڅخه کیږی او د دوهم پوړ د جوړونی کار ئی جاری دی .

۷ : د محجوبهٔ هروی د ښوونځی د (٦) ټولگیزی الحاقیی لومړی پوړ بشپړ شوی شوی او د زده کړونکو تر استفادی لاندی شوی دی .

۷ : د محجوبهٔ هروی د ښوونځی د (٦) ټولگیزی الحاقیی لومړی پوړ بشپړ شوی او د زده کړونکو تر استفادی لاندی شویدی .

۸ : د سردارجان خان د ښوونځی د (۱۰) ټولگیزی الحاقیی لومړی پوړ پوړ بشپړ شوی او پاتی کارئی تر جوړونه لاندی دی .

۹ : د صنایعو د ښوونځی ودانی د هنگر په صورت د ابن سینا د ښوونځی په جنوبی خوا کښی په سلو کښی ۱۵ بشپړه شوی او کارورڅخه اخیستل کیږی .

۱۰ : د میخانیکی ښوونځی د دریمی الحاقیی د دری پوړ یزه ودانی کار په سلو کښی ۹۰ بشپړ شویدی .

۱۱ : د زرغونی لیسی د ودانی کار پخوا بشپړ شوی او د دهلیزونه ئی په سمنټی خښتو فرش شول او زینه ئی د مرمر و په ډبرو د هغی له کټارو سره پدی کال کښی بشپړ شوی دی .

۱۲ : د نوی کابل لیسه چه یوه فامیلی ودانی ده او د دغی لیسی د ښوونځی د پاره پیرودل شویده د اساسی تعدیلاتو په ذریعه ئی تدریسی خونی بشپړی شوی او یوه الحاقیه هم پدغی ودانی کښی اضافه شوی ده چه کارئی بشپړ شویدی .

۱۳ : د رحمن بابا د لیسی د طلا بو د صحی او بو ځښلو له پاره داو بو یو مخزن چه (۳۰) شیر د هغو نه لری د هغه ښوونځی د ودانی په صحن کښی جوړ شو یدی سر بیره پر هغه پدغه ښوونځی (۱۹) غسل خانی له شاور سره ئی چه جاری او به لری جوړی شوی دی او کارور څخه اخیستل کیږی .

۱٤ : د پوهنی دوزارت د حفظالصحی د ریاست د ځانگو زیاتو لو د پاره په هغه تعمیر کښی یو پوړ بلزیات شوی شوی دی او خونی ئی بشپړی شوی او استفاده ورڅخه کیږی .

۱۵ : د دارالمعلمینو او ابن سینا پهاوسنیو ودانیو کښې ځینې تعدیلات شوی دی چه کار ئې بشپړ شوی دی .

۱۶ : دخوشحال خان د لیسې دڅوړیه خوړلو دخونې اصلاحات پدې وجه بشپړ شویدی چهسطح ئې په کانکریټو سره جوړه شوی ده .

۱۸ : هغه ودانۍ چه دخارجه ارتباط دلوی مدیریت او دوزارت د نورو څانګو دپاره په شاه محمود غازی میدان کښې ترجوړونه لاندې وه په دریو پوړو سره پو ښل شوی او پاتې کار ئې جاری دی .

۱۸ : داستقلال دلیسې دستد یوم دودانۍ چاری په سلو کښې (۹۰) بشپړ شوی دی .

۱۹ : دحبیبیې دلیسې دنوی ودانۍ کار دخواجه ملا په حد کښې دفوائد عامې دوزارت پهذریعه دهوختیف سره قرارداد شوی او دجوړونې کار ئې په سلو کښې (۹۸) بشپړ شوی دی .

۲۰ : د پروان پهکارته کښې دښادریې د لیسې ودانۍ چه دفوائد عامې دوزارت دودانیو دمدیریت پهواسطه چه ترجوړونې لاندې وه سل کال بشپړه شوی ده .

۲۱ : دخوشحال خان دلیسې تدریسی ودانۍ د کابل ولایت دفوائد عامې دمدیریت پهواسطه ترجوړونې لاندې ده او پهسلو کښې (۹۸) تراستفاده لاندې شوی ده .

۲۲ : د بګرامیو پهپن کښې د شرعیه مدرسې دپاره د دریو کسیزه لیلیه ښوونځی پوډو دانۍ لهټو ملحقاتو سره ئې دافغانی ساختمانی دستګاه له خوا تر جوړونې لاندې ده او دزمری دمیاشتې ترآخره پورې بشپړ شوه .

۲۳ : پهځینو ښوونځیو کښې دصحی بیت الخلاء پروژه ترجوړونې لاندې ده .

۲۴ : دلیلک او شمیر دالحاقیې دودانۍ کار جاری دی او هیله ده چه ددې کال ترپایه پورې بشپړه شی .

۲۵ : سربیره پر پورتنیو تعمیراتی چارو دودانیو لوی مدیریت پدې کال کښې دیر ښوونځی او لیسې ترمیم او اصلاح کړیدی .

«پای»

## دسلطنتي دربار وزير ښاغلي علي محمد

۱ : د تحصیل له فراغ څخه وروسته په ۱۲۹۸ کال کښي دښوونکی او په ۱۲۹۹ کښي دښوونځيو عمومي ملهوونکی . په ۱۳۰۱ کښي دکابل د لومړني ښوونځيو لوی مدیر په ۱۳۰۲ کښي دپوهني د وزارت دتدریساتو رئيس، په ۱۳۰۳ کښي د پوهني دوزارت معین په ۱۳۰۵ کښي په روم کښي د افغاني مختار وزير په ۱۳۰۷ کښي دتجارت د وزير په ۱۳۰۸ کښي د پوهني د وزير په حيث په ۱۳۱۱ کښي د پوهني په وزارت علاوه د خارجه چارو د وزارت دوکيل په ۱۳۱۲ کښي په لندن کښي د افغاني مختار وزير په ۱۳۱۷ کښي دخارجه چارو د وزير

دسلطنتي دربار وزير ښاغلي علي محمد

په ۱۳۲۸ کښي په خارجه وزارت علاوه د صدارت عظمی دلومړی مرستیال او په ۱۳۳۲ کښي يوائحي د صدارت عظمی د لومړي مرستيال په حيث مقرر شوی دی.

۲ : د ۱۳۱۲ د ژمي په مياشت کښي په ژنيو کښي د ملتو د عمومي ټولني او دوسلو ايسته کولو په جرگه کښي دافغاني هيأت دمشر په حيث .

د ۱۳۱۲ د کب په مياشت کښي په لندن کښي داقتصادي بين المللي په جرگه کښي د افغاني هيأت دمشر په حيث .

د ۱۳۱۳ د وږي په مياشت کښي دملتو په بين المللي جرگه کښي دافغاني هيأت دمشر په حيث .

د ۱۳۱۳ د لړم په مياشت کښي دملګرو ملتو په عمومي ټولنه کښي د افغانستان د نماينده په حيث .

په ۱۳۱٤ کښې دافغانستان او امريکې د دوستۍ په معاهده کښې دافغاني نماينده په حيث.
د ۱۳۱۷ د ژمي په مياشت کښې په ژنيو کښې په عرفاني بين المللي جرګه کښې دنماينده په حيث.
د ۱۳۱۷ دوړي په مياشت کښې د ژنيو د سعد اباد د قرون په دوهمه غونډه کښې دافغاني نماينده په حيث.
۳: په ۱۳۲۸ کښې دصدارت عظمی دلومړي مرستيال او خارجه وزير په عهده علاوه ددولت دعالي شورىٰ دغړي په حيث.
په ۱۳۲۹ کښې دپوهنې دعالي شورىٰ غړي په حيث هم ټاکل شوی او هغه وظيفه ئې سرته رسولې ده.
په پای کښې د۱۳٤۱ دکب په مياشت کښې دهمايوني معظم اعليحضرت له حضور څخه دسلطنتي دربار دوزير په حيث مقرر شوچه شاهي ددارالتحرير دچارو نظارت په هم ور سره کوي.

## دربار دوزارت تشکيل

| | |
|---|---|
| وزير | ښاغلي علي محمد |
| معين | « حاجي امين الله |
| دسلطنتي تشريفاتو رئيس | « محمد علي |
| د « « مرستيال | « غلام عثمان علومي |
| دشاهانه ذات دحضور مصاحب | « عبدالرازق حامد |
| « « « | « خليل الله عنايت سراج |
| دحرمسرای ناظم | « محمد آصف |
| د تنظيماتو مدير | « محمد حسين |
| دمحاسبې لوی مدير | « محمد ياسين |
| د پانو مدير | « محمد عظيم |
| ددرملتون لوی مدير | « مير عبدالغني |
| فراشباشي | « خوشدل |
| د نقليې مدير | « مير اکبر |
| دخزانې مدير | « عبدالباقي |
| د کار خانې ناظر | « محمد عثمان |

# د ملوکانه حضور سرمنشي ښاغلی کهګدای

ښاغلی حافظ نور محمد کهګدای د مرحوم حاجي نور علي زوی د ۱۳۱۸ قمري کال چه له (۱۲۷۹) لمریز کال سره مطابق دی د روژې د میاشتې په ۱۱ نیټه د جمعې د ورځې په سهار د کابل په اندرابیو کښې زیږېدلی دی له یو لړ تحصیلاتو نه وروسته د ۱۳۰۰ کال د مرغومي په میاشت کښې د پوهنې د وزارت له خوا د حبیبیې د عالي ښوونځي د لومړۍ اعدادیې له ټولګي څخه د وزیرانو د عالي مجلس د لیک دایرې ته ورمعرفي او هلته مقرر شو او په ۱۳۰۲ کال کښې تې د وزیرانو د عالي مجلس د سرلیکوونکي په صفت ترفیع وکړه. د ۱۳۰۴ کال د چنګاښ په ۲۸ نیټه د حضور د منشي په لقب او بیا په د وه

د ملوکانه حضور سر منشي ښاغلي
حافظ نورمحمد کهګدای

معاش سره د حضور د لیک دائرې ته تبدیل شو. په ۱۳۰۵ کال کښې چه هغه د لیک دائره پراخه شوه او د دارالتحریر شاهي په نامه ئې شکل وموند. ده د سرلیکوونکي په حیث بوه ځانګړې اداره کوله.

د اعلیحضرت محمد نادرشاه شهید د سلطنت په اول کښې د ۱۳۰۸ لمریز کال د تلې په ۲۶ نیټه د دارالتحریر شاهي د مقام په نوې تشکیل کښې د لومړي ځانګړي د مدیر په حیث مقرر شو او په ۱۳۲۵ کال کښې یې په دوهمه رتبه د دارالتحریر شاهي د معین په حیث

ترقی وکړه او د۱۳۲۸ کال دغبرګولی دمیاشتی له ۳۰ نیټې څخه دداراالتحریر شاهی دمقام کـفیل وټاکل شو. په ۱۳۲۹ کـال کښې په لومړۍ رتبه ( لو مړی معین ) مقرر شو. په پای کښی په ۱۳٤۱ کال کښې یې دهمایونی اعلیحضرت له حضوره د( وزیر په رتبه ) دملوکانه حضور دسرمنشی په حیث افتخار حاصل کړ.

## دشاهی دارالتحریر تشکیل

| | |
|---|---|
| دملوکانه حضور د سرمنشی | ښاغلی حافظ نور محمد کهګدای |
| مشاور | « سراج الدین سعید |
| دمخصوص قلم مدیر | « عبدالواحد معروفی |
| دلومړی څانګې مدیر | « غلام محمد آرزاد |
| ددوهمی « « | « عبد القدوس |
| ددریمی « « | . . . . |
| دڅلورمی « « | « محمد دلاور قاضی |
| دکتابخانی « | ښاغلی محمد همایون اعتمادی |
| دعرایضو « | « عبدالنبی |

## د ملي دفاع وزیر ډگرجنرال خان محمد

په ۱۲۹۱ کال کښې زیږېدلی دی .

**زده کړه او د خدمت ځایونه یې** : لومړنی زده کړې ئې د حبیبیه په ښوونځي او له هغه ځایه په حربي پوهنتون کښې .

په ۱۳۱۳ کښې د شاهي فرقې د شاهي سوړو د غوند قوماندان ولیمشر .

په ۱۳۱۷ کښې د لوړو مسلکي او د ارکان حرب د زده کړې له امله ترکیې ته .

په ۱۳۲۱ کښې د ارکان حرب په حیث بریالی او بیرته کابل ته راغلی دی .

د ملي دفاع وزیر ډگرجنرال خان محمد

په ۱۳۲۱ کښې د قطغن د فرقې د ارکان حرب د رئیس .

په ۱۳۲۵ کښې د مرکزي قواؤ د قوماندانۍ د ارکان حرب رئیس

«۱۳۲۷» « « « د ۸ فرقې د ۲ لوای قوماندان .

«۱۳۲۹» « « « د ۷ « د قوماندانۍ د کفیل

«۱۳۳۲» د غزني د فرقې د قوماندان

«۱۳۳۳» د هرات « « «

«۱۳۳۷» د قندهار د قواؤ « په حیث

«۱۳۳۸» د قندهار د قواؤ په قوماندانۍ علاوه د قندهار د نایب الحکومگۍ په کفالت هم موظف شو .

**ترفیعات یې** :

په ۱۳۱۳ کښې له حربي پوهنتون څخه د سوارۍ په مسلك کښې په لومړۍ نمره فارغ التحصیل شو .

په ۱۳۱۳ کښی د تورن په حیث
« ۱۳۱۷ « د جګړن «
« ۱۳۲۲ « د ډګرمن «
« ۱۳۲٦ « د ډګروال «
« ۱۳۳۰ «د برید جنرال «
« ۱۳۳٤ «د تورن جنرال «

« ۱۳۳۹ « د ډګر جنرالی په پای کښی په ۱۳٤۱ کښی د ښو خدمتو او لیاقت په وجه دهمایونی اعلیحضرت له حضور شخه د ډاکتر محمد یوسف صدراعظم په کابینه کښی دملی دفاع دوزیر په حیث مقرر شو .

**د خدمتو نښانونه یی:**

۱ : د تحسین نښان
۲ : د د وهمی درجی بریال «
۳ : درښتین مطلا «
٤ : د ښو تیا نکلی «
٥ : د « مطلا «
٦ : دهیواد لومړی درجه حضری «
۷ : دسر دار عالی «
۸ : د پوهنی دوهمه درجه «

# دعدلیې وزیر ښاغلی مجروح

۱ ـ ښاغلی سید شمس الدین مجروح و د مرحوم سید حضرت شاه زوی او د ننګرهار د ولایت د شین کوړك د کلی او سیدو نکی دی .

دعدلیې وزیر ښاغلی سید شمس الدین مجروح

۲ : دی په ۱۳۲۹ ق کښې بدغه کلی کښې زیږیدلی دی .

۳ : په ۱۳۱۳ کښې داعیانو د عالی مجلس دغړی او په ۱۳۱۷ کښې د حکومت د نما ینده په حیث د افغان د ملی بانك د بلهتنی په عمومی ریاست او د ۱۳۱۷ کال په پای کښې د بترو لو د شرکت او د قند جوړولو د فابریکی په ریاست او په ۱۳۲۸ کښې ېی د والاحضرت مرحوم سپه سالار شاه محمود خان غازی په کابینه کښې د قبایلو د مستقل ریاست د مرستیال او کفیل به حیث ترقی وکړه وروسته بیا د ښاغلی سردار محمد داؤد په کابینه کښې د قبایلو د مستقل رئیس به حیث مقرر شو ، تر دی چه د ۱۳۴۱ د کب په میاشت کښې د دکتور محمد یوسف صدر اعظم په کابینه کښې د عدلیې وزیر مقرر شو ، ښاغلی سید شمس الدین مجروح ۴۵ کلن دی :

دی په انګلیسی، عربی، پښتو، فارسی او اردو ژبو پوهیږی .

هغه په پښتو او فارسی د نظم او نثر به ډول راز راز مقالی او آثار لری چه زیاتره ېی د هیواد په مطبوعاتو کښې چاپ شوی دی .

# دعدلیې دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| وزیر | ښاغلی سید شمس الدین مجروح |
| معین | « عبدالکریم حقانی |
| مشاور | « .... |
| دمخصوص قلم مدیر | « عبدالواحد |
| اداری لوی مدیر | « محمد محسن |
| دماموریتو مدیر | « عبدالعزیز |
| دتقنین رئیس | « محمدموسی شفیق |
| د « مشاور | .... |
| دقوانینو دتدوین مدیر | .... |
| دخپرونو، ترجمې او تالیف لوی مدیر | .... |
| دژورنال مدیر | .... |
| دعدلی مجلې « | ښاغلی محمداکرم عبقری |
| دکتابخانې « | « محمد علی پیام |
| دقوانین دتوضیح او لیکنو مدیر | « سیدعنایت شاه |
| دپلان او بین المللی مدیر | .... |
| دپلټنې مدیر | « حشمت الله |
| دتمیز رئیس | « مولوی عبدالبصیر |
| دلیکنو مدیر | « محمدیعقوب کهمك |
| دجمعیت العلما رئیس | ... |
| دماموریتو دمرافعې دمحاکماتو دتمیز رئیس | ښاغلی عبدالباقی |
| « « « رئیس | « عبدالله |
| دتجارتی تمییز رئیس | « غلام محمد |
| دمرکز دتجارتی مرافعې دمحکمې رئیس | ښاغلی محمدحسن |
| « « دلومړنۍ « « | ...... |
| دماموریتو دلومړنۍ محکمې دمحاکماتو رئیس | ښاغلی محمدانور واحدی |
| دتجارت محاکم او حکمیت مدیر | ښاغلی محمدانور |
| دپانړو مدیر | « عبدالستار |
| دهرات دتجارتی محکمې رئیس | « نورالدین |

| | | | |
|---|---|---|---|
| د کندهار | د تجارتی محکمې رئیس | | ..... |
| دمزارشریف « | « | « | ښاغلی عبدالصمد |
| د ننگرهار « | « | « | « محمد ناصر |
| د قطغن « | « | « | « غلام حبیب |
| دمېمنې « | « | « | « فقیرمحمد |
| دغزنی « | « | « | « محمد یوسف |

## په ولایاتو او اعلی حکومتونو کښې مرکزی قاضیان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| دکابل ولایت | د مرافعې | محکمې | قاضی | | ښاغلی مولوی محمدیوسف |
| « | « دوثایقو | « | « | « | محمدطاهر |
| « | « د حقوقو | « | « | « | حبیب‌الله |
| « | «دجزاد لومړنی محکمې | | « | « | عبدالعلی |
| د کندهار | « دمرافعې | « | « | « | عبدالقاسم |
| « | « د لومړنی | « | « | « | فضل‌الله |
| د هرات | « دمرافعې | « | « | « | عبدالله صافی |
| « | « د لومړنی | « | « | « | فضل حق |
| دمزارشریف | « دمرافعې | « | « | « | محمدصدیق |
| « | « دلومړنی | « | « | « | عبدالوهاب |
| دقطغن | « دمرافعې | « | « | « | غلام ایشان |
| « | « لومړنی | « | « | « | عبدالعزیز |
| دننگرهار | « دمرافعې | « | « | « | عبدالرؤف |
| « | « دلومړنی | « | « | « | محمدعظیم |
| د پکتیا | « دمرافعې | « | « | « | محمد نعیم |
| « | « دلومړنی | « | « | « | لعل گل |
| د پروان داعلی حکومت دمرافعې دمحکمې قاضی | | | | « | خمارالدین |
| « | « | « دلومړنی | « | « | حبیب‌الله |
| دغزنی | « | « د مرافعې | « | « | محمدگل |
| « | « | « د لومړنی | « | « | گل‌محمد |
| دشبرغان « | « | « د مرافعې | « | « | جانانخان |
| « | « | « دلومړنی | « | « | صبغة‌الله |
| د بدخشان « | « | « د مرافعې | « | « | حسام‌الدین |
| « | « | « دلومړنی | « | « | محمدالله |
| دفراه | « | « د مرافعې | « | « | محمود |
| « | « | « د لومړنی | « | « | علی‌احمد |

دميمنې داعلى حکومت د مرافعه محکمې قاضى ښاغلى فضل الرحمن
» » » دلومړنۍ » » » شيندېګل
دګرشك » » د مرافعه » » » عبدالواسع
» » » دلومړنۍ » » » محمدرجب
دغوراتو » » د مرافعه » » » عبدالرحمن
» » » دلومړنۍ » » » محمدامان
دباميانو » » د مرافعه » » » محمدامين
» » » دلومړنۍ » » » نظرمحمد
دتالقانو » » دمرافعه » » » عبدالقهار
» » » دلومړنۍ » » » سلطان محمد

## دعدليې دوزارت فعاليتونه

زمونږ په هيواد کښې دهغونو اجتماعى تحولاتو په اثر، خصوصاً ددرى ګونو قواوو دانفکاك تصميم چه دهمايونى اعليحضرت دقيادت او ګټورى لارښودنې لاندې منځ ته راغلى دى. د۱۳٤۱ کال په اول کښې دهم آهنګۍ په منظور. دعدل دوزارت دقضايى چارو اساسى تشکيلات لرونکو مقاماتو ته په پيشنهاد کښې وړاندې او دصلاحيت لرونکو مقاماتو څخه منظور شو. نو په همدغه اساس دعدل وزارت ديوې خوا په تشکيلاتو کښې دپراختيا د ضرورت په ډول او د بلې خوا دپرسونل د وسايلو دتهيې په نظر په نوو اقداماتو لاس پورې کړى دى. لکه چه دعدل په وزارت کښې دهيواد دقانون ګذارۍ دچارو او حقوقى مسايلو دتنظيم دپاره يوه نوې مرکزى اداره تاسيس شوله.

دغه اداره چه دتقنين دچارو دراست په نوم يادېږى وظيفه ئې دا ده چه دقانون ګذارۍ او حقوقى مسايلو په ساحه کښې دحکومت فعاليتونو ته تمرکز ورکړى. او په همدې ډول وزارتونو ته تصديو. او ددولت هر ډول موسسو ته په حقوقى چارو کښې مشوره ورکړى او دپروژو داصولنامو د تعليماتنامو او لوايحو دتهيې او يا دهغو دتدوين او تدقيق په وسيله دوزارتونو او نورو مختلفو ادارو سره مرسته وکړى دد غه تمرکز او تنظيم هدف د حقوقى چارو وارسى او دقانون ګذارۍ شئون دى چه نوموړې اداره دحقوقو او قانون ګذارۍ په ساحه کښې دحکومت ددارالانشا حيثيت لرى نو لهدغه کبله به پهدغه حقوقى مرکز کښې ټولې مربوطى قانونى پروژې اولايحې دحکومت دفعاليت په ساحه کښې تهيه او تدقيق او دغه کارته به خاصه توجه وکړى شى چه ټولې اصلاحاتى پروژې په متحد شکل داسې منځ ته

راشي چه دپروژو محتويات دهيواد داساسي قانون سره داسي مطابق وي چه د نورو قوانينو سره نقاضت ونه لري.

په همدغه ډول د تقنين دچارو رياست متضمن دي چه د پلان گذارۍ يوه ، يوه څانگه ولري چه دهيواد دعدلي حقوقي ادارو قضايي دستگاه د مربوطو انکشافاتو په ساحه کښې د منظمو پلانونو دسمې احصاييې د دقيقي مطالعې له مخې د هيواد د ننني او سباني ژوند په چارو کښې دهم آهنگۍ په منظور ددغو موسسو د پرمخ تگ او بهبود د پاره يې وضع کوي . دعدل دوزارت په نظر کښې دي چه په دې باره کښې د اسلامي هيوادو د علماؤ او متخصصينو څخه مشوره او مرسته حاصل کړي او د نوموړو علماؤ د تجربو څخه داسلامي دين د روحيې له لوسره دقانون گذارۍ په چارو کښې ترې استفاده وکړي نو د دې منظور د پاره دعربي متحد جمهوريت څخه يو شمير متخصصين رابللي شو يدي په دغه ساحه کښې دافغانستان بين المللي ارتباط هم دعدلي قوي مرکز ددغي حقوقي ټولنې سره تمرکز لري ، دغه اداره دهيواد دټولو عدلي دستگاؤ په نوم دا وظيفه لري چه په بين المللي ساحه کښې ټولې عدلي چارې او جريانات په سم ډول اجرا شي د عدلي دستگاؤ سره په منظم ډول په تماس کښې وي . نود الفلاح مديريت هم د نشراتو او مجلې دمديريت په نوم په دغه رياست پورې ملحق شوي چه نوموړې مجلې د يو صلاحيت لرونکي هيئت د نظر لاندې د يوې نوې روحيې د پراخ پروگرام له مخې په کار لاس پورې کړيدې او په دغه حقوقي مرکز کښې به په خاص ډول يوه منظمه کتابخانه هم دايره او پرانستل شي . د تجارتي او ملکي مامورينو رياستونه د محاکمو دچارو د نظم او نسق او هم آهنگۍ د تمرکز په منظور دعدل په وزارت پورې مربوط شو يدي .

سربيره پر دغه دمحاکمو او عدلي دوايرو موجوده تشکيلات د کثرت او د کار د تراکم په تناسب کتنې ته نه رسيدل نو له دغه امله دعدل د وزارت داساسي ټکو په ډول په تشکيلاتو کښې لازمه تعديلات د ۱۳٤۲ کال په اوايلو کښې لاندې بياندي شول چه ځينې نورې څانگې يې لکه دقوانينو دتدقيق مديريت دصدارت عظمی څخه په دې وزارت پورې مربوط او ملحق شو په همدغه ډول د تجارت دمرافعې دمحکمې په چوکاټ کښې د تجارتي علامو او اسنادو د ثبت لوی مديريت منظور شوی او د مرکزي محاکمو او دواير د تشکيل په تعديل کښې هم لازمه اقدامات شو يدي او په نظر کښې دي چه په آينده کښې هم د کارونو د کثرت او تراکم له مخې د مربوطو محاکمو په تشکيل نوې نظر وشي نود دې منظور د پاره لاتراوسه د مشاورينو ټولنه تشکيل شوې چه د اعضاؤ د پوره کيدونه وروسته به په کار لاس پورې کړي او د جزائي محاکماتو اصولي قانون هم ترتيب او تدوين شوی چه اوس دوزيرانو دمجلس د ټاکلي کميسيون د هيئت تر غور لاندې دی .

او په همدغه شان د تجارتي محاکماتو اصولي قانون ترتيب او تدوين شو يدی .
چه ژر به خپل مراحل طی کړي چه دادی دعدل دوزارت دټولو دايرو داجرا آتو رپوټ په لاندنيو کرښو کښې وړاندې کيږي .

## الف: مرکزی اداری.

لومړی دمخصوص قلم مدیریت .

دعدل دوزارت دمخصوص قلم مدیریت د ۱۳٤۱ کال د سنبلې نه د ۱۳٤۲ کال دجوزا ترمیاشتی پورې د۳۰۱۳ عریضو په باره کښې غور کړی اومربوطو محایو ته ئې لازمه امرونه اواحکام صادر کړی دی .

### د تفتیش لوی مدیریت.

الف : د تفتیش لوی مدیریت دوثایقو دتحریر داحصاییې د ترتیب اود حقوقی اوجنایی فیصلو دصحت دمعلومولو دپاره داجراآتو رپوټ په دریمه د ریمه میاشت د۲۱٦ عدلی محکمو اود ملکی مامورینو ددری محکمو څخه راغوښتی چه د رسیدو سره سم یې دغه رپوټونه دمحاکمو داجراآتو کتنې په دقیق ډول کنترول او وارسی کوی .

په همدغه ډول د تفتیش دمدیریت دمسلکی غړو په ذریعه دقطغن دولایت دخان آباد اندراب ،دغوراتو داعلی حکومت دمرافعې دمحکمې ،دلغمان دلوی حکومت دابتدایی محکمې ، دمزار شریف دمرافعې دمحکمې دکندهار دډنډ دحکومت دمحکمې دپروان دبگرام دمحکمې اود کابل دولایت دمحکمې دوثایق تفتیش او غور پرې شو یدی او سربیره پردغه دننگرهار دولایت دمومند دری دابتدائی محکمې ،دکابل دولایت دچهار دهی دحکومت دمحکمې دهرات دولایت دانجیل دحکومت دابتدائی محکمې د ارزگان د اعلی حکومت مربوط دشهرستان د ابتدائی محکمې د قطغن د ولایت دنهرین دابتدائی محکمې ، دکابل دولایت مربوط دحترقو دابتدائی محکمې ، دهرات دولایت دکشك دحکومت دابتدائی محکمې دقطغن دولایت مربوط دبغلان د ابتدائی محکمې دتفتیش کولو اجازه ولایاتو اواعلی حکومتو ته صادره شویده .

دعدلی محاکمو مامورینو چه د قانونی مقرراتو څخه دتخلف په اثر محاکمې ته لیږل شوی په دی ډول دی .

دکابل دولایت مربوط دمیدان دلوی حکومت دمحکمې مفتی ،ددایکنډیو دمحکمې قاضی اود کلنگار د محکمې کاتب ، دننگرهار دولایت دشنوارو داچین دمحکمې قاضی او مفتی اود پیـچ د محکمې قاضی ، دغوراتو داعلاحکومت دمرافعې قاضی اومفتی او ددغه محکمې سرکاتب اوکاتب ،دبدخشان داعلا حکومت دمرافعې دمحکمې مفتی دهرات دولایت دگذری دحکومت دمحکمې قاضی اومفتی دمحاکمه کولو لاندې راغلی دی

ب : ـ محاکم .

۱ ـ د مامورینو دمحاکماتو دتمیز محکمه: ـ

۲ ـ د ۱۳٤۱ د کال د سنبلې داول نه د ۱۳٤۲ کال دجوزا تر پای پورې ٥٤ فقرې د تمیز محکمې ته رسیدلې دي .

۳ ـ د ٦ فقرو ، دوسیې د بیا کتنې په نسبت بیرته ستنې شوی دي .

٤ ـ د ٤ فقرو دوسیې د آجنډې شخصو ېستل شوي دي .

دماموړینو ابتدایي محکمه

۱ ـ د ۱۳٤۱ کال دسنبلې داول نه تر اوسه پورې دقضایي چارو ۳٥ فیصلې صادرې شوې چه ددغې جملې سره د کوپراتیف دماموړینو ٤۳ دوسیې دیوې فیصلې لا ندې صادرې شوي او ددغې محکمې اداري اجرا آتو په عادي ډول ادامه در لودله .

دملکي ماموړینو مرافعه محکمه

۱ ـ د ۱۳٤۱ کال دسنبلې داول نه د ۱۳٤۲ کال ترجوزا پورې په یقیني ډول ۷٥ پانې فیصلې صادرې کړې دي .

۲ـ د ۱۳٤۲ کال دسرطان د میاشتې داول نه دهمدې کال د سنبلې تر آخره په تخمیني ډول (۲۰۰) باقي فیصله شوي دي ه

۳ ـ د ۱۳٤۱ کال د سنبلې د اول نه د ۱۳٤۲ کال د جو ز ا تر پایه د مرافعه دمحکمې دلیکو نو شمیر په تخمیناً ۳٦۱ پانې وي .

٤ ـ د سږنی ۱۳٤۲ کال دسرطان داول نه دسنبلې تر پا یه پو ر ې د محکمې د صادر شو و لیکو نو شمیر په تخمیناً ـ ۳٥۰ پانې و ي .

دعدلیې د تمیز لوی ریاست .

۱ ـ د ۱۳٤۱ کال دمیزان داول نه د ۱۳٤۲ کال د جوزا ترآخره ( ٤۲) فیصلې چه څینې تا یید او غه څینو کښې ز یاتوالی شوی ـ او ۱٥۰۳ پا نې او ۳۹٥ پانې تخفیفي فیصلې شوي دي .

د تجارت د تمیز د محکمې ر یاست .

۱ ـ دمختلفو اشخاصو په مختلفو چارو کښې د تمیز خواهی د پاره د تمیز ریاست ته ۹ فقرې را رسیدلې دي او د تمیز د ریاست له خوا ددغو فقرو په باره کښې سمدستي په لاندې ډول اقدا مات شوي دي چه :

لومړی مدعي او مدعی علیه ترجلب لاندې نیولي شوي وروسته بیا تري ضامن اخستي شوي او د محصول د تحویل نه د تمیز غوښتنې صورت حال ور کړې شوي او بیا تمیز غوښتو نکي ته موقع و ر کړې شوې چه د تجارت د ابتدائي او مرافعې دمحکمو د فیصلو په رو حیه باندې خپل اعتراضات وړاندې کړي او په دغه پسې ئې مقابل طرف ته وخت ور کړې شو ي چه خپله مدافعه ددعوی دظبط په کتاب کښې ثبت کړي نو ددغه اساس د مخې

دیوې فقرې فیصله پرله پسې څو ورځې غواړي چه د تمیز داصولواومقرراتو مطابق فقره فیصلې ته چمتو کړی شي د نوموړو ۹ فقرو دجملې نه څو نورې فقرې چه د ۱۳٤۱ کال دسنبلې څخه ئې د تمیز ریاست ته ذکر شوي لیکونه لومړی رسیدلي ـ ۱ ـ ۲ ـ ۳ فقرو خپل قانوني مراتب طی کړی او، اوس دمجلس د وروستي غور او کتنې لاندې دی په یوه فقره ئې فیصله شوي او امکان لرې په دوه نورو فقرو به ئې څو ورځې وروسته قانوني فیصلې صادرې کړی شي او د تمیز په ریاست کښې موجوده نورې فقرې به د مدعی او مدعی علیه د اعتراضونو او مدافعو د بشپړ یدو پدلړ کښې چه تخمیناً دهرې فقرې په باب په ۱۵ ورځو کښې فیصلې کوی د تمیز ریاست به بیا هم په دې انتظار وي چه نوموړې فقرې قانوني مراحل پوره کړی اودغوراودقیقې کتنې په برخه کښې به دمحکمې دمجلس له خوا یو به بل پسې د قانوني فیصلو اقدامات تراجرا لاندې ونیولی شي .

( پای )

# د داخله وزارت کفیل
# دکتور عبدالقیوم

دکتور عبدالقیوم د حاجی عبدالقادر زوی په ۱۲۹۷ لمریز کال کښې د ننګرهار دولایت په لغمان کښې زیږیدلی دی.

**تحصیلات یې :**

د حبیبیې د لیسې بکلوریا.

د بي اې دیپلوم دامریکې له ایلو نایز یو نیورسټي څخه.

د ام اې دیپلوم دشیکاګو له یو نیورسټي څخه.

د پي اچ دي دکتورا د امریکې د نور له یو نیورسټي څخه

د ام اې دوهم ماستر دګری د شیکاګو له یو نیورسټي څخه وطن ته د بیر ته راتګ نه وروسته د ۱۳۲۷

د داخله وزارت کفیل ښاغلی دکتور عبدالقیوم

د مرغومی په میاشت کښې د پوهنې دوزارت د مسلکی تدریساتو د ریاست د غړی په حیث.

د ۲۸ کال د مرغومی په میاشت کښې د دارالمعلمینو د ریاست د کفیل په حیث.

د ۳۱ د لیندی په میاشت کښې د هیرمند د ناوی د عمومی ریاست په کفالت.

د ۳۱ د مرغومی په میاشت کښې د هیرمند د ناوی د رئیس په حیث.

د ۳۹ د لیندی په میاشت کښې د هیرمند د ناوی په ریاست سربیره د ګرشك د اعلی حکومت د وکیل په حیث.

د ۱۳۴۱ د کب په میاشت کښې د صدارت عظمی د لوړ مقام په فرمان د مخابراتو دوزارت په کفالت

د ۱۳۴۲ د غبرګولی په میاشت کښې د صدارت عظمی په فرمان بیا د داخله وزارت په کفالت مقرر شو.

**تألیفات او نښانونه یې:** د دکتور اتهیز او د ماستری دیپلوم په انګلیسی ژبه . په ۱۳۳۸ کښې ئې دریمه درجه تقدیرنامه اخیستې او په ۱۳۴۱ کښې د همایونی اعلیحضرت له حضور څخه دستوری دریمه درجه نشان ورکړی شویدی .

**مسافر تونه یې:** په ایران، ترکیه، جرمنی، انګلستان، کانادا او امریکه کښې ئې سیاحت کړی او د خپلو تحصیلاتو یو ولس کلنی دوره ئې په امریکه کښې پای ته رسولې ده.

---

| | |
|---|---|
| وزیر | ښاغلی دکتور عبدالقیوم |
| معین | « غلام احمد پوپل |
| اداری رئیس | « میرامان الدین انصاری |
| مرستیال | « محمد حنیف یوسفی |
| د مامورینو مدیر | « غلام مصطفی الفی |
| د محاسبی « | « عبدالرشید |
| د عامو خدمتو « | « عبد الرؤف |
| د آرشیف « | « عبدالواسع |
| د احصایی لوی مدیر | « فقیر محمد دیوه ګلی |
| « سجل د ثبت « | « نظر محمد |
| د مرکزی احصایی « | « ګل محمد |
| د ناقلینو « | « فیض محمد |
| د پلټنې لوی مدیر | « سید کمال |
| د پلټنې د لومړی ګروپ آمر | « سید فخرالدین |
| « د دوهم « « | « عبدالکریم |
| « د دریم « « | « ابوالولید |
| د محاکماتو لوی مدیر | « نور محمد |

## نائب الحکومګان او اعلی حاکمان

| | |
|---|---|
| د کابل والی | ښاغلی میر عبد العزیز |
| د قندهار نائب الحکومه | « محمد صدیق |
| د هرات « | « عبدالکریم حکیمی |
| د مزار شریف « | « غلام رسول پرماچ |
| د قطغن « | نورن جنرال عبدالکریم سراج |

| | |
|---|---|
| د ننگرهار نایب الحکومه | تورن جنرال خان محمد |
| د پکتیا « | ډگرجنرال فیض محمد |
| د فراه اعلی حاکم | ښاغلی عبد العزیز |
| دمیمنی « « | « سید احمد شاه هاشمی |
| د بدخشان « « | « نثار احمد شیرزوی |
| د پروان « « | « سید غلام رسول |
| دغزنی « « | « روشندل وردك |
| دگرشك « « | « دکتور عبد الوکیل |
| دشبرغان « « | « د ین محمد دلاور |
| دغوراتو « « | « محمد حنیف |
| دارزگانو « « | « محمد شریف |
| د بامیانو « « | « میرامین الدین انصاری |
| د تالقانو « « | « عبدالقیوم عطایی |

## دداخلی دوزارت فعالیتونه

### نوی تشکیلات :

لومړی ــ انکشافی پروگرامونه مادی او مثبت وی که معنوی ، بـاید په معقولو اساسونو ولاړ وی .

په تولیدی پروژو کی ، اقتصادی جنبی او د هغه نتیجی ، دمطالعو او کتنو ، تدقیقاتواو احصائی له مخی سنجش او ترتیب کیږی ، په دی اساس په اجتماعی اصلاحاتو کی هم باید په علم اتکا شی ، لدی کبله دغه منظور د سرته رسولو د پاره ، د پلان یوه اداره چه دمربوطه کارونو دتحقیقاتو او مطالعاتو وظیفه په غاړه لری او دکارونو دوړاندی بیولو او پیشرفت دپاره مثبت پروگرامونه جوړوی د ۴۲ کال دسرطان په لومړی نیټه دداخله وزارت دموجوده تشکیلاتـو په جمله کی منځ ته راغله چه دهغه لومړنی چاری شروع او مخ په وړاندی روانی دی .

دوهم ــ څرنگه چه دداخله وزارت اداری شق داوو ولایتو ، یولس اعلی حکومتو ۱۹ لویه حکومتو ، ۱۴۱ محلی حکومتو او له ۱۴۷ علاقدارایو څخه جوړ دی او بی له مرکزی ځانگو څخه ، په ولایاتو او اعلی حکومتو کی دری سوه نمایندگی لری چه په هغو کی تقریباً (۴۵۳) تنه اجیران او ۱۷۹۱ تنه مامورین له لومړی رتبی نه تر ۱۳ رتبی پوری وظیفه اجرا کوی .

داجراآتو او فعالیتونو دیو والی او سرته رسولو اودمالی چارو دتنظیم او

دلوازمود تهيه کولو او پاتي ضرور ياتو دپاره داسي يوه دستگاه يوي قوي اداري شعبي ته احتياج او ضرورت لري . او دا چه نائب الحکومه گان او اعلي حاکمان داولي رتبي او يا درتبي نه پورته خلك دي ، داحتياجاتو دلري کولواو دخپل قناعت دسا تلو لپاره مجبور دي دادارى ځانگى سره تماس ونيسي ، هر کله که اداري آمر دلوړى رتبي مامور نه وي لومړى نايب الحکومه گان او اعلى حاکمان نه حاضريږي له هغه سره خبرى وکړى اوکه خبرى وکړى کوم آمر چه په رتبه کى له هغو څخه ټيټ دى او يا پوره علميت فلري نو طبيعي ده چه دهغو دقناعت له عهدى څخه نشى وتلاى نو په دى اساس اداري ځانگه چه بايد په دى تعديلاتو او اصلاحاتو کى مهم نقش لوبوى نشى کيدىچه يوازى يو لوى مديريت پاتى شى ځکه داکثر وزارتونو نمايندگى مجد ود او په ځو مختصرو ځايونو کى دى دهغوى ځينى يوازى پهولايا تواو اعلي حکومتونو کى او ځينى په لويو حکومتونو کى او يوازى دعدليى وزارت او دماليى وزارت په محلى حکومتو نو کى يوه يوه نمايندگى لري ليکن داخلهوزارت علاوه پرنوموړو ځايونو ،په علاقدار يو کى چه يووړکي اداري واحددى هم نمايندگي لري چه په دى حساب دداخله وزارت نمايندگي نسبت ټو لووزار تونو زياتى دىاو ښکار ه . ده چه دنمايندگيو دشمير زياتوالي دکار زياتوالي ښکاره کوى او دکار زياتي دپرسونل دزياتوالي او دپرسونل زياتي قوى اداره کونکي په کار لري نو په پاسني دلايلو داخله وزارت په خپلو نويو تشکيلا تو کى اداري لوى مديريت تهپه اداري رياست واړوه .

## دچك ور دکو نوى حکومت :

ځرڅنگه چه دورد گو علاقه ډيره پراخه او غرنۍ ده ، دهغه قريو خلك چه دسيد آباد شمال او شمال غرب او شمال شرق خواته پراته دى دسيد آباد له حکومتڅخه ډير لرى پاتي دى چه دمسافى دلرى والي له کبله يې تنگ راتنگ ډير گران ؤ لکه ځيني داسي قريې هم شته دى چه ددايمر داد دعلاقه دارۍ پورى تړلى دى او دسيد آباد دحکومت پورى دهغه مسافه تخمين ۱۱۷ کيلو متره کيږى اودژمى پهموسم کى چه واوره شروع او غرا وکتل ټول په واورو بنديږى دسيد آباد دحکومت پورى دوگړو تنگ راتنگ ډير سخت دى نو په دى لحاظ د خلکو دمشکلاتو دليرى کو لو او دهغو کارونو ته درسيدواو دمربوطو چارو د اساسى تدوير لپاره داخله وزارت لازم وگڼله چه دچك وردکو حکومت نوى تاسيس کړى .

نوى تعمير ونه او آبادۍ :- په۱۳٤۱ او۱۳٤۲ کالو کى داخلهوزارت د قطغن دولايت داوسيدو تعميراو دغزنى داعلى حکومت تعمير اودکوهدامن دلوىحکومت ودانى سرته ورسولهچه اوس استفاده ترى کيږى دغه شان دخوگيانيو دلوى حکومت ودانىهم تکميل اوسرته رسيدوته نږدى شويده .

دغزنى داعلى حاکم داوسيدو تعمير په ٤۱ کال کى شروع اوتراوسهپورى ندى

تکمیل شوی بلکه نیمکاره پاتی ده دهرات د دارالحکومګۍ ودانی په ۳۶ کال شروع او تر اوسه نیمکاره ده.

### د ښاروالیو تاسیس

د کاپیسا په لوی حکومت کی نوی ښاروالی تاسیس شو یده همدغه ډول دسږ کال د جوزا د میاشتی څخه را پدی خوا د میدان په لوی حکومت د کتواز په لوی حکومت داندړو په محلی حکومت او د جاغوری ومقر او د قره باغ په محلی حکومتو کی د ښاروالیو د تاسیس موضوع تر څیړ نی لاندی نیول شو یده او په نژدی وختو کی به دغه محلی دا ئری تاسیس شی.

**د مهاجرانو په برخه کی:** -د قطغن د ولایت د مهاجرانو لپاره چه پدی وختو کی ۲٤ کورو ته نوی هغه ځای ته لیږل شویدی ټول ۷٦۸۰۰ افغانی په وړیاتوګه تقاوی پیسی ورکړی شو یدی.

د کاګړو د کام د ۱۳۰ کورو استحقاق چه د کندهار ولایت ته ئی یوازی د مځکی امر صادر شو یدی او د څیړ نی وروسته به ورکړی شی.

د مهاجرینو د کورو او ګډو کارونه چه د قبائلو د مستقل ریاست په سلسله معرفی شوی تر اجرا لاندی نیو ل شوی او په نژدی وختو کی به ٤٧ کړی په نظر کی نیو ل شوؤ ځایونو ته ولیږل شي

**ناقلین:**

۱- هغه ناقلین چه د بیلو بیلو کامونو لکه ځاځی، احمدزی، شنواری، تاجك او مومندو د قطغن ولایت او تالقانو ته لیږل شو یدی ۱۷ کورنی دي.

۲- د بار کزایی، خروټی، وردګو، تاجکو کامونو نا قلین د بغرا منطقی ته لیږل شو یدی ۸۲ کو ره دی.

۳- د بارګزایی او اچکزایی کامونو ته چه ٥٦ کوره دی د بغرا له نقشی څخه بهر مځکه ورکړی شو یده.

٤- د دفتانی، کوچی او کاکړو کامونو ۱٦۰ کوروته په بغرا د مځکی ورکولی منظور شو یدی.

علاوه پردی په داخله وزارت کی د آرشیف مدیریت نوی تشکیل شوی او د دغه مدیریت د ا ئرلاندی به پنځه شعبی وظیفه اجرا کړی.

د اهم باید وویل شي چه د آرشیف د موجوده سیستم په اجراکې د چارودنه معطلی او تنظم او دسکتګی د لری کولو لپاره له څو فورمو څخه چه خپله د داخله وزارت له خوا تنظیم شو یدی استفاده کیږی او پدی اساس داخله وزارت د آرشیف د مدیریت په افتتاح کولو سره موفق شویدی چه په دوه کالو کی په ډیر ښه شان د وزارت د مسلکی شق اجراآت تدوین او په هره موقع او هرآن کی د وزارت میاشتنی او حتی یو کلن او دوه کلن اجراآت څه د حجم او سوابقو له نظره او څه د کار د پیمانی او فعالیت د لحاظ جواب وو ایي.

باید وویل شی چه د وزارت د نورو ځانګو د مربوطه کارونو جریان په عادی ډول هره ورځ مخ په وړاندی روان دی.　　«پای»

# د کانو او صنایعو د وزارت تشکیل

وزیر ښاغلی دکتور محمد یوسف (صدراعظم)

معین « « سلطان احمد پوپل

مشاور ښاغلی سید عبدالاحد

د پلټنې لوی مدیر « رمضان علی کاظمی

د اداري لوی مدیر « سید امان الله عبادی

د مخصوص قلم مدیر « محمد عظیم

د سکرو د فابریکې آمر « محمد شریف

د مقاولات او خارجي ارتباط مدیر

ښاغلي میر عبدالله

د احصائیې مدیر « عماد الدین

اداري مرستیال « عبدالرسول

مدعی العموم « محمد طاهر

د خدماتو مدیر « میر امان الدین

د آرشیف مدیر « محمد آصف

د تخنیک لوی مدیر « احسان الله مایار

د کانو او صنایعو د وزارت معین
دکتور سلطان احمد پوپل

د پلان او پروژې مدیر ښاغلی حمید الله

د لاسي صنایعو « « سلطان علی

د تدویر لوی مدیر « غلام سخی

د مالی مدیر « عبدالاحد

د کارا او کارگرو لوی مدیر « حفیظ الله

د ملي استخدام مدیر « محمد هاشم

د کار مدیر « بشیر احمد

د اجتماعی تامیناتو مدیر « فقیر محمد

د کشفیاتو مدیر « احمد علی

د استخراج « « سید احمد

| | | |
|---|---|---|
| دسکرو دفابریکې مدیر | ښاغلی | محمد ایوب |
| د تالقانو د کانو لوی مدیر | » | خلیل الرحمن |
| داندخوی د کانو مدیر | » | سلطان احمد |
| دهرات » » | » | اسد الله |
| د ترانسپورتو لوی مدیر | » | محمد عظیم |
| د نقدی محاسبی » | » | محمد آصف |
| دجیالوجی رئیس | » | عبدالصمد |
| دجیالوجی فنی اواداری مرستیال | » | مظفر الدین |
| میخانیکی مدیر | » | غلام مصطفی |
| د درهٔ صوف دسکرو لوی مدیر | » | عبداللطیف |
| د کلفگان دمالگی د کانو مدیر | » | غلام صدیق |

## دکانو او صنایعو وزارت فعالیتونه

### د کانو چارې

#### دپترولو پلټنل

د پترولو د پلټلی ریاست د ۱۳٤۱ د تلی له میاشتی څخه د ۱۳٤۲ د چنګاښ ترمیاشتی پوری په یو ویشتو ژور څاگانو کښی او جو ړونه کښی (۲۱۰۰۷) متره برمه کاری کړی ده.

او هیله شته چه د وړی د میاشتی ترآخره پوری (۵۰۰۰) متره نوره برمه کاری هم ور باندی زیاته شی او په ۱۳٤۱ـ ۱۳٤۲ کال کښی دخو اجه گوگردك د ګر دذخیری ربوټ چه دغه ګر د شبرغان دجنو بی ختیز په ۳۲ کیلو متری کښی واقع دی جوړ شوی او د دغی سیمی د گاز و د ذخیره (۳۷۵۲٤) ملی متر مکعب حساب شوی ده ،

د سرپل ، اندخوی او میمنی ترمنځ سیمو کښی جیولوجی عمومی تحقیقات په لمبر ۱ بر ۵۰۰۰۰۰ مقیاس سره په (۱۷۵۵۰) مربع کیلو متر مساحت کښی عملی شوی او پوره برخه نقشه ئی هم ترتیب شوی ده .

دغه راز په لمبر ۱ بر ۵۰۰۰۰ مقیاس او په (۲۷۳۸) کیلو متر مربع مساحت سره دجیالوجی مفصل تحقیقات بشپړ شوی او نقشی ئی ترتیب شوی دی.

دفنی پرسونل دروزلو له امله د برمه کولو، څړیو ریه ؛ محاسبی ، کانالزاسیون او دبی سیمی در اډیو کورسو نه چه ټول (۳۳۰) تنه پکښی شامل دی تأمین شوی دی .

## دجیالوجی سروی

د کندهار او غزنی ترمنځ سرك په جنوبی ختیځه ساحه کښی د پتر و او ګاز و پلټلو له پاره د جیالوجی نمائی رپوټ د کندهار، ګرشك او فراه په شمالی سیمو کښی د لمبر ۱ بر ۵۰۰۰۰۰۰ او لمبر ۱ بر ۱۰۰۰۰۰۰ نقشو بشپړ و او له املـه د جیو لـو جی نـقشی اخیستلو فعالیتونه ادامه لری .

## دتوپو ګرافی پروژه

په سن کال کښی د توپو ګرافی پروژی د انکشاف له امله داسی اقدام شوی دی .
یو سل پنځوس ټوټی نوی نقشی په لمبر ۱ بر ۵۰۰۰۰ مقیاس دفیر چلد له کمپنی څخه را رسیدلی دی .

دغه راز د پخوا نیو نقشو له جملی څخه د لومړ نیو مرحلو له بشپړولو نه وروسته (۱۷۰) ټوټی نقشی پرمځکو باندی د نامه ایښودلو د پاره استول شوی دی سر بیره په هغو (۱۸۱) ټوټی موزائیك فوتو ګان په لمبر ۱ بر ۵۰۰۰۰ مقیاس چه یوه نوی سل کیلو متره ساحه نیسی بشپړ او تر استفادی لاندی نیول شوی دی داهم باید وویل شی چه (۱۰۸) ټوټی نقشی نامه ایښو دلو د دفتر داری له بشپړ ولو نه وروسته بیرته دفیر چلد کمپنی ته استول شوی دی .

## هیدرولوجی چاری

د هیدرو لوجی د پروژی بشپړ و لو د پاره د مالی او فنی مرستی د لاس ته راوستلو له امله د سپیشیل فند له مؤسسی سره خبری اتری دوام لری . سر بیره پر هغو په دی کال کښی نه اوتوماتیك نوی پیمانه د پکتیا او قطغن دولایتو په سیندو نو باندی درول شوی دی

## د کانو سروی

د ذخیرو تعیینولو او د کانو د نوعیت او کیفیت تثبیتولو له امله په سن کال کښی د کانو او صنایعو د وزارت د سروی در یاست په نامه یوه اداره تأسیس شوی ده.

کله چه هم په افغانستان کښی د کانو آثارو او نښی ډیری دی خو داسی کانو کتنه او سر وی کول چه د اقتصاد له مخی دا یستلو وړ وی د دغه ریاست له عمده وظیفو څخه دی.

د وسپنی او نورو غیرو فلزی متیالو ژیکو موادو ، لاجوارد و ، طلا ، بریلو او د سکرو د کانو د سروی د پاره سمدستی سل تنه متخصصین افغانستان ته راغلی او په کار کښی شامل شوی دی . دغه متخصصین په جلا جلا ګروپو ویشل شوی او په ټاکلو سا حو کښی کار کوی .

د کانو د سروې ریاست چه په یوه دری کلن گروپ سره ئې په دغه کار پیل کړی یدی . دشوروی اتحاد دحکومت له تخنیکي مرستي څخه استفاده کوی . دغې اداری دمعدنی نمونو تجزیه کولو د پاره دیوه لابراتوار په تأسیسو لوهم پیل کړی یدی .

## د تیزو دسکرو دایستلو چاری

د کرکرو او ایشپشتی د کان په پروژه کښي سږ کال له پلانه سره سم د تیږو دسکرو دزیاتو ایستلو دپاره فعالیتونه دوام لری .

په سږ کال کښي د او بو رسولو او د برښنا د لین تیرو لو کارنو دی په سلو کښي ۲۶ـ سرته رسیدلی دی . پهدی کال کښي (۸۳۰۰۰) ټنه سکاره ایستل شوی دی .

چه یوه برخه ئې صنعتی مؤسسو او یوه نورئې دخلکو او دا ئرو دله تیاؤ پو ره کولو له امله ورکړی شوی دی .

ددرهٔ صوف دسکرو د کان پراخول چه دغه کان د کیفیت له نظره ښه سکاره ری د پرمختتګ په حال کښي دی . سره له دی چه له دغه کال څخه سکاره زیات ایستل کیدای شی خو بیاهم له دی امله چه د پلورلو د وامدار بازار نه لری نو (۳۰۰۰) ټنه سکاره ورځخه ایستل شول له دی امله چه یو ډیری سکاره لږ نه شی سم له پلان سره په پلخمری کښي د بریکټ جوړولو دیوی فابریکی پیشبینی شوی ؤ . دغه فابریکه په یوه ساعت کښي د بریکټ او نیم ټنه سکاره راباسی په سږ کال کښي د دغې دستګاه ؤ له پیه ورکړ شوی وه او اوس په پلخمری کښي دهغی داحاطی دیوال او د ماشینو درولو د ځای جوړول دوام لری .

## لاجورد او د مالګی بیریل :

پدی کال کښي (۱۰۶۸) منه لاجورد او ۵۷۵۹ کیلو گرامه بیریل او (۲۲۷۴۳۱۰) منه مالګه ایستل شویده .

## دصنایعو چاری :

### د نغلو برښنا :

د دغې دستګاه ظرفیت چه پخوا (۶۰۰۰۰) کلیو اته پیشبینی شوی ؤ د نو یو کتنو له مخی (۶۷۵۰۰) کلیو اتو ته زیات شوی دی . د کانکریتو د پروژی د دستګاه په شمول د فرعي جوړونې د دستګاؤ کار بشپړ شو .

همدغه تونل چه او به پکښي تیریږی پرانیستل شوی او کانکرت کاری یې د وام لری .

### دماهی پر برښنا :

دماهی پر پروژه چه (۴۰۰۰۰) کلیو اته ظرفیت لری سږ کال د اقتصادی او فنی ملاحظاتو له مخی تر ژوره کتنه لاندی راغلی ده او انتظار کیږی چه په دغه باب به زر په زره د متخصصینو نظریې تثبیت شی .

## نوي مقرري

دکانونو او صنایعو په وزارت کښې
دکانو دسروې د ریاست کفیل
ښاغلی انجنیر سیدهاشم میرزاد

دنفتو د پروژې رئیس ښاغلی
انجنیر عبدالله رحیمی

د مخابراتو د وزارت د پلان
لوی مدیر ښاغلی عبدالمجید

د مالیې د وزارت د محاسباتو
د ریاست کفیل ښاغلی عبدالصمد

دکانونو او صنایعو په وزارت کښې
د پترولو د پلټنې رئیس ښاغلی
انجنیر عبدالقدوس مجید

# نوې مقررۍ

د انیس د نشراتي موسسې
رئیس او دورځپاڼې
مسوول چلوونکی ښاغلی
محمد ابراهیم عباسي

په قاهره کښې د افغاني لوی سفارت
د اطلاعاتو د ادارې آمر ښاغلی
عبدالرؤف بینوا

د کابل راډیو د نشراتي
موسسې رئیس ښاغلی
دکتور محمود حبیبي

د کابل راډیو د تخنیکي موسسې
رئیس ښاغلی انجنیر عبدالکریم
عطائي

د مطبوعاتو د وزارت ادارې
رئیس ښاغلی عبدالغفار

## د هرات د بریښنا:

د هرات د ښار د ډیزلي برښنا کولو له امله د امریکې د حکومت په ګرنټي د ډیزلي بوې برښنا په تاسیسو لو لاس پورې شوی دی .

## د برښنا نوری انکشافي پروژې:

د پلخمری د برښنا د لومړی دستګاه د ماشینو د مرتب فعالیت له کبله د قند ز له سینډ څخه د اضافي او بوا خیستلو دیوه اضافي کانال پروژه د ۱۳٤۱ کال په آخرو وختو کښي ختم شوه .

دغه راز کابل ته د نغلو د برښنا بیول د کلکو ستنو او قوی لینو په واسطه تر کتنه لاندې دی ؛

## دغوري سمنټ:

دغوري د سمنټو فابریکې چه پهورځ کښي ئې (۲۰۰) ټنه سمنټ ایستل، سږ کال ئې له پلان سره سم توسعوی فعالیت ته ادامه ورکړی او د دغې فابریکې د دوهمې مرحلې کار داچه پهورځ کښي به یې تولیدات (٤۰۰) ټنو ته ز یا تیږی سږ کال په سلو کښي پنځوس بشپړ شوی دی .

## د کابل تخنیکي مرکز:

د څرخي د پله په صنعتي سیمه کښي د جاپان د حکومت په مرسته یو روزونکی تخنیکي مرکز تأسیس شوی دی. دغه مرکز به د اسې دستګاه ولري چه په کال کښي به (۶۰۰۰) بایسکلونه (۲٤۰۰) متره او (۵۰۰) شمیرنلونه او پلاستیکي سامانونه بسته کاری کوي او په یوه ساعت کښي به (۲٤) کیلو د ښینښي لوښي جوړه وي .

په دغه مرکز کښي به د فني پرسونل په روزلو علاوه پورتني موادهم تولید یږی .

## د کندهار د میوو ساتلو فابریکه :

د کندهار د میوو فابریکې د ۱۳٤۲ کال د غبرګولي په میاشت کښي په فعالیت پیل وکړ. دغه فابریکه چه د چکوسلواکیې د حکومت له کریدت څخه د استفادی په کولو جوړه شو یده .

افغانستان په د خارجي تجارت د پراخیدو له مخې مهم رول ولوبوی ځکه د میوو صادرات (وچه وی که لنده) او نور مواد به چه له میوو څخه جوړیږی لکه (شربت او جام) پهډیره ښه بیه د نړۍ مارکیټو ته وا ستول شي .

د دغې فابریکې ټول تولیدی ظرفیت (۳۲۰۰۰) ټنه میوه دی .

## د کابل د مېوو پاکولو دستګاه :

له دې امله چه د کابل د مېوو صادرات په ښه شکل سره صورت ومومي د کابل د مېوې د شرکت او د انډیمار د کمپنۍ په ګډه د کابل په صنعتي سیمه ځرخي پله کښې د مېوو پاکولو یوه دستګاه تأسیس شوې ده چه ودانۍ یې جوړه شوې او ماشینونه یې درول شوي دي .

## د کیمیاوي سرې فابریکه

له دې امله چه د برښنا د تولید له لیاري څخه له طبیعي ګاز څخه کار واخیستل شي . نو د دوهم پنځکلن پلان له مخې د هیواد په شمال کې سیمه کښې د ۲٤ زره کلیوا ته برښنا د فابریکې او د کیمیاوي سرې د یوې فابریکې جوړه وار پېشبیني شوې وه سږ کال د دغو دواړو دستګاو لومړنۍ سروې وشوه .

## د ځنګلك تخنیکي پروژه :

د غه موسسه چه د صنایعو د زیاتو شقو د پاره د فني پرسونل تهیه کوا و له امله جوړه یې د سروې کولو او پروژې له مخې د پرمختګ په حال کښې ده .

## د تېلو تخنیکم :

له دې کبله چه د تېلو او ګازو د ایستلو عملیات ورځ په ورځ نتیجې ته نژدې کیږي نو د فني پرسونل روزلو د پاره د یوه تخنیکم تأسیس ته مخه شوېده .

د غه تخنیکم به (۵۰۰) تنو ته عملي او نظري تدریس ورکړي .

## د نساجي د فابریکو په تولید اتو کې زیاتوالی راغلی دی

د ګلبهار، پلخمرې او جبل السراج فابریکو په ۱۳٤۱ کښې دو پنځوس میلونه یوسل او یو ویشت زره دري سوه نه ديرش متره توکر تولید کړیدی په ۱۳٤۱ کال کې د ګلبهار د فابریکو تولیدات شل میلونه څلور سوه دو څلوویښت زره دري سوه دري نوي متره توکر ته رسیدلي دي چه د ۱۳٤۰ کال نه لس میلونه څلور سوه څلور زره اته سوه دري نوي متره توکر زیات شوېدی د ګلبهار د فابریکې تولیدات په ۱۳٤۰ کال کې لس میلونه اوه دیرش زره او پنځه سوه متره ؤ د پلخمرې د نساجي د فابریکې تولیدات په ۱۳٤۱ کال کې نولس میلونو اوه سوه زرودوه سوه دونوي زرو مترو ته رسیدلي دي چه د ۱۳٤۰ کال د تولیداتو نه دوه میلونه نهه سوه شاو ویښت زره نهه سوه دري شپیته متره توکر زیات تولید شویدی په ۱۳٤۱ کال کې د جبل السراج د فابریکې تولیدات پنځه سوه څلو ویښت زره اوه سوه څوارلس متره شوي چه د ۱۳٤۰ کال نه یې تولیدات پنځه زره یواتیا متره زیات شویدی .

په ۱۳٤۱ کال کې د نساجي له محصولاتو نه د دري سو و او پنځه اویا میلونو نهه لکو او وه شپیته زره او و سوه اووه نوي افغانیو پلورل شویدي چه له وطني توکرانو نه د وطنو الو استفا دې د نساجي شرکت ډیر مطمئن کړیدی په ۱۳٤۱ کال کې د نساجي عمومي شرکت یو دیرش میلونه یو سلو نهه دیرش زره د وه سوه او اتلس متره توکران همدغه راز اته نوي زره نهه سوه او او څلو ویښت کمپلې، دستپاکونه او نورتوکران یوسلو پنځه ویشت زره څلور سوه او دری ویشت ګډې سپینسې پلورلي دي «پای»

# دپلان وزیر ښاغلی عزیز

ښاغلی عبد الحی عزیز د ښاغلی عبدالحسین عزیز زوی په ۱۲۹۳ کښې په کابل کښې زیږیدلی دی .

**تعلیمات یې :**

په ۱۳۰۸ هجری کښې د کابل د استقلال په لیسه کښې

» ۱۳۰۹ » »

د روم ـ ایټالیې د ښاتو

بریا نډ په لیسه کښې

» ۱۳۱۰ » »

د پاریس د مچلت آت

جانسن دوسیلی په لیسه

کښې له ۱۳۱۲ څخه

تر ۱۳۱۳ پورې د فرانسې

له گرونوبل یونیورسټۍ

څخه او د ( انگلیسی

ایټالوی ) مدرنو ژبو

دپلان وزیر ښاغلی عبدالحی عزیز

او د فلسفې په شق کښې ( په اعلی درجه ) بکلوریا .

له ۱۳۱۳ څخه تر ۱۳۱۶ پورې د فرانسې د استراسبورگ په یونیورسټۍ کښې

دوه کاله یې د سیاسی علومو ( اقتصاد او عامې مالیې ) په ښوونځی کښې او یو کال یې د تجارت د حقوقو او عامو حقوقو په باره کښې تحصیل کړی دی .

له ۱۳۱۶ څخه تر ۱۳۱۷ پورې یې د بانکی په عملی شقو کښې په لندن کښې تحصیل کړیدی .

**ژبې یې :**

فارسی ـ پښتو ـ فرانسوی ـ انگلیسی ـ او ایټالوی

**وظیفې یې :**

په ۱۳۱۷ کښې د افغان په ملی بانک کښې شامل شو

په ۱۳۱۹ کښی دهغه بانك درئیس منشی شو .

له ۱۳۱۹ څخه‌تر ۱۳۲۵ پوری په کابل کښی دبانك دښاری څانگی مدیر او بیا دافغانستان دنساجی دشرکت رئیس .

له ۱۳۱۸ نه تر ۱۳۲۶ پوری دکابل دسیاسی علومو په‌پوهنځی کښی دمقایسوی تجارت دحقوقو او اقتصاد مدرس.

په ۱۳۲۲ کښی دکابل دحقوقو د پوهنځی رئیس ـ داقتصادی پلان جوړولو دکمیسیون غړی اود ملی اواقتصادی بیلو بیلو کمیټو غړی.

له ۱۳۲۵ څخه تر ۱۳۲۹ پوری دملی اقتصاد دوزارت معین .

په ۱۳۲۶ کښی دهاوانا دتجارت او استخدام په‌جرگه کښی د افغانی هیأت مشر ـ د تجارتی پالیسی د اقتصـادی توسعی د کمېټو او د تخنیکی فرعی کمیټی غړی .

په ۱۳۲۷ کښی دهغه‌هیأت دمشر کفیل ؤ چه‌په وا شنگتن کښی. دصادراتو او وارداتو له‌بانك سره په‌خبرو اترو مامور شوی ؤ .

په ۱۳۲۹ کښی دافغانستان دصدراعظم والا حضرت شاه محمود خان غازی مشاور

له ۱۳۲۹ څخه‌تر ۱۳۳۳ پوری ئی له‌حکومتی چاروڅخه‌ډډه‌وکړه .

په‌۱۳۳۴ کښی دکانو اوصنائعو دوزارت مشاور .

په ۱۳۳۴ کښی په‌خارجه‌وزارت کښی مختاروزیر اوداقتصادی چارومشاور .

په ۱۳۳۴ کښی دملکی هوانوردی رئیس .

له‌۱۳۳۵ څخه تر۱۳۴۲ پوری دپلان دوزارت معین .

په‌پورتنی موده کښی ئی په‌بین المللی بیلو بیلو کنفرانسو کښی لکه د ایکافی دملگرو ملتودموسسی داجتماعی اواقتصادی‌شوری اودنړی دبانك په‌کالنی غونډه کښی دافغانی هیئت په‌ملگرتیا درئیس په‌حیث گډون کړیدی .

له ۱۳۴۰ نه تر۱۳۴۱ پوری دافغانستان دمرکزی بانك درئیس او په‌۱۳۴۲ کښی دډکتور محمدیوسف صدر اعظم په کابینه کښی دپلان دوزیرپه‌حیث مقررشو .

| | |
|---|---|
| وزیر | ښاغلی عبدالحی عزیز |
| معین | « عبدالله یفتلی |
| دمخصوص قلم مدیر | « عبدالقادر یاری |
| **داحصایی او تتبعاتو رئیس** | « **محمد باقی یوسف زی** |
| مرستیال | .... |
| دتتبعاتو لوی‌مدیر | « هدایت‌الله عزیزی |

| | |
|---|---|
| د احصاییی لوی مدیر | « عبدالهادی احمدزی |
| د اقتصادی تحلیل مدیر | « .... |
| د مالی بانکی او قیمتونه مدیر | « .... |
| د ملی عاید او د بانکو د تشکیل مدیر | بناغلی محمد کبیر خاضع |
| د تجارت او صنایعو مدیر | « صالح محمد نورزایی |
| د حمل و نقل د مخابراتو « | « عبدالواسع |
| د بشری قوو مدیر | « عبدالله صدیق امیر |
| د روغتیا او پوهنی مدیر | « عزیزالله امینی |
| د نفوس او کرهنی مدیر | « شیرآقا کشاورز |
| **د پلان رئیس** | « محمد اسحق عثمان |
| مرستیال | .... |
| د بانکداری او مالی مدیر | « محمد خان |
| د اساسی پنگی اچولو مدیر | « عبدالوکیل امیری |
| د موادو د تهیی او موازنی مدیر | « ببرك |
| د بشری قوو مدیر | « محمد یوسف فرند |
| د پروژو او پراگوموتو لوی مدیر | « سردار ولیشاه |
| د کانو او صنایعو مدیر | « دکتور نواز |
| د اجتماعی خدماتو مدیر | « سید امین الله بها |
| د مواصلاتو او فوایدعامی مدیر | « عبدالعزیز فروغ |
| د تجارت مدیر | « محمد انور مهر |
| د کرهنی او بولگولو مدیر | « احمد ضیاء |
| د خارجی مرستی د ارتباط لوی مدیر | بناغلی فقیر نبی الغی |
| د توحید او انسجام مدیر | ...... |
| د ارتباط او خارجی مرستی مدیر | « محمد انور |
| د خپرونو او تبلیغاتو رئیس | ..... |
| د اداری لوی مدیر | « محمد موسی خداداد |
| مرستیال | « محمد رفیق |
| د مامورینو مدیر | « عبدالاحد |
| د آرشیف مدیر | « سیف الدین |
| د محاسبی مدیر | « عبدالخلیل |
| د عامو خدمتو مدیر | « احمد جان |

# دپلان دوزارت فعالیتونه

## داحصاییې او تتبعاتو ریاست

داحصاییې او تتبعاتو ریاست چه دپلان په وزارت کښې داقتصادي اوضاع نه دحاصل شوي احصائیې دراغونډولو وظیفه په غاړه لري په دغه ریاست کښې داحصاییې دراټولو نې عملي مرتب داسې دي چه دپلان وزارت ئې دخپلو ضروري معلوماتو طریقه او داحصائیې فورمې چه په دغه اساس ترتیب او راغونډیږي ټاکي او محترمو دوائرو ته ئې دز یاتې هم اهنګۍ دتامین په غرض خبر ورکوي او دتتبعاتو او احصائیې دریاست ددوائرو او موسسو دپاره دهغوي دکار دماهیت په نظر مخصوصې فورمې ترتیب او بیائې دهغوي دموافقې او نظریې داخستلو دپاره هغوي ته سپاري چه دمربوطه دوائرو دنظریاتو داخستلو نه دغه ترتیب شوي فورمې داز مایلو په ځای کښې دکارلاندې نیول کیږي په دې ډول نو دپلان دوزارت دضرورت وړ معلومات یاد دوایرو دموجوده اسنادو او کتابو له مخې رابر سیره اوفراهم شي او یانو موږ داېرې دخپلو مربوطه څانګو سره په تماس کښې شي چه لازمه معلومات راټول او دپلان وزارت ته ئې وسپاري ددغه ترتیب له مخې وروسته له هغه چه احصائیه راغونډه شي دغه کړه معلومات په هغو پاڼو کښې لیکل کیږي چه داقتصادي اوضاع په حل کولو کښې ترې استفاده وکړی شي دهمدغو جدولونو په اساس صنعتي، زراعتي، تجارتي بانګداري او پیسې دتادیاتو بیلانس او نورمهم اقتصادي اومالي موضوعات دکتنې لاندې نیول کیږي.

ددغه ریاست دمختلفو څانګو فعالیت دزمانې دلحاظ له مخې چه ما لي او یا شمسي کال ئې دتطبیق دپاره ټاکلی شي مشخص کیدلی نشي ځکه دورځنیو عادي چارو څخه سربیره ځنې کارونه په لږه موده کښې چه په یوه میاشت یا یوه هفته کښې داجرا لاندې سرته رسیږي ځنې کارونه برخلاف اوږده فعالیتونه او ډیر وخت غواړي.

دمثال په ډول دبرمخ تګ دکتنې دمقرراتو برابرول: چه تقریبا دیونیم کال موده ئې ونیوله او وروسته د۱۳٤۲ کال دجوزا په میاشت کښې چاپ شو دغه دبرمخ تګ کتنه په بیلو بیلو مختلفو برخو کښې دلومړي پنځه کلن اقتصادي پلان داجرا آتو یوازنۍ نتیجه ده چه دکار دبرمخ تګ له مخې دهراقتصادي برخې مقتضي مصارف په دلائلو اورا یو سره دپروژو لازمه تعدیلات دتدقیق او تحلیل لاندې نیولی شوي دي څنګه چه دبیلو بیلو احصاییو دراغونډولو اصلي هدف دمختلفو اقتصادي ربنو داقتصادي تمایلاتو دتصویر دواقعي ترسیم تحلیلول دي نو ځکه داحصاییې ریاست پرله پسې کوشش کوي چه داقتصادي پالیسیو دطرح په منظور صلاحیت لرونکي

مقاماتو تەواقعي او صحي رقمونه ورانده کړي داسي رقمونه لکه څنګه چه پروسږ کال د داخلي تجارت د پنځه کلني سلسلي احصائیه د تجارت د وزارت له خوا نشر او د اصلاحي انتقاد د څېړني لاندي ونیول شوه په نتیجه کښي داجوته شوه چه دغه نوموړي احصائیه خصوصاً د وارداتو احصائیه بشپړه نه وه او د وارداتي جنسونو لویه برخه د لومړي پنځه کلن اقتصادي پلان د بېلو بېلو پروژو د عملي کولو او په مخ بیولو په منظور بي د ګمرکاتو د احصائیي د ثبت نه چه په مستقیم ډول راوړل کیدل په احصائیه کښي نیول شوي نه دي د احصائي ریاست د تجارت د وزارت او د افغانستان بانک د ریاست په مرسته د دغه نقص د رفع د پاره په اصلاح لاس پوري کړچه د دري میاشتي کار کولو نه وروسته د خارجي منابعو د احصائیو په اساس د افغانستان بانک د احصائیي سره په مقایسه کولو سره ئي د وارداتو رقمونه اصلاح او سم کړي چه اوس ئي بنه صحیح او سم رقمونه ئي ذیعلاقه مقاماتو ته سپارلي دي او همدغه رنګه د صادراتي رقمونه احصائیه هم لږ ډیره اصلاح شوي ده. نورپه ټولو اقتصادي او اجتماعي رشتو کښي نه یوازي د یوه کال د پاره بلکه تر هغه پوري چه د هیواد د لومړي پنځه کلن اقتصادي پلان سره مطابقت ولري د احصائیي رقمونه په پرله پسي ډول پنځه کلني او یا زیات له هغه څخه تهیه او برابر شوي دي چه د دغو لهمخي ئي تحلیل او تجزیه کیږي د تحلیل نسبتي په ارزښت کښي د هغو نه جګ دي چه یو کلني رقمونه پري متکي وي د لته نو باید ووایو چه پنځه کلنه او یا د دغو نه زیاته احصائیه چه د اوسني پرمخ تګ کتني د هري رشتي په خصوصي جدولونو کښي ترتیب شوي د یخوا نو رقمونو ساده اقتباس نه دي مګر د وزارتونو او مربوطه دوایرو د همکاري په اثر چه په تیر یو نیم کال کښي د انتقاد او اصلاح لاندي نیولي شوي او وروسته ئي په نشر لاس پوري شوي دي تیر کال د احصائي د جدولونو په یوه څنګه کښي د اجتماعي او اقتصادي فعالیتونه نو چارت او ګرافونه هم د احصائیي او تتبعاتو د ریاست په واسطه ترتیب او د پرمخ تګ کتني د مربوطو جدولونو د فصل په خوا کښي چاپ شوي دي وروستني مثال ئي د تتبعاتو او احصائیي د ریاست فعالیت دي چه د احصائیي د چارو پرمخ تګ او رهنمایي تر معلومیږي هغه د هیواد د مالي مسایلو د حل او جدول بندي ترتیب دي په دي باره کښي د احصائیي د ریاست مربوطو څانګو د مالي د وزارت د مربوطو څانګو سره او بده په اوږده کوشش او مجاهدت کړي دي چه د عادي او انکشافي بودجي د عوایدو او مصارفو جدولونه د نظر لاندي د دغي برخي د تقسیم لړلو سره د نو وعلمي اساساتو له مخي ترتیب کړي.

په همدغه ډول د لازمو تفصیلاتو سره د خارجي قرضونو مربوطه جدولونه او په بیلو جدولونو کښي د قسطونو د ورکړي د مودي ترتیب د پنځه کالو د پاره چه د اومړي پنځه کلن پلان سره مطابقت لري د پرمخ تګ کتنه کښي څرګند او چاپ شوي دي.

د لته نو لازم نه دي چه د نورو مربوطو اقتصادي او اجتماعي شقوقو په جدولونو کښي درا غونډ شوو رقمونو په باره کښي څیړنه او تذکر وکړو ځکه د احصائیي او تتبعاتو

دریاست دمالی او تجارتی رقمونو دبهبود او اصلاح دپاره چه دکومو عملی طریقو نه دقولو اقتصادی او اجتماعی شقوقو درقمونو په باره کښې تری په لږ تغیر سره کار اخستی شوی تطبیق شوی هم دی داحصائیی او تتبعاتو دریاست دفعالیت یوه بله برخه چه داحصائیی دمامورینو په واسطه اجراکیږی هغوی دځینو مستقلو سروی او نورو اخستلو څخه عبارت دی .

داحصائیی او تتبعاتو ریاست دیرمخ تګ کتنی د نشر سره سم یوه کوچنۍ رساله هم چه دافغانستان داساسی احصائیو په نوم مسمی ده په چاپ او ئی تیر کال لاس پوری کړی دی

دغه رساله چه یوازی احصایوی رقمونه یکښې چاپیږی دپنځه کالو پوری یوازنی رساله ده چه په بل هیڅ تفسیر او توضیح پوری اړه نه لری دغه ډول خپرونی د تتبع کوونکو صنعتګرانو او داخلی او خارجی تجارو او بین المللی موسسو د رهنمائی د پاره خورا ګټوره او د همیش دپاره داستفادی وړ دی داحصائیی او تتبعاتو ریاست تقریباً یو کال دمخه دهیواد دقولو کلو دجملی څخه دسیتماتیك نمونی اخستلو په اساس دپنځه سوه کلو په سروی دخارجی او داخلی متخصصینو په مشوره دفورمو داقتضا له مخی لاس پوری کړ چه په دغو فورمو کښې دقولو اقتصادی مسائلو زراعت او نفوس په باره کښې دمعلوماتو دپاره لازم سوالونه ځای او ترتیب شوی او وروسته مربوطو محلی حکومتونه دتطبیق دپاره استولی شوی دی ددغه پنځه سوه فورمو له جملی څخه تقریباً دڅلور سوه او پنځوس فورمو څخه زیاتی بیرته داحصائیی ریاست ته رالیږلی شوی او د حل لاندی نیولی شوی دی لومړی دولایاتو مربوطه کلی دجدول بندی او تحلیل لاندی راغلی چه د هغو سوالونو څخه تقریباً کامل ځوابونه لاس ته راغلی ددغو له مخی وروسته بیا دقولو ولایاتو او اعلی حکومتونو فورمی دتدقیق لاندی نیولی شوی او داحصائیی او تتبعاتو ریاست سربیره په پورتنی فعالیت چه څو نمونی ئی وښودلی شوی دهیواد دمرکزی دائرو په حیث د بین المللی خارجی موسسو داقتصادی او احصاییوی سوالونو ته دځواب ورکولو دپاره وظیفه اجرا کوی تیر کـال یوشمیر دیرو سوالونو ته ئی ځوابونه ور کړی دی .

داحصائیی دریاست فعالیتونه کولی شو چه په لاندی ډول ئی لنډ کړو.

دغه اداره چه د اصلی وظیفی زیاته برخه ئی علمی ماهیت لری خپله توجه او پاملرنه ئی دهغو مواد وراغوندولو ته ګرځولی چه د کتنی او مطالعاتو اساس ګڼل کیږی او هرڅومره قناعت بښونکی معلومات چه لاس ته راشی په همدغه اساس ئی په علمی مطالعاتو لاس پوری کړی چه نتایج ئی د پورتنیو ذکرشوو خپرونو په واسطه دعمومو داستفادی دپاره چاپ او خپره وی .

درا ټول شوؤ موادو رقمونه سربیره داقتصادی، مالی او اداری پالیسو د تصمیمونو نیولو په منظور چه په عین موقع کښې تری کار اخستل شی دغه د قمونه په مرتب او منظم ډول خپاره شوی هم دی چه د هیواد دپاره دلسو کالو د پخوانیو احصائیو معلوماتو اساس تشکیل بنئی .

دغه ریاست فعالیت پهزړه پوری نماینده او ترجمان دنو موړی ریاست چاپ شوی خپرونی دی چه پهدی ځای کښیئی لنډیز ممکن نهدی دغه خپرونی پهدریژ بو پښتو فارسی او انګلیسی چاپیږی او په عمومو ویشل کیږی ·

## د پلان دریاست د اجرا آتو لنډیز

د پلان دوزارت د پلان دریاست دوه لوی مدیریتونه لری چه یو ئی د توحید او انسجام لوی مدیریت دی او بل ئی د پروګرامونو لوی مدیریت. دغه هریو لوی مدیریت پخپلو خاصو شقوقو کښی څونور مدیریتونه هم لری د پلان دریاست لوی وظیفو دانکشافی پلانونو ترتیب او تدوین، د کلنی انکشافونو بودجی برابرول، دانکشافی تخصیصاتو اجرا او دانکشافی پروګرامونو تعقیب دی ·

پهدی یوه کال یعنی د تیر کال د نیمائی څخهدسږ کال ترنیمائی پوری د پلان دریاست اجراآت پهلاندی ډول لنډیز کیږی ·

څنګه چه د هیواد دوهم انکشافی پلان لومړی کال د۱۳٤۱ کال سره مصادف ؤ نو د پلان دریاست فعالیت هم ډیرؤ، دوهم پلان وروسته د تدوین د تصویب نه داسی ایجاب کړه چه یوه سلسله نور اقدامات وشی مثلاً د ځینو پروژو تعدیل او د ځینو پروژو د عملی پرمخ تګ د پاره د خارجی مرستی لاس ته راوستل چه پههمدغه منظور په پورتنی موده کښی وخت ناوخته د دوهم پلان په اجرا کښی د بینالمللی موسسواو هغو دوستو هیوادو د نمایندګیو سره چهمرسته کوی د وزارتخانو او ذیعلاقه دوائرو په ګډون خبری اترې شوی دی ·

د پورتنی ځینو پهډول د پلان دریاست دوظایفو څخه یوه دانکشافی پروګرامو او بودجی د ترتیب او تدوین وظیفهده، د۱۳٤۲ کال کښی دانکشافی پروګرامو بودجه د دوائرو او ذیعلاقه موسسو پههمکاری پهمفصلی ډول د پلان دریاست د متخصصینو او مامورینو پهواسطه ترتیب او تدوین شویده ·

په پورتنی موده کښی د۱۳٤۱ د مالی کال دریم او څلورم ربع انکشافی تخصیصات او د۱۳٤۱ مالی کال پهانکشافی پلان کښی د شاملو وزاوتخانو او دوائرو تخصیصات وروسته د پخوانو مصارفو د تطبیق او اجرا آتو د رپو ټ د کتنی څخه د اجرا لاندی نیولی شوی دی ·

همدغه رنګه په پورتنی موده کښی د پلان دوزارت مامورینو او متخصصینو د هیواد لوی ساختمانی پروژی چه د کار لاندی نیول شوی لکه د کابل د سرك د تورخم د سرك د ننغلو داو بو بند د جلال آباد کانال د کابل سرك او شیرخان بندر د سالنګ سرك د پترول د تفحصاتو ساحه د تورغونډی قندهار او کابل د سرك او پوشمیر نوری پروژی پهځو ځو ځلی کتلی دی او د خپلې کتنی رپوټ ئی د وزارت مقام ته سپارلی دی او بیائی د خپلو مشاهداتو لهمخی دانکشافی رپوټونو د ترتیب پهبرخه کښی د مصارفو د رپوټ او بودجی په ترتیب کښی یوسلسله پیشنهادونه کړی دی چه د دوائرو د آمرینو سره د مفاهمی نه وروسته نوموړی پروژی د تطبیق وړ ګڼلی شوی دی «پای»

## دمخابراتو دوزارت کفیل ښاغلی انجنیر مساء

ښاغلی محمد حسین مساء د حاجی فقیر محمد زوی چه په ۱۳۲۲ کال کښی د حبیبیې له عالی ښوونځی ته فارغ التحصیل شو بیا له هغه چه د تحصیلاتو د دوام له پاره خارج ته لاړ شی دری کاله د کابل د پوهنتون د ساینس د پوهنځی د کیمیا او بیالوجی په څانګه کښی په تحصیل بوخت ؤ او په ۱۳۲۶ کال کښی د کانو د انجنیری په شق کی د عالی تحصیلاتو له پاره امریکی ته لاړ له شپږ و کلو نیو روسته په ۱۳۳۲ کال کښی په داسی حال کښی چه د کانو د انجنیری ډیپلوم ئی داریزونا له دار الفنون نه او د پټرولو د ما فوق انجنیری ډیپلوم ئی د امریکی د هوستن له دار الفنون نه په بریا لیتوب سره واخیست بیرته هیواد ته راغی.

دمخابراتو د وزارت کفیل ښاغلی انجنیر محمد حسین مساء

او د بیرته راتګ له وخت نه د ۱۳۳٤ کال تر نیمایی پوری د کانو او صنایعو د وزارت د استخراج او کشافی په مدیریتو کښی وظیفه دار او ده او د ۱۳۳٤ کال د اسد د ۳٤ نیټی نه د ۱۳۳۶ کال د سرطان د میاشتی تر اولی نیټی پوری ئی د پټرولو د پلټنو د ریاست په ثبت کښی د فنی مدیر په حیث وظیفه اجراء کړه وروسته له هغه د پلټنو د ریاست په بست نه د صنایعو د ریاست په بست کښی د کار او کارګرو د لوی مدیریت په کفالت تبدیل شو او د ۱۳۳۷ کال د میزان تر اولی نیټی پوری ئی د غی وظیفی ته دوام ورکړ او د دی میاشتی له اول نه د نفتو عالی شوری د تصویب په اساس د صنایعو د ریاست نه تبدیل او د پټرولو د پلټنی د ریاست د معاون په حیث مقرر شو او وروسته له هغه د کانو او صنایعو د وزارت په پیشنهاد او د وزیرانو د عالی مجلس په تصویب او د شاهانه مبارک ذات په منظوری د پټرولو د پلټنی د ریاست د کفیل په حیث مقرر شو.

ښاغلی محمد حسین مساء ته د خپل کار په موده کښی څو ځله د دولت لخوا نه لوړو مقاماتو له خوا تقدیر او نوازش ورکړ شوی دی او د معظم قولو اک همایونی

اعلیحضرت لهخوا څخهدستوری دریمه درجه نښان هم ورکړ شوی دی اودمملکت ډیری شمالی برخی یی لیدلی او پاکستان ، هندوستان ، عربستان ، عراق ، مصر ، ایتالیی فرانسی ، دالمان اتحادی جمهوریت ، هالند ، سویدن ، انګلستان د امریکی متحده اضلاعو ، مکیسکو اودشوروی اتحاد ځینو ایالتوته هم تللی دی .

## دمخابراتو دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| دوزارت کفیل | ښاغلی انجنیر محمد حسین مسا |
| معین | » » نصرت الله ملکیار |
| د پلان عمومی مدیر | » عبدالمجید |
| محاسبی لوی مدیر | » عتیق الله |
| د تیلفون او تیلګراف لوی مدیر | » انجنیر محمد عظیم ګران |
| د پست لوی مدیر | دکتور محمد قاسم فاضلی |
| د کندهار دمخابراتو لوی مدیر | ښاغلی حبیب الله |
| د هرات » » | » امیرالدین |
| دمزار شریف » » | » عبدالحق |
| دغزنی » » | » عبدالواحد |
| د پروان » » | » جمعه ګل |
| د قطغن » » | » عبدالرحیم |
| د ننګرهار » » | » امیر محمد |
| د ترانسپورتو لوی مدیر | » سیدعظیم الدین |
| دمخصوص قلم مدیر | » ګل علم |
| دمرکزی تیلګرافخانی مدیر | » عبدالغفور |
| » » » | » عبدالرزاق |
| د پاڼو مدیر | » میر فیض احمد |
| دخارجی ارتباط مدیر | » حیدر علی |
| د پست دصادری مدیر | » محمد ابراهیم |
| د تست اومعاینی مدیر | » محمد زمان |
| د فرمایشاتو مدیر | » محمدحسن |
| د پارسلو مدیر | » محمد شریف |
| د مخابراتو دښوونځی مدیر | » سراج الدین |
| د کندهار د لینو غځولو (تمدید) مدیر | » حاجی نور احمد |
| د کند هار د تیلګرافخانی مدیر | » فیض محمد |
| د هرات » » | » غلام نبی |
| د ګرشك دمخابراتو مدیر | » عبدالقیوم |
| د فراه » » | » نورالدین |
| د پکتیا » » | » شمس الحق |
| دمامورینو » | » سید غلام سخی |

# دمخابراتو دوزارت فعالیتونه

ددې د پاره چه د مخابراتو دوزارت د (۱۳٤۱) کال دمیزان نه د ۱۳٤۲ کال تر سرطان پورې اجراآت په ښه ډول وښودل شي. نو هغه څه چه د پلان په چوکاټ کښې عملي شوي او یا هغه کارونه چه د عادي بودجې په واسطه اجرا شوي بیل بیل په لاندنې ډول ښکاره کیږي:

۱ ـ د پلان په عمومي چوکاټ کښې: په دوو گروپونو اجراآت ویشل کیږي.

**الف ـ د تیلفون او تلگراف اجراآت:**

د کندهار او فراه د چینل سیستم پروژه.

د کندهار گرشك دلارام او فراه د پاره د کاوه دستگاو فرمایش چه د مخه ورکړی شوی و هغه کندهار او هرات ته را رسیدلی دی.

د هرات او کندهار ترمنځ د لین غځولو کار د سرك او خط سیر د تغییر په نسبت ځنډیدلی دی.

۲ ـ د کابل او تورخم د چینل سیستم په لین کښې تر ۱۳٤۱ کال پورې سربیره په (۱٦۰) کیلومتره لین غځولو څلویښت کیلو هوائی لین هم غځولی شوی دی.

د تورخم او کابل ترمنځ د چینل سیستم دستگاه هم رارسیدلی د درولو او په کار اچولو کارونې د مربوط متخصص تر رسیدو پورې معطل دی، د هوائی چینل سیستم د لین تمدید د بندونو او تونلونو د یستلو په نسبت چه د ننگرهار او کابل ترمنځ په لاره کښې په دې وختو کښې جاري دی او ددې کبله یې مشکلات پیښ کړی چه دغه لین د ځمکې لاندې کیبلونو په واسطه وغزول شي. دغه کیبلي دستگاه کابل ته هم رارسیدلې ده.

۳ ـ د کندهار د اتومات د دستگاه پروژه:

د کندهار د اتومات دستگاه چه (۲۵۰۰) ابتدائی لینونو او (۳۰۰۰) انتهائی لینونو د پاره گنجایش به په نظر کې نیولی شوی او پنځه میاشتې د مخه د (چکوسلواکیا) د کوو د کمپنۍ د انجنیرانو په ذریعه تکمیل او په کار اچولی شوی او س زیات و کم (۸۰۰) تلیفونونه نصب شوي مخابره تری جاري ده او مشترکین یې مخ په زیاتیدو دي.

د مخابراتو دوزارت د دوهمو پنځه کلونو پروژو په باره کښې چه د ځینو پروژو د اجرا کریدت د المان په دولت او نورو پورې مربوط شوي د سروې مقدماتي ترتیبات ربوټ تهیه او نور یې تکمیل او مطلوبو ځایو ته لیږلي شوي دي امید دی ژر به د دغو پروژو قراردادونه لاس لیك او پروژې تر اجرا لاندې و نیولی شي.

نوموړې پروژې چه د دولت په مالي بودجې پورې تعلق لري دغه به هم تر اجرا لاندې و نیولي شي.

## ب ـ دپست دعمومي مدیریت اجراآت :

دپستی اجراآتی دخانګو درسمي وخت نه داضافه کاري موضوع هم دوام درلود .

۳ ـ دعادي بودجې نه چه کوم اجراآت کیږی هغه هم په دوو ګروپونو ویشل شوي دي .

الف ـ دتلیفون اوتلګراف اجراآت.

۱ ـ په ولایاتو او اعلی حکومتو کښې په مختلف ډول شل پایې هوائی سوچبوردونه ودرول شوي اوچالان شوی دی .

۲ ـ دکابل دښار په شبکه کښې (۲۲۰۵) متر کیبل غزولی شوی او(۲۵۰) پایې نوی تلیفونونه ویشل شوی دی .

۳ ـ دپکتیا په ولایت کښې دتلیفون ( ۱۶۷ ) کیلو متره هوائی لین غزولی شوی او نوی شوی دی .

٤ـ دقندوز اوقزل کلا ترمنځ په(٦٠)کیلو متره فاصله کښې دتلیفون نوی لین غزولی شوی په دغه لین کښې زړپایې فلزی لګیدلی دی په دوه لینه ډول د صحیحې مخابری دپاره مساعداو برابر شوی دی .

٥ـ دننګرهار دولایت په مربوطو لینو کښې د (١٤٠) کیلو متره فاصله کښې د تیلفون لین نوی شوی دی

٦ـ دکابل په مرکز کښې درادیو تلګرفی اورادیو تلیفونی دوه دستګاوې نصب او په کار اچولی شوی چه نوموړی دستګاه کښې د بین المللی تلګرافی او تیلفونی مخابری دپاره استفادی و هګرځیدلی دواړه دستګاه د نوی سنګل ساید تخنیك دی هره یوه یې په یو وخت دوه مخابری کولی شي .

٧ـ دکابل په مراسله تلګراف خانه کښې د (٣٤٠) کیلو واټ امپیر په قوت(١٥) زره ولټه یوه پایه تر انسفار مر برقی په کار لاس پوری کړی چالان دی.

٨ـ دبغلان په مرکز په شیرخان بندر کښې دیو کیلو واټ په قوه تلګرافی او تیلفونی دستګاه نصب او په کار یې لاس پوری کړی دې .

او په همدغه ډول دشبرغان په مرکز کښې(٢٠٠) واټ قوه دستګاه چه دهغې په واسطه دمرکزاو ټولو ولایاتو سره هره ورځ مخابره کیږی دریدلی اوچالان ده.

٩ـ دکابل په خبر لیږونکی تلګرافخانه کښې د(٢٠٠)واټ په قوه یوه پایه تلګرافی او تیلفونی ترانمیستر لګول شوی دداخلی مخابری داجراآتو دپاره داستفادی لاندی نیول شوی چالانه ده.

ب ـ دپست دعمومي مدیریت اجراآت

ځنګه چه دهند اوتهران دلاری ځینو ملکونو ته سرخلاصی ترانزیتی پستی تبادله

داجراآتو دځنډ باعث کیدله اوهم دکابل دپستی اداراتو او نوموړو ادارو ترمنځ دپستی پنډ واندازی نه زیاتو نوددی دپاره دپستي دتبادلی په برخه کښي لاندی اجراآت وشول.

۱ـ دکابل او لبنان ترمنځ دپستی تبادله دیوی خوا اودکابل اوقاهری ترمنځ په مستقیم ډول سربټی هوایی پسته دبلی خوا جاری شوله او په همدغه ډول دکابل د پست اداري په مستقیم ډول دهوایی پستی تبادله دجاپان دپست داداروسره جاری اوټاکلی ده چه خپلی پستی په سربټی ډول دجاپان په نوم لیږی او په دی ورو ستی موده کښي دکابل او انقری دپستی او ادارو ترمنځ هم دسر بټي هوائی پستی تبادله په مستقیم ډول جاری شوی ده او د صوفیې (بلغاریې) دپستی ادارو څخه هم په مستقیم ډول سربټی پستی دکابل په نوم رالیږل کیږي او په همدې ډول دپیکنګ دپستی اداره خپلی سربټی پستی مستقیماً رالیږی .

۲ـ دغوټکو (پارسلو نو د تبادلی په برخه کښي چه دهانکانګ نه به دکابل دپستی ادارو ته ډیری غوټی (پارسلونه) را رسیدل نو دهانکانګ دپستی داداری دغوښتنی په اثر دهانکانګ او کابل ترمنځ دمستقیمي تبادلی لیږل رالیږل چالان شول .

۳ـ دداخلی اوخارجی کمپنیو دالوتکو دخارج په لور دپرله پستی زیاتو الوتنو په نسبت داروپایی، امریکایی، افریقایی او آسیایی ملکو نو د پستی تبادله هم ډیره شوې ده.

نو په دی برخه کښی باید ووایو چه دپستی ټولو په کار کښي پوره کوښښ شوی دی چه په ټاکلی وخت کښي دلیږلو دوخت پوري پسته تیاره شی چه خلك په پستی ادارو کښي دخپلو مراسلو دتحویل دپاره هروخت وکولای شی خپلی مراسلی په اسانی سره تحویل کړی په دی باره کښي د پخوا څخه برخلاف پسته یوه ورځ دمخه ترتیبات وتړلی شویده او په دی وخت کښي دالوتکی د حرکت په ورځ پسته تړله شی نو په دی ډول خلك کولای شی چه دالوتکی دحرکت په ورځ دسهار له خوا یو ساعت دمخه خپل مراسلات تحول کړی.

٤ـ دکابل او بیروت ترمنځ دهوایی پستی کرښی هم نوی شوی اود لنډو هوایی فاصلو خبرمربوطو ځایونه ورکړی شوی دی.

٥ـ دکابل په ښار کښي دپستی لس صندوقونه نصب شوی ددغو صندوقونو دپاره دری ډوله پاکټونه او خاص کاغذونه په هیوا د کښی د ننه دهوائی زمینی او ښاری پستی دپاره تهیه او برابر شوی دی او همدغه رنګه دوه دوه ډوله مخصوص پستی کارتونه ترتیب شوي ددغو صندوقونو نه اوس دداخلی اوښاری تبادلو سر ویستونه جاری دي او په نظر کښی دي چه نور انکشاف هم وکړی .

٦ـ دزیات پرمخ تـګ دپاره خارجـی ایر لیترونه چـه تر کـتنی لاندی دی ژر به په عملی ډول دکتنی وړوګرځی .

۷ـ پو دداخلي هوائی سرویس دنورو ملکونو نه دداخلي هوائی پستي دپاره په کار لاس پوری کړی چه دخارج نه داخلي ټولی هوائی پستي به د ننه هیواد کښي دهوادلاری نه تبادله شي .

۸ـ دخپلواکۍ دجشن په مناسبت د پستي لاندنی (٦٩) ډوله ټکټونه او ۸ ډوله دیادگار کاغذونه چاپ شوی دي او په همدې ډول دهمایوني اعلیحضرت د نیکمرغۍ زیږیدنی دکالیزې دسرې میاشتې دهنقي دهلکانو دښارندوی دملګرو ملتو د ورځې دهیواد دنامتو شخصیت خواجه عبدالله انصاري دیادوني، دمعلم دورځې، دهقان دورځې، دجهاني هواشناسی دورځې اودولبرۍ سره دمجادلی څپاره دغه پورتني ٦٩ ډوله د پستي ټکټونه او ۸ ډوله دیادگار کاغذونه چاپ شوی دي.

۹ـ د ۱۳٤۱ کال دسنبلې داول نه د ۱۳٤۲ کال دجوزا تر پایه پورې دخارج نه ٤٥۹۰۷ پارسلونه راغلي اوخپلو ځایو ته ورکړی شوی دي. «بای»

دکندهار دولایت داتومات ټیلفون دستګاه چه نوی په کار اچول شوی ده

# د روغتیا د وزارت کفیل
# ښاغلی دکتور عبدالرحیم

دی په ۱۲۸۸ لمریز کال کښې زیږیدلی او له ۱۳۰۱ کال څخه ئی تر ۱۳۰۸ پورې د برلین په لیسه کښې لومړنی تحصیلات په ۱۳۰۸ کښې بکلوریا حاصله کړه او ۱۳۰۹ نه ئی تر ۱۳۱۷ پورې د برلین په پوهنځی کښې د طب تحصیلات بشپړ کړل د طب له پوهنځی څخه د فراغت نه وروسته ئی د ۱۳۱۷ څخه د ۱۳۱۹ تر اولو و ختو پورې د برلین په عینی روغتونو کښې د دکتورات او ستاژ د بشپړ و لو له امله یعنی له ۱۳۰۹ څخه یی تر ۱۳۱۹ پورې خپل تحصیلات د دکتورات او عملی ستاژ سره په المان کښې بشپړ کړل.

د روغتیا د وزارت کفیل ښاغلی
دکتور عبد الرحیم

## پخوانی مأموریتونه:

له ۱۹٤۰ ع نه تر ۱۹٤۲ پورې د مجلس د روغتون د سر طبیب په حیث.

له ۱۹٥۲ نه تر ۱۳٤٦ پورې د پوهنځی د وزارت د روغتون د سرطبیب په حیث.

له ۱۹٤٦ نه تر ۱۹٤۹ پورې د مزارشریف د ولایت د سرطبیب په حیث.

له ۱۹٤۸ څخه تر ۱۹٥٥ پورې د ملا ریا د مجادلې د رئیس په حیث.

په ۱۳۳٤ لمریز کال کښې د روغتیا د وزارت د معین په حیث په عین حال کښې ئی تر اوسه لا د ملاریا د مجادلې د ریاست چارې کفالتاً په غاړه دی.

د ٤۱ د کب په ۲۳ نیټه د روغتیا د وزارت د کفیل په حیث د ښاغلی دکتور محمد یوسف په کابینه کښې مقرر شویدی چه تر اوسه پورې ئی د هیواد د روغتیا د وزارت دغه چارې په غاړه دی.

# د روغتیادوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| وزیر | دکتور عبدالرحیم |
| معین | « عبدالقیوم رسول |
| دمخصوص قلم مدیر | ښاغلی عبد الغفار |
| د پلټنی مدیر | « عبد الر شیدجلیا |

## د روغتیاچارو دریاست

| | |
|---|---|
| رئیس | دکتور عبدالرحمن حکیمی |
| د تشکیلاتو لوی مدیر | انجنیر علی احمد |
| دمرکزی روغتیا« « | دکتور میر غلام حیدر ماهر |
| دروغتونومدیر | ښاغلی میر محمد امین |
| د باندنی ارتباط مدیر | « یار محمد مجد دی |
| دمجادلی مدیر | دکتور نصر الله یوسفی |
| داکسریز او لابراتوارو نو مدیر | ښاغلی محمد قاسم یوسفزاده |

## اداری لوی مدیریت

| | |
|---|---|
| لوی مدیر | ښاغلی حبیب الله |
| دمحاسبی مدیر | « عبدالغفار |
| دمامورینو « | « سید ایشان |
| دعامو خدمتو « | « عبدا لمجید |
| دآر شیف « | « عبدالقادر |

## دغاښو جوړولو ریاست

| | |
|---|---|
| درئیس کفیل | دکتور میر غلام حیدر ماهر |
| دواکسین جوړولو دموسسی آمر | « سید محمود نثار |
| دښځو دستا توریم سرطبیب | « محمد سرور |
| دتوبرکلوز دموسسی « | « عبدالغنی افضل |
| دکابل دمحبس « | « محمدایوب |
| دابن سینا « | « محمداسلم |

## دملاریا دمجادلی ریاست

| | |
|---|---|
| افتخاری رئیس | دکتور عبد الرحیم (دوزارت کفیل) |
| فنی مرستیال | « عبدالقدیر |
| اداری « | « محمد یونس |
| دابن سینا داکسریز آمر | « محمد اکبر |

| | |
|---|---|
| دزیږنتون سرطبیب | دکتور محمد اکرم |
| دمرکزی لابراتوار آمر | ښاغلی سید محمد صادق |

## دعامو روغتیا ریاست

| | |
|---|---|
| رئیس | دکتور محمد عمر |
| مرستیال | « محمد نعیم شرف |
| اداری لوی مدیر | « عبدالقیوم |
| دتغذیی آمر | « محمد رسول میا خیل |
| دبیولوژی آمر | « دکتور مرتضی سمدی |
| دمنیدو او کوچنیانو دساتنی آمر | « نظام الدین شهابزاده |
| دپته لوژی آمر | « محمد قاسم |
| دوینو دبانك آمر | « سیدشعیب |
| دحیاتی کیمیا دڅانگی آمر | « عبدالقادرهوا |
| دنقدی محاسبی مدیر | ښاغلی محمد اشرف |
| دمحطیی حفظالصحی آمر | « شاه محمو روښان |
| دخدماتو مدیر | « احمد علی |
| دواکسینو دکنترولو آمر | « محمد علی زمان |
| دلیونی سپی دڅانگی آمر | « غبدالله رشیدی |
| دسیرالوژی « « | « عبدالستار |

## په ولایاتو او اعلی حکومتونو کښی روغتیا مدیران

| | |
|---|---|
| دکندهار دروغتیامدیر | دکتور محمد سرور |
| دهرات « « | دکتور محمد علی |
| دمزارشریف « « | « محمد ایوب |
| دننگرهار « « | « حسن علی |
| دقطغن « « | « میر محمدعلی |
| دپکتیا « « | « محمدطاهر |
| دمیمنی « « | « عبدالاحد |
| دشبرغان « « | « محمد یوسف |
| دفراه « « | « محمد رسول |
| دغوراتو « « | « گل آقا |
| دبدخشان « « | « عبدالله |
| دغزنی « « | « عبدالصمد |
| دارزگان « « | « تاج محمد |
| دبامیانو « « | « عبدالحمید واسعی |
| دتالقانو « « | « سیدمحمد انور |

# دروغتیا د وزارت فعالیتونه

څرنګه چه د مملکت په ځینو برخو کښې د مملکت د خلکو د صحي و اروغتیا او تداوي د پاره مناسب ځایونه او لازمه وسایل موجود نه وو نو له همدی امله د مراجعینو د کتنو او تداوي لپاره د نویو شفاخانو او پولي کلینیکو په وداندولو لاس پوری شویدی.

## د کابل د سل بستري شفاخانې ودانی:

د لمړی پنځه کلن پلان په جریان کښې د کابل د ښار او شاوخوا د ناروغانو د مراجعې له حیثه او همدا رنګه هغه ناروغان چه په اطرافی کلینیک کی معالجه کیدی نشول او هم د هغو ډاکترانو د تجربې او تخنیك او عصري طبابت د حصول له امله چه نوی له فاکولتې نه راوزی او هم د ډاکترانو د علمي سویې د لوړولو لپاره په نظر کښې نیول شوی ؤ چه یوه عصري شفاخانه جوړه شي، نو څرنګه چه دغه شفاخانه له مرتبه پروګرام سره سم تر یوی اندازی جوړه شوی او داچه د هغی افتتاح په ۱۳۴۲ کال کښې په نظر کښې نیول شوی ؤ نو د دروغتیا وزارت د شفاخانې د تدارك او د تجهیزاتو په برابرولو لاس پوری او د دغې شفاخانې طبي لوازم او نوری اړتیا وی ئې هم د هیواد له داخل او هم له خارجي مملکتونه توریه او برابر کړل او د مربوطو کارکوونکو په واسطه نصب او د دغې شفاخانې د سامان انستلاسیون او تجهیزات عملي شول.

## د ابن سینا د الحاقیې او لابراتوارو ودانی:

داچه له یوی خوا ورځ په ورځ د ابن سینا د شفاخانې مراجعین زیاتیدل او هم د تداوي د بسترو د قلت له کبله د خلکو شکایتونه ډیر ؤ او له بلې خوا پخوانی مرکزی لابراتوار توسعې او انکشاف ګنجایش نه درلود نو لدی امله د ابن سینا د شفاخانې په اراضي کښې یو نوی لابراتوار هم په نظر کښې و نیول شو نو له همدی کبله دغه ودانۍ چه په ۴۱ کال کی شروع شوی وه. د ابن سینا د الحاقیې بلاك د ۱۳۴۱ په آخر کی ختم او په د کار اچول شوی دی. او همدغه راز دغه لابراتوار هم په عصري سامانونو اولوازمو بشپړ او د ۱۴۳۲ کال د جوزا په میاشت کی افتتاح شویدی.

د روغتیا وزارت د ابن سینا د شفاخانې د پاره د امریکا د سولی د هیئتو له موسسی نه دری تنه نرس او د مدیسکو له طبي موسسې نه ئې دوه تنه داخله متخصص ډاکتران یو تن د جراحی ډاکتر او یوه تنه نرس را غوښتی دی او هم ئې له څه طبي سامانونو - آلاتو او دوا نه استفاده کړیده.

## دابن سینا په روغتون کښې دا کسریز دستگاه چه نوې په کار اچول شوې ده

### دلوگر ۲۵ بستریزه شفاخانه

له یوې خوا چه د لوگر ښځوانی شفاخانې د مربوطې سیمې داحتیاجاتو د پاره مناسب موقعیت نه درلود او له بلې خوانې موجوده ودانۍ دیوې شفاخانې د تدویر دپاره مساعده نه وه نوله دې امله دلوگر د کلنگار په سیمې کښې د یوې عصري شفاخانې جوړول په نظر کښې و نیول شول چه اوس د دغې ودانۍ کار سره له برېښنا او دابورسولو تکمیل شوی خو یوازې د بې باغچه او ابن څه کار لا پاتې دی دغه به هم په یوه یا دوه میاشتو کښې سرته ورسیږي . او همدار نګه د یوې عصري شفاخانې ټول تجهیزات چه د نوموړې سیمې د ولې الـتیاوې پوره کړای شي تـدارك او برابر شو یدي البته چه په همدې نږدې وخـتو کې به افتتاح او په کار واچول شي .

### دغزنی دملکی شفاخانې توسعه:

دغزنی دملکی شفاخانې په موجوده ودانۍ کښې دمراجعینو دورځ په ورځ زیاتیدو په نسبت د بسترو دزیاتیدو امکان نه لیدل کیده نو ددې دپاره چه له یوې خوا د زیات لګښت مخه ونیوله شي او له بلې خوا د بسترو دزیاتیدو امکان پیداشي دروغتیا وزارت تصمیم ونیو چه د دغې شفاخانې دوه پوړیزه ودانۍ جوړه شي او د همدې مفکورې له مخې د شفاخانې دوهم پوړ په ۱۳٤۱ کال کښې شروع او نږدې ده چه سرته ورسیږي . البته چه په همدې ورځو کښې به بشپړ او په کار به واچول شي .

## دفراه پولیکلینیک :

دلمړی پلان په آخرکښې شروع او د۱۳۴۱ کال په پای کښې تکمیل او دبل کال (۱۳۴۲) کال په اوایلو کښې افتتاح او استفاده ترې کیږی .

## دبغلان پولیکلینیک :

دبغلان پولیکلینیک چه پخوا شروع شوی و په ۴۱ کال کښې تکمیل او په لازمه وسایلو سمبال شوی او په ۱۳۴۱ کال کښې داستفادی وړ وګرزید او سربیره د بغلان په شفاخانه (روغتون) کښې نظر د مراجعینو په کثرت د ۱۳۴۱ کال په آخر کښې په بسترو کښې هم څه زیاتوالی وشو .

دپروان دنسوانو (ښځو) دطبقی دالحتیاځ دلری کولو دپاره یوه لس بستریزه شفاخانه په لازمه تجهیزاتو تدارک او په چار یکارو کښې به کاروا چول شوه او البته دنوموړی شفاخانی اساسی ودانی به چه دد وهم پلان د پروګرامو جزه وی دهغې داصای پروژی په تکمیل به دشرایطو دمساعدت په صورت کښې په راتلونکی وخت کښې اقدام اودهغې په توسعې کولو به هم لاس پوری شی .

## دپروان دپولیکلینیک تعمیر :

دپروان پولیکلینیک په ۱۳۴۰ کال کښې شروع شوی اود ۴۱ کال په آخر کښې ختم او په کار اچول شوی .

## دکندهار پولیکلینیک :

دکندهار دپولیکلینیک ودانی هم دلمړی پنځه کلن پلان په آخرکښې شروع او د ۴۱ کال په آخرکښې بشپړ او افتتاح شو اودهغه ځای دخلکو داستفادی وړ شوی دی .

## دننګرهار دمستوراتو دشفاخانی ودانی :

دننګرها دمستوراتو دشفاخانی ودانی په ۱۳۴۰ کال کښې شروع او کار ئې په ۱۳۴۱ اوبل کال (۱۳۴۲) کښې په بیړه روان دی ممکن دی، بل کال او یاد ۱۳۴۳ کال په اولو وختو کښې بشپړ او داستفادی وړ شی .

## دمیمنی دمستوراتو دشفاخانی ودانی :

دهغه ځای دمستوراتو دشفاخانی ودانی په ۴۰ کال کښې شروع شوی او څه ناڅه بشپړ شوی اوداوبو رسولو اود برښنا د سیستم او دهغې د تدارک او تجهیزاتو له تکمیل نه وروسته به د ۱۳۲۴ کال په آخرو وختو کښې داستفادی وړ شی .

## دبغلان دښځو اونارینه ودشفاخانی ودانی :

دبغلان دښځو او نارینه ؤ دشفاخانی ودانی چه تعمیر ئې نه درلود او همدارنګه دپلخمری دنارینه ؤ شفاخانه او دشبرغان پولیکلینیک په ۱۳۴۱ کال کښې شروع

او په ۱۳۴۱ او سږ کال (۱۳۴۲) کال کښې ددغو شفاخانو دودانيو کار روان دی
هیله ده چه د(۱۳۴۳ کال په اول کښې ددغو شفاخانو دانی بشپړی او په کار
واچول شی.

## اکسریزونه:

په ۱۳۴۱ کال کښې په لاندنیو شفاخانو کښې داکسریز دستگاوی په کار اچول
شوی او یا به په کار واچولی شی:

۱ـ داکسریز یو مکمله دستگاه دخوست په شفاخانه کښې بسته کاری او د ۱۳۴۱
کال په آخر کښې په کار اچول شوی ده.

۲ـ د بغلان په پولیکلینیک کښې هم په ۱۳۴۱ کال کښې داکسریز یوه دستگاه
بسته کاری او دهغه کال په آخر کښې افتتاح شویده.

۳ـ که څه هم داوسنی اکسریز د موسسې داکسریز له دستگاه نه کار اخستل
کیږی خود مراجعینو د کثرت په نسبت په نوموړی موسسه کښې د اکسریز دیوی
بلې دستگاه د په کار اچولو ضرورت هم و چه د ابن سینا داکسریز د نوی دستگاه
بسته کاری د ۱۳۴۲ کال په آخر کښې شروع او بشپړه شوه او د ۱۳۴۲ کال په اول کښې
دغه دستگاه په کار واچوله شوه.

## اوبه رسول:

د روغتیا وزارت د ۱۴۴۱ کال په آخر کښې په لاندې ډول موسسې د اوبو رسولو
په وسایلو مجهزی کړیدی.

۱ـ دمرکزی لابراتوار و موسسې ته اوبه رسول.

۲ـ د ابن سینا الحاقیې ته اوبه رسول.

۳ـ د لوگر شفاخانې ته « «

۴ـ د بغلان داکسریز پولیکلینک او موسسې ته اوبه رسول

۵ـ د پروان پولیکلینک ته اوبه رسول.

۶ـ دخوست دشفاخانې داوبو رسولو کار جریان لری او هیله ده په راتلونکی
نږدی موده کښې به تکمیل شی.

## دجنرا تورو نصبول او د برښنا دلین تمدید:

د روغتیا وزارت په ځینو صحی موسسو کښې چه ښاری برق ئی نه درلود،
د ۱۳۴۱ کال په آخر کښې ئی د برق د تولید جنرا تورونه نصب او په کار ئی
اچولی دی او ځینې هغه صحی موسسې چه ښاری برښنا
ئې نه درلوده ښاری برښنا په واسطه ئی د برښنا لین تمدید کړی چه له یوی خوا صحی
موسسې تنویر شوی او له بلې خوا به د هغه په واسطه داوبو رسول او طبی آلات
په کار واچول شی.

(پاتی په ۴۷۱ مخ کښې)

# دفوائد عامې دوزارت کفيل
# بريدجنرال محمد عظيم

په ۱۲۹۸ لمريز ۱۹۱۹ ع کښې د ننګرهار د لغمان په چار باغ کښې زيږيدلی لومړنی تحصيلات يې د هغه کلي په لومړنی ښوونځي کښې بشپړ کړيدي، وروسته له هغه په ح ـ ښ کښې داخل او هلته له بريالیتوب څخه وروسته په ح ـ پ کښې شامل شو او په ۱۳۱۷ ـ ۱۹۳۸ ع کښې له حربي پوهنتون څخه د لومړي بريدمن په رتبه فارغ التحصيل او د مرکزي قوي د خوردضابطانو په ښوونځي کښې د ستاژ د لوي دوري د پاره د استحکام د خورد ضابطانو دمفرزې د قوماندان په حيث مقرر شو.

په ۱۳۲۰ لمريز ۱۹۴۱ ع کښې په حربي پوهنتون کښې د استحکام د ښوونکي د مرستيال

دفوايد عامې دوزارت کفيل بريدجنرال
محمد عظيم

په حيث مقرر او په ۱۳۲۲ لمريز ۱۳۴۲ ع کښې ئې د تورن په رتبه ترفيع وکړه، سربېره پر هغه د ح ـ پ د دوهم قولي د قوماندان د (قولګی ضابط) په صفت مقرر شو او په ۱۳۲۴ ـ ۱۹۴۵ کښې د عسکري انجنيري د لوړو تحصيلاتو د پاره هندوستان ته وليږل شو او د يو نيم کال زده کړې نه وروسته بيرته وطن ته راغی او په ۱۳۲۶ ـ ۱۹۴۷ کښې ئې د جګړتورن په رتبه ترفيع وکړه او د کنړو په لوی حکومت کښې د سرکو تيرولو له امله د پيچ د دري د حاکم په حيث مقرر شو او په ۱۳۲۷ ـ ۱۹۴۸ کښې د ملي دفاع دوزارت د اتلتون د ښوونې او روزنې په لوی مديريت کښې د ښوونځيو د ځانګې د آمر په حيث او د ۱۳۲۷ ـ ۱۹۴۸

کال په‌منځ کښې دمرکزي قوا دا ستحکام دقو لي دقوماندان او په ۱۳۲۸_۱۹٤۹ کښې دملي دفاع دوزارت داستحکام په‌غونډ کښې د کنډك دقوماندان د کفيل په‌حيث مقررشو او له‌څومياشتو څخه وروسته دتدريسا تو دمديريت په کفالت او دحربي پوهنتون داستحکام دښوونکي په‌حيث تبديل شو اود ۱۳۲۸_ ۱۹٤۹ په‌جشن کښې ئې دجګړن په‌رتبه ترفيع وکړه او په‌۱۳۲۹_۱۹۵۰ کښې دح-پ دغونډ دقوماندانۍ په کفالت مقرراو په‌۱۳۳۳ کښې دڅ ګرمن په‌رتبه ترفيع وکړه او دملي دفاع دوزارت داستحکام د غونډ دقوماندانۍ په‌کفالت تبديل شو او په ۱۳۳٤-۱۹۵۵ کښې چه دفوايدعامې دوزارت په‌چوکاټ کښې دکارد قواؤ دقوماندانۍ تشکيلات منظورشول دی‌دصدارت عظمی د لوړمقام په‌صوابديد دهغې قوماندانۍ د کفيل په حيث‌مقررشو او په‌۱۳۳٦ _۱۹۵۷ کښې دانجنيرۍ په‌شق کښې دفيلوشيپ په‌حيث ددرو مياشتو په موده ترکيې ته‌وليږل شو او وطن ته‌د بيرته‌رارسيدو نه وروسته ئې په‌هماغه‌کال کښې دصدارت عظمی له اوچ‌مقام څخه‌لومړۍ درجه عسکري تقديرنامه واخيستله اودڅ ګروال په‌رتبه ئې ترفيع وکړه او په ۱۳۳۷ _ ۱۹۵۸ کښې دکارد قواؤ پرقوماندانۍ علاوه دفوايدعامې دوزارت‌دمعين د کفيل په حيث موظف او په ۱۳۳۹ _ ۱۹۵۹ کښې ئې دصدارت عظمی له‌لوړ مقام څخه‌بيا لومړۍ درجه‌عسکري تقديرنامه واخيستله اودهماغه‌کال دخپلواکۍ په‌جشن کښې ئې د بريدجنرال په‌رتبه‌ترفيع وکړه اودفوايدعامې دپخواني وزير له‌تبديليدو نه‌وروسته ئې دکارد قواؤ پرقوماندانۍ اودهغه وزارت په معينۍ‌سر بيرة دهغه وزارت دوکالت چارې اجراکولې، په‌پای کښې دملوکانه مبارك حضور دنمبر ۹٤۳ _۲۳ر۱۲ر٤۱ اود صدارت عظمی د نمبر ۱٤۵۷ ۲٦ر۱۲ر٤۱ فرمان په‌قرار دښاغلي دکتور محمد يوسف صدر اعظم په کابينه کښې دفوايدعامې دوزارت د کفيل په‌صفت مقررشو.

**نښانونه‌ئې:** په‌پورتنيو خدمتو کښې ئې څلور دوه‌تيا مدالونه‌او يو دکښېودخدمت او يو رشتين مدال او يو بريالی نښان او يو دميهن‌پال نښان او يودستوري لومړی‌درجه نښان اخيستی دی.

# دفوائدعامې دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| وزیر | برید جنرال محمد عظیم |
| داداری معین کفیل | ښاغلی محمد یعقوب عطایی |
| فنی معین | . . . . . . . |
| دمخصوص قلم لوی مدیر | . . . . . . . |
| **اداری رئیس** | **ښاغلی عبد العزیز عطایی** |
| دمامورینو لوی مدیر | . . . . . . . |
| دمحاسبی مدیر | ښاغلی عبدألرشید |
| دجنسی محاسبی مدیر | « فقیراحمد |
| د تصفیی « | « محمدحنیف |
| د دیپوگانو دزیرمی مدیر | « محمد ایوب |
| دپانو مدیر | « امان الله |
| **میخانیکی رئیس** | **« غلام محمد** |
| مرستیال | « فیض محمد |
| دتهیی او پیرودلو مدیر | « فضل احمد |
| دذاتیی مدیر | « سیدامیر |
| دترانسپورتومدیر | « محمد علی |
| دپروژی دارتباط مدیر | « . . . . . . |
| دماشینری مدیر | « حبیب الله |
| دنقدی محاسبی مدیر | « عین الدین |
| دورکشاپ مدیر | « عزیز احمد |
| دکتنی أو تشریح مدیر | « عبدالقدوس |
| دديپو لوی مدیر | « عنایت الله عزیزی |
| دزیرمی مدیر | « محمد صادق |
| دمعابر وفنی لوی مدیر | « أنجنیرغوث الدین متین |
| « اداری « | « حاجی ویس ألدین |

| | |
|---|---|
| دودانیوفنی لوی مدیر | ښاغلی احسان الله فرزاد |
| دودانیوداداری « | « محمد حسین |
| دپنداو یالی فنی « | « انجنیر محمد بشیر لودین |
| « « اداری « | « غلام جیلانی |
| دپلان او پروژی « | « محمد اکبر شایګان شهر یاری |

## په ولایاتو او اعلی حکومتو کښې دفوایدعامې مدیران

| | |
|---|---|
| دکابل ولایت دفوایدعامی مدیر | ښاغلی عبدالغفار |
| دکندهار « « « | « عبدالعلی |
| دهرات « « « | « محمد نعیم |
| دمزارشریف « « « | « عبدالرب |
| دقطغن « « « | « ایازالدین |
| دننګرهار « « « | « عبدالاحد |
| دپکتیا « « « | « محمد یوسف |
| دغزنی داعلی حکومت « « | « یوسف علی |
| دګرشک « « « | « بسم الله |
| دفراه « « « | « محمد قاسم |
| دمیمنی « « « | « محمد انور |
| دبدخشان « « « | « خیر محمد |
| دپروان « « « | « محمد حسن |
| دشبرغان « « آمر | « حسین علی |

## دکار دقواؤ دعمومی قوماندانی تشکیل

| | |
|---|---|
| دکاردقواؤعمومی قوماندان | ډګروال عبدالاحمد |
| دکار دقواؤ مرستیال | ډګرمن سیدعالمشاه |
| دکاردقواؤددیوان حرب رئیس | بریدجنرال امین الله |
| دکار دقواؤ دذاتیې مدیر | ښاغلی آقا محمد |
| « « « دمالی اومحاسبې لوی مدیر | ښاغلی عبدالرزاق |
| « « « مالی مدیر | تورن غلام محمد |
| « « « دساتنې او څارنی لوی مدیر | ډګرمن سید امیر |
| « « « دروغیا مدیر | ښاغلی غلام حیدر |
| دسالنګ عمومی آمر | ډګروال سلطان محمد |
| « « دلومړۍ برخې آمر | « عبدالرشید |

(پاتی په ۳۱۵ مخ کښې)

# دکرهڼې دوزارت کفیل
# ښاغلی دکتورکشاورز

دکتور محمد ناصر کشاورز دمحمدعمرزوی په ۱۳۰۴ لمریز کال زیږیدلی دی:
په ۱۳۱۲ کال کښې داستقلال په لیسه کښې شامل او تحصیل ئې بشپړ کړی دی:

دکرهڼې دوزارت کفیل ښاغلی دکتور محمد ناصر کشاورز

په ۱۳۲۴ لمریز په ۱۹۴۵ ع کښې داستقلال په لیسه کښې لومړی لمبر او له هغې لیسې په اعلی درجه دبکلوریا دیپلوم اخیستی دی

په ۱۳۲۵ لمریز په ۱۹۴۷ ع کښې دسیانس دپوهنځی دلومړی ټولګی تصدیق لیک په لومړۍ درجه.

په ۱۳۲۶ لمریز په ۱۹۴۷ ع کښې فرانسې ته دلوړو تحصیلاتو دپاره لیږل شوی دی.

په ۱۳۲۶ لمریز په ۱۹۴۷ ع کښې تر ۱۳۳۱ ـ ۱۹۵۲ پورې داسې بریالیتوب ئې او دیپلومونه اخیستی دی.

دپاریس دکرهڼې لهملی موسسې څخه دانجنیاتو دکنترول بری لیک.

دمونتپلیه دکرهڼې بهملی ښوونځي کښې دشمول دکونکور تصدیق لیک

دفرانسې په اګرونومی ملی عالی ښوونځي کښې دشمول دکونکور (تصدیق لیک)

د(فرانسې لهپوهنیو رستی څخه) دفزیک ـ کیمیا او طبیعی علومو دلوړو تحصیلاتو بری لیک.

د « « « دقو لو بو څېړو دلوړو تحصیلاتو بری لیک

دناسی له یو ینورستی څخه دکرهڼی د کیمیااو پیدو لوژی دلوړو تحصیلاتو بری لیک
د « « دقولی زولوژی « « «
د « « دقولی فیزیولوژی « « «
د « « دکرهڼی دزولوژی « « «
د « « دبوټیو « « «
د « « دانجنیری دیپلوم
د « « دبیولوژی علومو دلیسانسی دیپلوم.

په ۱۳۳۲ لمریز ۱۹۵۲ع کښی دپاریس دکرهڼی دعلمی تحقیقاتو په مو سسه اود سوربون په یونیورستی کښی ئی شمول.

په ۱۳۳۵ـ۱۹۵٦ کښی دسیانس د دکتور ادیپلوم (حکومتی دو کتوری په زیات افتخارسره )

« ۱۳۳۵ـ۱۹۵٦ کښی بیرته گران وطن ته راغی اود زوو تکنی دمتخصص په حیث دکرهڼی په وزارت کښی شامل شو .

« ۱۳۳٦ـ۱۹۵۷ کښی دمالداری دانکشاف دموسسی د رئیس په حیث.

« ۱۳۳۹ـ۱۹٦۰ع دکرهڼی دوزارت دحیواناتی تولیداتو اودوترنری د ریاست دکفیل په حیث .

۱۳٤۰ـ۱۹٦۱ ع کښی دکرهڼی دمعین د کفیل په حیث.

« ۱۳٤۱ـ۱۹٦۲ دکب په میاشت کښی دکرهڼی دوزیر دکفیل په حیث.

## تالیفات:

۱ـ دلبنیاتو دپاستوریزاسیون په باب کښی په فرانسوی ژبه رساله.

۲ـ دقره قلی پسو اودقره قلی پوستو دتولیداتو په باب په فرانسوی ژبه خپرونه.

۳ـ دشیدو ،غوښو، وړیو اودقره قل دپسو دپوستو دتولید په باب (په ٤۰ مخو کښی مصوره مجله)

٤ـ دکرهڼی دتکامل سیر اوترقیاتو په باب په فارسی ژبه په (۳۸ مخو کښی)

۵ـ په بیلو بیلو مرحلو کښی یعنی د جنین ،وری اود بالغ پسه په حالت سره دقره قل دگل د تشکیل اودتکامل دسیر په موضوع کښی د تحقیقاتو په باب دډاکتری تیزز.

دقره قل دپوستو دعواملو ـ کیفیت اوښکلا اود نژاد اوسلکیسون دانتخاب دپاره دهغوی داهمیت دمطالعی په باب (په فرانسوی ژبه ) مجله په (۱٤۷ مخو کښی چه اتیاتوقی ابتکاری میکروسکوپی عکسونه او پنځه ویشت ابتکاری احصاییوی تابلو.

٦ـ دهتروزیس یعنی هایبر دویگور (په انسان ـ حیوان او بوټیو کښی دهیبریداسیون دنتیجو دموضوع په باب دډاکتری دوهم تیزز .

**یادونه :**
دغه پورتني دوالس تهیزونه د پاریس د کرهنې د تحقیقاتو د مؤسسې له خوا چاپ شوي دي.

۷- د مالدارۍ او قره قل د تجارت په باب.

۸- په وروستیو څلویښتو کلو کښې د افغانستان د کرهنې په باب .

۹- د افغانستان په اقتصاد کښې د قره قل رساله (د مالدارۍ د انکشاف د ریاست مصوره خپرونه په فارسي ژبه )

۱۰ د قره قل رساله (د مالدارۍ د انکشاف د ریاست مصوره خپرونه په انګلیسي ژبه)

۱۱- په افغانستان کښې د کرهنې او مالدارۍ په باب (مصور کتاب)

۱۲- د قره قل د رمو په باب (مصوره رساله)

## د کرهنې د وزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| د وزارت کفیل | ښاغلی دکتور محمد نادر کشاورز |
| معین | ... |
| د ښاریو د حمایې او د | |
| نباتاتو د ساتنې رئیس | « مسجدي |
| د تولید او د ترویج رئیس | « دکتور محمد احسان رفیق |
| د طبیعي منابعو رئیس | « عبدالاحد |
| د پورد او پلان « | « عبدالمجید |
| د اقتصادي لوی مدیر | « غلام جیلاني |
| د اداري « « | « نور احمد |
| د وترنرۍ « « | « محمد اسلم خاموش |
| د اګرونومۍ « « | « میر سیف الدین |
| د ویترینرۍ د ښو ونځي مدیر | « میرکشاه |
| د قوریې مدیر | « حسن علي |
| د ابو لګو لو لوی مدیر | « عبدالمحبوب |
| د ځنګلونو « « | « محمد حسن کشتیار |
| د اطلاعاتو مدیر | « محمد نجیم آریا |
| د کرهنې د مجلې مسئول مدیر | « غلام مصطفی مهجور |
| د کرهنې د تحقیقاتو لوی مدیر | « عبدالغفور |

| | |
|---|---|
| دمالدارۍ لوی مدیر | بناغلی محمد انور |
| دادارۍ لوی مدیریت مرستیال | « میر حبیب الرحمن |
| دنباتاتو دساتنې لوی مدیر | « محمد یوسف |
| دجنسی محاسبې مدیر | « محمد عباس |
| دمامورینو مدیر | « مسجدی |
| د زنبور داری مدیر | « خواجه عبدالرؤف |
| د نقدی محاسبې مدیر | « جان احمد |
| د پلټنې مدیر | « حسن علی پرویز |

# فعالیتهای وزارت زراعت

وضع زراعت مملکت در ابتدای سال جاری نظر به قلت مقدار برف و باران در زمستان سال گذشته وماه حمل ۱۳۴۲ تولید قابل اندیشه بود ولی باران های متواتر اواخر حمل وثور اگرچه مشکلات زیادی را از چنین لحاظ تولید نمود ولی روبهمرفته از نگاه زراعت خیلی مفید ومؤثر واقع گردید .

مناطقی که طبق هدایت ورهنمایی وزارت زراعت پودر پاشی گردیده است (پودر گوگرد) از مرض خاك کسترك تاك متاثر نگردیده وازین رهگذر در تولیدات انگور ازدیاد بعمل آمده است .

تولیدات گندم نظر به عوامل طبیعی در نواحی فراه وننگرهار متأثر گردیده واز طرف دیگر تبدیل اراضی تحت بذر گندم به بذر پخته در صفحات شمال سبب تنقیص تولید گندم آبی وصعود نرخ آن گردید . اما این مشکل را تورید گندم از اتحاد جماهیر شوروی واضلاع متحد امریکا رفع وتا اندازهٔ کسرمتذکرهٔ را جبیره نموده است .

در اثر کمك های فنی ورهنمایی وزارت زراعت در اکثر نقاط مملکت وهم روی ریفورم اسماری وضع اقتصادی دهقان ومالدار نسبت به سابق بهتر وخوبتر گردیده است .

تولیدات پخته باثر افزایش نرخ خرید ورهنمایی زارعان توزیع وتطبیق کود کیمیاوی (۱۵۰۰۰) تن از صفحات شمال ونیز توسعهٔ ساحهٔ پخته کاری در ولایت هرات خیلی ها قناعت بخش میباشدچنانچه تولیدات امساله در حدود یکصد هزار تن پخته پیش بینی میگردد ودر سال جاری هشتاد هزار تن صد فیصد ازدیاد نظر بسال (۱۳۴۰) پیش بینی میشود .

(بقیه د ۶۸۰ صفحه)

# دمطبوعاتو وزیر ښاغلی رښتیا

ښاغلی سید قاسم رښتیا دمرحوم سید حبیب زوی په ۱۲۹۲ لمریز په ۱۹۱۳ ع کښی په کابل کښی زیږیدلی دی

دمطبوعاتو وزیر او دوزیرانو دعالی مجلس منشی ښاغلی سید قاسم رښتیا

## تحصیلات یی:

د ۱۲۹۸ تر ۱۳۱۰ پوری داستقلال په لیسه کښی له ۱۳۱۶ تر ۱۳۱۷ پوری په بانکی او اقتصادی کورس کښی

## رسمی وظیفی ئی:

په ۱۳۱۰ لمریز ۱۹۳۱ ع کښی دخارجه وزارت د مطبوعاتو دداېری لیکوونکی

په ۱۳۱۱ لمریز ۱۹۳۲ ع دمخابراتو دوزارت دخارجی ارتباط دڅانګی سرلیکوونکی

« ۱۳۱۲ « ۱۹۳۳ « دکابل دادبی ټولنی مترجم

« ۱۳۱۳ « ۱۹۳٤ « « « «غړی

« ۱۳۱۵ « ۱۹۳٦ « « دکابل ټولنی مهتمم

« ۱۳۱٦ « ۱۹۳۷ « « دمجلی مدیر

« ۱۳۱۷ « ۱۹۳۸ « دادبی ټولنی مرستیال

« ۱۳۱۹ « ۱۹٤٥ « دمطبوعاتو دریاست د نشراتو لوی مدیر

« ۱۳۲۳ « ۱۹٤٤ « دمستقل ریاست مرستیال

« ۱۳۲۷ « ۱۹٤۸ « دمستقل ریاست کفیل (دغازی سپه سالار سردار شاه محمود غازی په سکاله بینه کښی)

« ۱۳۲۸ « ۱۹٤۹ « داقتصادی پلان رئیس

په ۱۳۳۰ لمریز ۱۹۵۱ ع دملګرو ملتو دتخنیکی مرستی په هیأت کښې دحکومت دایمی نماینده
» ۱۳۳۱ » ۱۹۵۲ » دمامورینو دتعاونی موسسی رئیس
» ۱۳۳۳ » ۱۹۵٤ » دباختر آژانس دنشراتی موسسی رئیس
» ۱۳۳۵ » ۱۹۵٦ » دمطبوعاتو مستقل رئیس
» ۱۳۳۸ » ۱۹۵۹ » پهچکوسلواکیه کښې لوی سفیر
» ۱۳٤۱ » ۱۹٦۲ » پهقاهره کښې » »
» ۱۳٤۲ » ۱۹٦۳ » دمطبوعاتو وزیر

**افتخاری وظیفې یې:**

په ۱۳۲۵_۱۹٤٦څخه تر ۱۳۳۰ _ ۱۹۵۱ پوری دعامی رفاه دمجلس منشی اود مرستون ـروزنتون دمیرمنوټولنی اودافغانی سرې‌میاشتې دمؤسسوغړی.

په ۱۳۲۳_۱۹٤٤ کښې دخارجه وزارت دسیاسی خدمتو په مؤسسه کښې دافغانستان سیاسی تاریخ دمضمون استاد.

**تألیفات یې:**

سربېره په هغو زیاتومقالو چه‌په ادبی ـ تاریخی ـ سیاسی ـ اقتصادی او اجتماعی رشتوکښې له ۲۲ کالو راهیسی دمملکت پهمطبوعاتو کښې ددوی لهقلم څخه‌خپری شویدی خپل‌مستقل آثارونه یې هم تألیف اوترجمه‌کړی‌دی لکه‌په‌نولسمه پېړۍ کښې دافغانستان تاریخ ) کتاب چه چاپ شویدی (دجوان افغان )اجتماعی‌رساله‌چه د۱۳۳۸ کال‌دانیس په‌پاورقی کښې خپره شویده .

دپښتو دملی سندرو دکتاب دلومړۍ‌برخی ترجمه ددار مسنتر تألیف پهمستقل ډول په‌پښتو چاپ شویدی .

دخیرخانی دکوتل دکیندنو ترجمه‌چه جلا چاپ شویده اوڅو نور رمانونه ـ افسانی اونور.

**ژبې یې:**

پښتو ـ فارسی ـ فرانسوی ـ انګلیسی.

**مدالونه**

په ۱۳۲۳ـ ۱۹٤٤ کښې دپوهنی دوهمه‌درجه‌نښان

په ۱۳۳۷ ـ۱۹۵۸ کښې دستوری دوهمه‌درجه‌نښان

په ۱۳۳۸ـ ۱۹۵۹ کښې درښتین مطلاءمدال

**مسافرتونه:**

په ۱۳۲۳_۱۹٤٤ کښې هندته دهند دحکومت په بلنه دمطبوعاتو د هیأت د مشرپه‌حیث .

په ۱۳۳٤ـ ۱۹۵۵ کښې د باندونګ په جرګه کښې د افغاني مطبوعاتو نماینده او دهغه کال په پای کې دملګروملتو په عمومي اسامبله کې دافغانستان د نماینده په حیث.
په ۱۳۳۵ـ ۱۹۵٦ کښې شوروي اتحاد ته دافغانستان دمطبوعاتي هیأتو مشر.
په ۱۹٦۰ ع کښې دافغانستان دپاچاهمایوني اعلیحضرت په ملګرتیا یې عربي متحد جمهوریت او یوګوسلاویه کتلې ده.
په ۱۹٦۱ ع کښې ئې دعاج دساحل (لویدیځ افریقې) دآزادۍ دتلین په مراسمو کښې دافغانستان د نماینده په حیث.
په ۱۹٦۱ کښې یې په بلګراد کښې دغیرمسلکو هیوادو په جرګه کښې د افغانستان دهیأت دغړي په حیث او په ۱۹٦۳ کښې یې په تهران کښې دافغانستان او پاکستان درو ابطو دبیا برقرار یدو په خبرو اترو کې د افغانستان د هیأت دمشر په حیث ګډون کړیدی.

## دمطبوعاتو دوزارت تشکیل

| | |
|---|---|
| **وزیر** | ښاغلی سیدقاسم رښتیا |
| معین | « محمد خالد روښان |
| مشاور | « عبدالحمید مخمور |
| دمخصوص قلم مدیر | « .... |
| **دکورنیو خپرونو لوی مدیر** | « نظر محمد نوا |
| دارتباط مدیر | « عبدالکریم روهینا |
| دکورنیو خپرونو دمراقبت مدیر | « .... |
| دکتابخانې مدیر | « محمد سرور رنبا |
| دجوایزو او کتابو چاپولو مدیر | « میرغلام رضا مایل هروی |
| دافغانستان کالنۍ مسئول مدیر | « عبدالله محب حیرت |
| **دباندنیو خپرونو لوی مدیر** | « دکتور حفیظ الله ناصری |
| دباندنیو خپرونو دمراقبت مدیر | « محمد شریف ایوبی |
| دافغانستان پیوندلو مدیر | « محمدحسن فهیمی |
| **دثقافتي روابطو لوی مدیر** | « عبدالحمید مبارز |
| دباندنیو مراجعاتو مدیر | « محمد اکبر پردیس |
| دبین المللي ارتباط مدیر | « .... |
| **دعکاسۍ او فلم اخیستلو لوی مدیر** | « عبدالصمد آصفی |
| دفلم اخیستلو مدیر | « محمداکبر شالیزی |

**دلارښوونې لوی مدیر** ښاغلی محمدعلم غواص

دپیام حق دمجلې مسئول مدیر « فضل من الله فضلی

**اداری رئیس** « عبد الغفار

دمجاسبې لوی مدیر « رامچند

دمامورینو مدیر « محمد سرور وفا

دکنتر ول مدیر « محمدقاسم

دواردا تو مدیر « عبدالودود

دپاڼو مدیر « امان الله

## داصلاح نشراتي لمتد موسسه

دموسسې رئیس
اود اصلاح مسئول چلوونکی ښاغلی سید فقیر علوی

مرستیال « محمداکبر ار فاقی

اداری مدیر « غلام مصطفی فکرت

دپښتو د تدقیق آمر « محمد ایوب مومندی

د آرت مدیر « غلام علی امید

## دانیس نشراتي لمتد موسسه

دموسسې رئیس او دانیس

مسئول چلوونکی ښاغلی محمد ابراهیم عباسی

دمرستیال کفیل « محمد شفیع رهگذر

د تهیې مدیر « غلام عمر شاکر

د تدقیق مدیر « حفیظ الله

دژوندون دمجلې

مسئول چلوونکی « محمدشفیع رهگذر

دوهدو انیس کفیل « غلام عمر شاکر

اداری مدیر « عبدالغفار

دژوندون دمجلې مرستیال « محمدحسن بارق شفیعی

د نامه لیکونکو دځانګې آمر « میرایام الدین ساعی

دو رځپاڼې چاپو لومدیر « محمد عظیم کا بل وال

## دهیواد نشراتي لمتدموسسه :

دموسسې رئیس او مسئول چلوونکی ښاغلی محمدشاه ارشاد، مرستیال ښاغلی محمدرحیم عاصمی د تدقیق آمر ښاغلی عبدالرزاق نسیمی د نشراتو دځانګې آمر ښاغلی محمد نذیر

## دګرځندوی ریاست :

رئیس ښاغلی عبدالوهاب طرزی

مرستیال « جانباز کاپیسایی

اداری مدیر « غلام نقشبند توکلی

# نوې مقررۍ

د باختر آژانس د نشراتي مؤسسې
رئیس او د کابل تایمز د ورځپاڼې
آمر ښاغلی صباح الدین کشککی

د دولتي مطابعو رئیس ښاغلی
محمد ابراهیم کندهاري چه له دریمې
رتبې نه دوهمې رتبې ته ترفیع کړې ده

د اصلاح د نشراتي موسسې
رئیس او د ورځپاڼې مسئول
چلوونکی ښاغلی سید
فقیر علوي

د مالیې د وزارت مشاور ښاغلی
عبدالوهاب حیدر

د دولتي انحصاراتو رئیس ښاغلی
محمدالله کاظمي

## نوی مقرری

دعدلیې دوزارت دملکی مامورینو
دمحاکماتو دتمییز دمحکمې
رئیس ښاغلی عبدالباقی

دعدلیې دوزارت دملکی مامورینو
دمحاکماتو دلومړنۍ محکمې
رئیس ښاغلی محمدانور واحدی

دمطبوعاتو دوزارت
دکورنیو خپرونو لوی
مدیر ښاغلی نظرمحمد نوا

دفوایدعامې دوزارت اداری
رئیس ښاغلی عبدالعزیز عطایی

دفوایدعامې دوزارت دکار دقواؤ
لوی قوماندان ډگروال عبدالاحمد

دتبلیغاتو مدیر ښاغلی محمد امین سلیمان
دمحاسبې او اجراییې مدیر « محمدهاشم فهیم

### دکابل راډیو نشراتي موسسه

رئیس دکتور محمود حبیبي
مرستیال ښاغلی حفیظ الله سحر
داداري او محاسبې مدیر « میراجان سحقي
دپښتو نستان « « عبد المنان دردمند
دمراقبت « « عبدالله غمخوار
دتدقیق « « غلام دستگیر پنجشیري
دپروگرامو اوروزني لوی مدیر « سلیمان لایق
داعلاناتو مدیر « سید عبدالحکیم شرعي
دپښتون ږغ « « سراج الدین وهاج
دنطاقانو « « غلام غوث خیبري
د اطلاعاتو لوی مدیر « عبداللطیف جلالي
دکورنیو خپرونو مدیر « میرسعید بریمن
د راپور تاژو نومدیر . . . . .
دباندنیو خپرونو مدیر « غلام شاه سرشار
د ادبیاتو او ددرامو لوی مدیر « سلیمان لایق
دډرامو مدیر « عبدالرحمن بینا
دموسیقي « « حفیظ الله خیال

### دکابل راډیو تخنیکي ریاست

رئیس ښاغلی انجنیر عبدالکریم عطایي
مرستیال « انجنیر محمد اکرم
دستوډیو مدیر « « « «
دستوډیو فني مدیر « محمد مهدي
دورکشاپ مدیر « دوست محمد
دبرودکاست « « محمد حسن
اداري « « . . .

### دپوهني ننداري ریاست

رئیس ښاغلی عبدالرشید لطیفي
مرستیال « محمد ابراهیم خواخوږی
دفلمونو د تولیداو ویشلو مدیر « رستم علي سلطاني
دمحاسبې او اداري مدیر « محمد عثمان قانع
دتیاتر مدیر « عبدالقیوم بیسد
دکابل ننداري مدیر « نیک محمد قایل

## دتیاتر هنری موسسه :

| | |
|---|---|
| آمر | ښاغلی فیض محمد خیرزاده |
| اداری مرستیال | « محمد عمررسا |
| سکرتره | میرمن صابره |

## ددولتی مطابعو دریاست تشکیل :

| | |
|---|---|
| رئیس | ښاغلی محمد ابراهیم کندهاری |
| مرستیال | « نجفعلی نباتی |
| دلیك مدیر | « عبدالرشید |
| اداری لوی مدیر | « محمد رحیم |
| دلوازمو مدیر | « غلام محمد |
| دخارجی فرمایشاتو مدیر | « محمد نادر |
| دپانهو ځای مدیر | « محمد رفیق |
| دمحاسبی لوی مدیر | « عبدالحمید |
| دجاری حساب مدیر | « غلام علی |
| دطلباتو مدیر | « حیات الله |
| دکنترول مدیر | « میر غلام دستګیر |
| دتخنیك لوی مدیر | « محمد اکبر |
| دخطاطی اوآرت مدیر | « عزیز الدین فوفلزائی |
| دحروف چینی مدیر | « چراغ علی |
| دزنکوگرافی مدیر | « عبدالحق صیقل |
| دډروازی مدیر | « فدا محمد |
| دډیپوگانو مدیر | « محمد رحیم |
| دتصحیح لوی مدیر | « فدا محمد صارم |

## دباختر آژانس نشراتی موسسه :

| | |
|---|---|
| رئیس | ښاغلی صباح الدین کشککی |
| مرستیال | « محمد ولی علمی |
| دباندینو خبرونو لوی مدیر | ښاغلی میر محمد حسن |
| دکورنیو خبرونو مدیر | ښاغلی محمد کریم شیون |
| دپښتونستان دڅانګی مدیر | ښاغلی عبدالشکور بیکس |
| تخنیکی مدیر | ......... |
| اداری مدیر | ښاغلی محمد انور مفتی |
| کابل ټایمز دورځپانی د نشراتی موسسی آمر | ښاغلی صباح الدین کشککی |
| مسؤل چلوونکی | ښاغلی سید خلیل الله |
| مرستیال | ...... |

**په‌ولایاتو اواعلی حکومتونو کښې دمطبوعاتو مدیران :**

دکندهاروطلوع افغان دورځپانې مسئول چلوونکی ښاغلی آقامحمد کرزی
دهرات داتفاق اسلام » » » » عبدالواحد نافذ
دمزارشریف د بیدار » » » » حبیب الرحمن جدیر
دقطغن داتحاد » » » » عبداللطیف نشاط ملك خیل
دننگرهار » » » »
دپکتیا دوهانګی » » » » نقیب الرحمن سرلوړی
دفراه دسیستان جریدې » » . . . . . . . . .
» » » مرستیال ښاغلی عبدالرحیم پویان
دمیمنې دستورې دورځپاڼې مسئول چلوونکی » عبدالجلیل وجدی
دبدخشان دورځپانې مسئول چلوونکی » احمدجان کامران
دپروان » » » » غلام محی الدین ایوبی
دهلمند دجریدې » » » محمد ابراهیم عطائی
دغزنی دسنایی ورځپانی » » » نورمحمد پوونده
دننگرهار دمجلې » » » مطیع الله چمپیلی
دهرات دادبی مجلې » » » عبدالرؤف فکری سلجوقی
دشبرغان دډیوې دجریدې مسئول چلوونکی » محمد شریف نسیم پروان

# دمطبوعاتو دوزارت فعالیتونه

## دکورنیو خپرونو لوی مدیریت:

## دجایزو او کالنۍ دکتابو چاپولو دمدیریت د اجراآتو لنډیز:

۱ : چاپه مطبوعاتی جایزه وړې دې :

**الف مولفین**

ښاغلی عبدالرؤف بینوا داوسنی لیکوال کتاب . سید بهاؤ الدین مجروح جبر او دیالکتیک .

غلام علی آئین په‌ننني نړۍ کښې علم (علم درجهان امروز) .

محمد شاه ارشاد دجامعی پېژندلو کښې دقرآن لار .

نګهت سعیدی دلیکلو ډول (روش نګارش) .

سید فقیر علوی څنګه‌ؤ اوسو (چگونه باید زیست) .

سید اسدالله ستومان تخنیکی ربوټونه .

خال محمد خسته دمړو یادونه (یادی از رفتگان)

### ب: داستان لیکونکی

غلام غوث خیبری قهرمان

حبیب الله هاله د دریو داستانو ترجمه .

### ج: درامه لیکونکی

غلام صفدر پنجشیری داصحاب کهف (ترجمه)

### د: رسامان

محمد رحیم د کلیو واتر کلر :

قیام الدین زهه سکاره پلورونکی ښځه (پیرزن ذغالی)

صورتگر دشپو میلودی رسم .

### دلاسی چاروهنرمندان :

عبدالله طغرا په لرگی کښنی

عبدالعزیز گندمی د کلیو دوښو لاسی کار .

عبدالعزیز وفاد کاغذ له ټوټوڅخه دزاهه سړی شکل جوړ کړیدی

### و: خطاطان

میرمحمد ابراهیم - سیدحمایت الله - سیدصدیق چه یوه ښلو ریزه ئی لیکلی ده .

### سندرغاړی :

میرمن رخشانه ـ میرمن ژیلا ـ سیدعلم .

### ج: سازغږوونکی

عبدالکریم دوتاره غږوونکی . غلام حسن سرنده غږوونکی .

### لویدیز ساز :

سرمست ماندولین ـ ننگیالی ترمپت ، شوقی سندرغاړی مددی .

### ی ممثلان :

خان آغا سرور ـ پیغله مقدسه . (اکتوران)

۲: د ۱۳٤۰ ـ ۱۳٤۱ کالنی خپره شوه او خپرد و منا بعو ـ وزارتخانو او خارجی خپروونکو مؤسسوته ولیږل شوه او یوشو نسخی ئی هم وپلورلی شوی .

۳ : دالاندې کتابونه دکورنیو خپرونو داوی مدیریت دجایزو او کتابو چاپولو دمدیریت له خوا چاپ شوی دی :

طبقات الصوفیه ـ صدمیدان ـ الهی نامه ـ دخواجه عبدالله انصاری گازرگاه د فکری سلجوقی تألیف او ښکلاته کتنه (نگاهی بزیبایی) دا ستاد دصلاح الدین سلجوقی

تأليف ـ چونغر ـ دسليمان لايق او سل پوښتني او دهرات دپيرسالګره داداري لهخوا چهددغو کتابو څخهيو څه پلورل شوي دي .

سربيره پرهغو دکلثوپاترا (دوهم ټوك) دمير من رقيه ابوبکر ترجمه . آخرين ستاره دبناغلي محمود فاراني اثر،ستاك دښاغلي بارق شفيعي اثر ـ امواج هريو اودښاغلي مايل هروي اثر هم لهنويو کتابو څخهدي چهدخپلواکۍ دپيرته لاس ته راوستلو دتلين نهپخوا چاپ اوخپاره شوي دي .

٤ : دمطبوعاتو دوزارت دکورنيو خپرونو لوى مد يريت دخوا جه عبدالله انصاري هروي دتلين دتجليل لهامله ۱۲ تنهمستشرقين کابل ته دابللي ووچه په کابل ننداري اوهرات کښې ئي له افغاني پوهانو سره علمي اوعرفاني مجلسونه جوړ کړيوؤ .

## د ارتباط دمديريت د اجر آتو لنډيز :

ددغه مديريت لهخواپهدي کال کښې دنشراتي سويې دانکشاف دهنراو دمطبوعاتو دتعميم لهلياري دتبليغ زياتولو او دوسايلو تهيه کولو ئيچه دمطبو عاتواو د هغو داختصاصي څانګو دفعاليت اړى تشکيلوى زيارايستل شويدى .

جريدوـ ورځپاڼوـ مجلواو خپرونکو مؤسسو دذيعلاقه څانګو لهلارېنو دئي څخهاستفاده کړيده ، دمطبوعاتو وزارت لهدغومؤسسو سره پهمرستو کښې په ښه وجه او په مناسبو فرصتو کښې برخه اخيستيده اولهدغيلاري څخهئي دخپرونکو مؤسسو دخپروني پهتعميم ، دسويي پهلوړولو، نشراتي فعاليتواودمالي حالت پهښه کولو کښې خدمت کړيدى ـ دغهراز دغه مديريت دهيواد لهعرفاني ټولنو اونورو علمي ټولنو سره دهغو مؤسسو ارتباط پيداکړي دهيواد دخپرونکو منابعو دسويي پهلوړ ولو کښې ئي دليکوالواوفاضلانو پاملرنه جلب کړيده. پههمدغهډول دمطبوعاتوله نورو اورګانو اوهغو خپرونو سره چهدذيعلاقه مؤسسو دمرام دپرمخ بيولو لهامله پهنورو مؤسسوکښې فعاليت کوى چهلازم ګډهل شوىدهمرستهاولار ښودنه ئيشوي پهبيلو بيلو مواردو کښې دخپرونکو مؤسسو مراجعات عمومي ټولنې ته ښودل شوي او په هغه اثرعمومي ټولنې تصويبونه هغوى تهابلاغ شويدي .

سربيره پردغو کوششو دملي او بين المللي هيلود سرته رسو لو لهپاره د هغوى لهمنابعو څخه دضرورت وړمواد اوخپرونکي موادتهيه اومطبوعاتي اوخپرونکو داپروته ورکړ شويدي .

## د باندنیو خپرونو لوی مدیریت :

دغه څانگه د مطبوعاتو د وزارت یوه حساسه څانگه ده چه دوه مدیریتونه لري چه یوئې د خارجي خپرونو د څارنې او بل ئې د افغانستان د معرفۍ مدیریت دی .

۱ : د خارجي خپرونو د څارنې مدیریت دا وظیفه لري چه هغه جریدې ، مجلې کتابونه او نورې خپرونې او د خارجي هیوادو مطبوعاتو چه افغانستان ته وارد یږي وگوري او هغه مطالب سانسور کړي چه د مطبوعاتو د قانون له مخې د خپرولو وړ نه وي او د افغانستان د مذهب او سیاسي موقف څخه مخالف وي .

دغه څانگه د خارجي مطبوعاتو د مطالعه کولو په منځ کښې کومې خپرونې چه د افغانستان په باب حقیقت ونه لري پر له پسې د چارو واکمنو او مربوطو څانگو ته ورلیږي او تردید ، توضیح او اصلاح کوي ئې او هغو خپرونو ته مناسب حقیقت ورښکاره کوي چه بیا بیا د غسې له حقیقته لرې موضوعات خپاره نه شي .

سربیره پر هغه دغه څانگه د دولت له دائرو او مؤسسو سره مستقیمه رابطه لري د استفادې وړ مضمونونه او موضوعات وخت په وخت ورکوي او د دوی د زیاتو معلوماتو او خبرونې له امله یې لازم کښې مرسته ورسره کوي .

## د افغانستان د معرفۍ مدیریت اجراآت :

د افغانستان د معرفۍ مدیریت پدې کال کښې سربیره پر کتابو ـ مجلو او نورو وړو کوچنیو موادو چه هر وخت ئې په خارج کښې افغاني سیاسي او کلتوري نمایندگیو ته او په داخل کښې د باندنیو هیوادو سیاسي او نورو نمایندگیو ته استولي دي هغو زیاتو خارجي اشخاصو او مؤسسو ته ئې هم په ذړه پورې مواد برابر کړي او استولي دي چه زمونږ د هیواد په باب ډیرو شوقي کښې ئې له دې مدیریت څخه معلومات غوښتي دي .

په لندن او قاهره کښې ئې هم د افغاني اطلاعاتو ادارو ته هم ډیر مواد لیږلي دي په لندن کښې د افغاني اطلاعاتو اداره ددې مدیریت ورلیږل شوي مضمونونه او فوتوگانې په زیاتره زمونږ د هیواد ورځنۍ فعالیتونه دي . په دریو د انگلیسي ـ المانۍ او فرانسوي ، ژبو هره میاشت په (افغانستان نیوز) مجله کښې چاپوي چه د هغو مجلو زیاته برخه په لندن کښې د افغاني اطلاعاتو د ادارې په واسطه ټولو باندنیو هیوادو ته توزیع کیږي او یوه شمیرئې د دغه مدیریت له لیارې څخه داخلي موسسو او په مرکز کښې د باندنیو هیوادو نمایندگیو ته هم توزیع کیږي .

دغه راز په قاهره کښې د افغاني اطلاعاتو اداره هم هره میاشت د افغانستان مجله په یوه اندازه په عربي ژبه چاپوي او خپروي ئې . دغه مجله هم باندنیو هیوادو ته استول کیږي او هم په داخل کښې د باندنیو هیواد و د نمایندگیو او د نورو داخلي مؤسسو د استفادې دپاره توزیع کیږي .

آریانا) په نامه یوه خپرونه په انګلیسي ژبه هم خپریږي چه یوزیات شمیرئې په خارج کې افغاني، سیاسي، کلتوري او نظامي کلتور یوته او یو شمیرئې په کابل کې د بالندنیو هیوادو صیاسي نمایندګیو او نورو داخلي موسسو ته توزیع شي .

## دلارښودنې دلوی مدیریت اجراآت :

دلارښوونې لوی مدیریت په تیرکال په دیني او ملي تبلیغاتو ـ د خلکو د ذهنو په تنویر، د پیام حق د مجلې په خپرولو د خطیبانو امامانو په نظارت او لارښوونه کې زیار ایستلی دی چه د اجراآتو لنډیز ئې په لاندې ډول دی :

۱ : د پیام حق مجله د هرې میاشتې په سرکې په ډیرو ښو مضمونو سره چه د مملکت د لوړې درجې مسلکي لیکوالو تهیه کړي یدې خپره شویده او د مملکت د جوماتو او دینې آبد و په پیژندلو کې کوشش کړی یدی چه د هر یوه لوی رنګه فوتوګانې ورسره نشر کړی او تاریخچه ئې بیان کړیده .

همدا وجه ده چه د مجلې د ښه والي او جامعو معلوماتو په اثر د هغې علاقمندان ډیرشوي او د مشترکینو شمیرئې په سلو کې پنځه ویشت زیات شویدی .

۲ : په راډیو کې د سبا ئي له مخې د قرآن مجید څو آیتونه بر له یسې د سترو قاریانو او مفسرینو په واسطه وبل شوي او تفسیرئي شویدی چه په یوه کال کې له راډیو څخه ۳۶۵ تفسیر پروګکاست شویدی .

۳ : د جمعې په هرمابنام په پښتو او فارسي مفصلي او ګټورې اجتماعي او اخلاقي موعظې تهیه او په یوه کال کې ۵۲ موعظې په راډیو کې بروډکاست شویدی .

٤ : د میلاد او عاشورا دورځو د محفل او خبرونو پروګرام په نوي او جامع شکل تهیه او په راډیو کې بروډکاست شویدی .

لکه چه د میلاد شریف په پروګرام کې ۱۲ مضمونونه او د محرم دورځو په پروګرام کې ۱۸ مضمونونه د سترو لیکوالو په قلم تهیه او بروډکاست شویدی .

۵ : د کابل په ښار کښې په تیرکال کښې د جوماتو د نظارت په لړ کښې ٤٦ تنه خطیبان او امامان او ۵۲ تنه مؤذنان د ازموینې له اخیستلو او د هغوی د لیاقت له اثبات نه وروسته د کابل د ښار په جوماتو کې نوي مقرر او ښاروالي ته معرفي شویدی .

٦ : په تراویحو کې د قرآن کریم د ختمو د ښاره چه د کابل د ښار په ۹۲ جامعو جوماتو کې وشول ۱۸٤ تنه قاریان او فاتحین د ازموینې له اخیستلو نه وروسته د ختمو د یاره ټاکل شوي او کابل ښاروالي ته معرفي شویدی .

۷ : د حج لارښوونکي کتاب چه بشپړ معلومات یکې ؤ په پښتو او فارسي تدوین او چاپ شوی او د حج په مناسکو کې د اسانتیا ؤ برا بر ولو د پاره حج ته د افغاني حاجیانو د تګ په وخت کې ټولو افغاني حاجیانو ته ورکړ شوي او ور پسې اندې و بشل شويدی .

۸ : د کابل د ښار په جوماتو کې د جمعې د ورځو د خطبو او موعظو په اصلاح کښې

خطيبانو او مبلغينو ته لارښوونه شوي او د لايقو قاريانو په ټاکلو او د فاتحې د مجلسو د آدابو په رعايت کې ګټور اقدامات او ارشادات شوي دي .

۹ : کوم خارجي کتابونه او مجلې چه د پلورلو او توزيع کولو د پاره راځي د ديني ارشاداتو او د مملکت د ملي عنعناتو له نظره کتل شوي او پدې يوه کال کښې ۳۴ کتابونه او زياتې مجلې مطالعه او نظريه ئې ورکړ شويده .

۱۰ : زموږ ني مسلکي کتابخانه چه پدې وختو کې تشکيل شويده په تير کال کې ۳۱۵ نوي کتابونه او کلکسيونونه پکې زيات شوي دي .

۱۱ : د مستقلو کتابو د خپرولو په لړ کې (د محمد عبقريت) کتاب چه يوه مصري ليکوال تأليف کړيدى د دغه لوي مديريت له خوا د ښاغلي محمد ګلاب ښاد په واسطه له عربي څخه په پښتو ترجمه او چاپ شوي او د نبي (ص) د ميلاد په محفل کښې توزيع شويدى . سربيره پر هغه هغو کسانو ته چه ذوق ور سره لري هم د استفادې د پاره ورکړ شويدى .

۱۲ : په هره هفته کې د ديني لارښوونې تر عنوان لاندې يوه اخلاقي مقاله تهيه او د اصلاح د ورځپاڼې په واسطه خپره شويده .

۱۳ : د پښتو او فارسي د موعظو پخوا ني سلسله چه په کابل راډيو کې پروګرام کاست شويده د هغې د علاقمندانو په غوښتنه په دوه وړو کې تدوين ، چاپ او د چينګاښ د مياشتي تر آخره پورې بشپړه او توزيع شوي او د کابل او ولايتو خطيبانو ته به هم د استفادې د پاره ورکړى شي .

۱٤ : د افغانستان د نامتو عارف خواجه عبد الله انصاري (رح) د وفات د نهه سوم تلين په تقريب چه د مطبوعاتو له خوا تجليل شو د پيام حق يوه فوق العاده مجله چه د هغه بزرګوار د حال او علمي او عرفاني مقام شرح او د اسلامي تصوف لنډ تعريف پکې دى چاپ او د هغه د تلين د افتتاح په محفل کې قراؤ ته ورکړ شويدى .

## د فلم او عکس اخيستلو د لوى مديريت فعاليتونه :

د دې وزارت فلم اخيستونکى څانګې په تير کال کښې دا لاندې فلمونه اخيستي دي :

۱ : يکنياته د همايوني معظم اعليحضرت د سفر په باب پوزنګه لس دقيقي فلم .

۲ : د افغانستان د طبيعي منظرو او توريستيک يو فلم چه د ښودنې په وخت کښې ۲۵ دقيقې وخت نيسي .

۳ : د ځوانو د څارندوي او د ملخو په ضد د مجادلې په باب يو لس دقيقي فلم .

٤ : کابل ته د ايران د شهنشاه د راتګ يو لس دقيقي فلم .

٥ : د خواجه عبد الله انصاري د تلين او مراسمو څخه يو لس دقيقي فلم .

٦ ، د ننګرهار د کانال جوړونې له فعاليتو څخه يو لس دقيقي فلم .

۷ : د سپين بولدک د سرک د افتتاح او د کابل د پوهنتون فارغ التحصيلا نو ته د برى ليکو د توزيع په باب .

۸ : د وسلو د ترمیم د فابریکې د بښتنې ایښودلو چه پاچا یوولس دقیقې فلم .

۹ : درابرت جفری د بالت یوولس دقیقې فلم .

۱۰ د کورو جوړولو د فابریکې او د کلیو د انکشاف د ښار لیدو او د کندهار د سړك د پرانیستلو او د کابل ننداری او د سرو ښځو د شرکت د ترمیم یوولس دقیقې فلم

د توریستیك د فلم بشپړ د نه ۳۵ دقیقې وخت نیسی ، دغه فلم رنګه او په انګلیسی پښتو او فارسی ژبو تهیه کیږی د افغانستان د لیدلو وړ ښکلیو منظرو د ننداره ښی آثارو فلم ښیی . دغه فلمونه چه په ۱۶ ـ او ۳۵ ملیمتره کابی ګانو کښی په پښتو فارسی او انګلیسی ژبو تهیه شوی دی د زمریز په میاشتی په آخر کښې ئی قول کابی ګان کابل ته رارسیدلی دی د فلم اخیستلو شانګی له هغو خارجی فلم اخیستونکو سره چه کابل ته د فلم اخیستلو د پاره راغلی دی مرسته او هغوی ته لارښود نه کړی ده لکه چه د نا سیونال برودکاسټینګ کمپنی د راډیو تلویزیون له هیأت سره چه یو فلم ئی د افغانستان څخه تهیه کړی او امریکې ته د همایونی معظم اعلیحضرت د تشریف وړلو په موقع کښی ښودل کیږی مرسته شوی ده . د غه راز د پلار پیس

د مطبوعاتو د وزارت معین ښاغلی روښان او په کابل کښی د شوروی اتحادلوی سفیر ښاغلی انتونوف د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د کلتوری معاهدی لاسلیك کولو په وخت کښی

دراډیو تلویزیون یو هیأت په افغانستان کښې د فلم په اخیستلو لګیا دی چه دځانګی دعږو له خوا کمک او د دوی د کار د پرمخ بیولو د پاره وړ آسانتیا و ی و ر ته برابری شوی دی .

د دغی څانګی ګرځنده سینما پدی کا ل کښې په پروان ، قطغن ، مزار شریف شبرغان ، کندهار، غزنی او ګرشک کښې عرفانی اوروزونکی فلمونه ښودلی اود بیلو بیلو ځایو دوولکو ځلوېښتو تنو کسانو د عرفانی ښود نو و ننداندا ر ته کړی او ورځنی مستفید شویدی .

## ب: دعکس اخیستلو مدیریت :

د عکاسی څانګی له تیر کال نه راپدی خوا نشراتی موسسو او بیلو بیلو مرجعو ته او ه زره ځلور سوه قطعی فوتوګان د خپرولو له امله استولی دی . سر بیره پر هغو د عکاسی څانګی دافغانستان آریانا دمجلی دمربوطو موضوعاتو عکسونه اخیستی او بشپړ کړی دی .

د عکاسی څانګی په روم ، بوداپست او قاهره کښې د افغا نستا ن د منظر و او پیشرفتو له اقتصادی ننداړتون سره یوه عکاسی ښودنه دائره کړی اود پیشر فتو منظرو او د خلکو د ژوندانه عکسونه ئی ښودلی دی .

سر بیره پر هغو د تیر کال په جشن کښې د افغانستا ن د خلکو د ژ و ند ا نه د آثارو او طبیعی منظرو د عکاسی یوه ستره رنګه ، تور او سپینه ښودنه شوی ده .

## د ثقافی روابطو دلوی مدیریت داجرا آتو رپوټ

د ثقافی روابطو لوی مدیریت له دی امله تشکیل شوی دی چه له دوستو دولتو سره د افغانستان کلتوری ، هنری او مطبوعاتی مناسبات ټینګ او پراخه کړ ی . د دغه لوی مدیریت وظیفی په کلی ډول دداسی پروګرا مو ترتیب ، تنظیم او تطبیقول دی چه د مطبوعاتو په وزارت پوری اړه ولری .

## د بین المللی ارتباط دمدیریت فعالیتو نه :

د ۱۳٤۱ ـ ۱۳٤۲ کال په نیمائی کښې د داسی وثیقو او سندو ساتلو د پاره چه له دوستو دولتو سره ئی د افغانستان د کلتوری ، فرهنګی او هنری ر و ا بطو نمایندګه ترتیب کړای شی دوسیی جوړی شوی دی چه د لزوم په وخت کښې دمطبوعاتو وزارت ته د افغانستان او د باندنیو دولتو د روابطو مطالعه کولو د پاره اجمالی معلومات موجود وی .

د ملګرو ملتو د موسسی او د هغی د اختصاصی موسسو اود ملګرو ملتو دموسسی د فعالیتو په تیره د هغو فعالیتو په باره کښې چه افغانستان برخه او ګډون پکښې لری عینی مواد او معلومات برابر او د نورو کلو په شان پخپلو خاصو دوسیو کښې اینبودل شوی دی . د ملګرو ملتو د تاسیس دورځی اودغه شان د نورو مهمو بین المللی

ورځو د تجلیل ریوټ د بین‌المللي ارتباط د مدیریت له خوا لیکل شوی او خپلو مراجعوته لیږل شویدی دغه راز د نړۍ د کلتوري رسمي هیأتو ، ممر و څو شخصیتو لیکوالو او سیاسي کسانو د مسافرتو په باره کښې اجمالي معلومات راغو نډ شوی له ویناؤ ، خبرواترو او ګډو ابلاغیو سره په مربوطو دوسیو کښې ساتل شوي‌دي.

په کابل کښې د عربي‌متحد جمهوریت د ثقافي مرکز د چارو اجراکول د همدغه مدیریت له خوا حل او فصل شوي‌دي :

د شوروي اشتراکیه جمهوریتو له اتحاد ، د المان له اتحادي جمهوریت د یوګوسلاوی له فدرالي جمهوریت ، د عربي‌له متحد جمهوریت او د چکوسلواکیې د خلکو له جمهوریت سره د افغانستان د کلتوري همکارۍ پروژې هم‌دغه مدیریت ترتیب او تنظیم کړې اد له دوستو دولتو سره د افغانستان د کلتوري همکارۍ د پروګرامو د تېرو نو تطبیقول او اجرا کول له داخلي او خارجي مربوطو مراجعو سره په هغو تېرو نو پورې مربوطې خبرې اترې او مکاتبې د دغه مدیریت له مهمو وظیفو څخه دي .

د بین‌المللي ارتباط مدیریت په دوستودولتو کښې دافغانستان او په افغانستان کښې د دوستو دولتو د ننداریو دپاره د کلتوري همکارۍ دپروګرامو پراساس ټول تسهیلات برابر کړي دي .

په افغانستان کښې د اطلاعاتو د وسایلو د انکشاف او ترقي د باره هم دوسیه تأکل شوی ده چه د مطبوعاتو عام له دې چه له مطابعو ، ورځپاڼو ، راډیو څخه وی او که له سینما ، تیاتر او آژانس څخه‌وی ټول فعالیتونه ، دوسایلو او ترقي‌او د نورو نشراتو او موقتو مجلو انکشاف پر له پسې پکښې وساتل شي. دغه راز دمطبوعاتو ټول فعالیتونه او د وسایلو یو کلنی انکشافات د بین‌المللي ارتباط د مدیریت د کارکوونکو په واسطه لیکل شوی او د خارجه‌وزارت له لیارې څخه دملګروملتو مقاماتو ته استول شوي دي .

یو شمیر مقالې او ډېر تازه نه‌چه‌خارجي لیکوا لو او نامه‌لیکوونکو په‌یوه کال کښې دافغانستان په‌باب لیکلې‌دی ترهغه ځایه‌چه‌دافغانستان اودوستودولتو له‌کلتوري روابطو سره سروکارلري راغو نډ شوی او یخپلو خاصو دوسیو کښې ساتل شوی او تنظیم شویدی .

دغه‌رنګه ددوستو دولتو دملي ، مذهبي‌ورځو ، دهغوی دجشنو نو او د مهمو بین‌المللي ورځو یوه دوسیه د خارجه چارو د وزارت دفرهنګي روابطو دمدیریت په مرسته ترتیب او دهغو مملکتو دجغرافیې‌او تاریخ په‌باب ځینې مطالب له‌ور ځیا نو څخه اخیستل شوی او په‌دغه دوسیه‌کښې وساتل شول .

سربیره پدغو د بین المللي‌ارتباط مدیریت د ۱۳۴۱_۱۳۴۲ کال په نیمائي کښې

(پاتې په ۴۹۴مخ کښې)

# دقبایلو مستقل رییس ښاغلی الفت

په ۱۲۸۸ هـ ش ۱۹۰۹ ع کښې دلغمان د عزیز خان په کلي کښې زېږېدلی دی. پلار ئې میر سید خان پاچا او نیکه ئې سید فقیر پاچا دی.

الفت په ولسي مدرسو کښې د ننګرهار او کابل له مشهورو استاذانو څخه د صرف و نحو منطق تفسیر ـ حدیث ـ معاني او بیان کتابونه لوستي دي.

په ۱۳۱۴ هـ ش کښې د انیس دورځپاڼې په اداره کښې د کاتب په حیث مقرر شو.

په ۱۳۱۵ کال کښې دانجمن ادبي د تالیف او ترجمې په څانګه کښې په عضویت ومنل شو.

په ۱۳۱٦ کال کښې د زیری د جریدې چلوونکی هم شو.

په ۱۳۱۸ کال کښې د پښتو ټولنې د صحافت د مدیر مرستیال و.

د قبایلو مستقل رئیس
ښاغلی ګل پاچا الفت

په ۱۳۱۹ کال کښې د پښتو ټولنې د لغاتو او قواعدو د څانګې مدیر شو.

په ۱۳۲۰ « کښې د اصلاح دورځپاڼې مشاور شو او بیا په همدغه کال یعنې ۱۳۲۰ کښې د پښتو ټولنې عمومي مبصر او د کابل مجلې چلوونکی شو.

په ۱۳۲۵ هـ ش کښې د اتحاد مشرقي (ننګرهار) د جریدې مدیر شو.

په ۱۳۲۷ « کښې د ننګرهار په ولایت کښې د قبایلو عمومي مدیر شو.

په ۱۳۲۸ کښې د جلال آباد د خلکو له خوا د ملي شورا په (۷) دوره کښې په وکالت انتخاب شو او په ملي شورا کښې دوهم معین وټاکل شو.

په ۱۳۳۱ کښې د لغمان د قرغیو خلقو د ملي شورا په (۸) دوره کښې خپل وکیل وټاکه.

په ۱۳۳۴ کښې د جلال آباد د خلکو له خوا د لویې جرګې وکیل انتخاب شو.

په ۱۳۳۵ هـ ش کښې په لومړۍ رتبه د پښتو ټولنې رئیس مقرر شو او د پوهنې د وزارت د عالي شورا په غړیتوب ومنل شو.

د ۱۳۴۲ د ثور په ٤ د ښاغلي دکتور محمد یوسف په کابینه کښې د قبایلو د مستقل رئیس په حیث مقرر شو.

همدا رنګه دحقوقو د پوهنځي اوداد بیاتو د پوهنځي استادي هم وریه غاړه شو.
په۱۳۳۸ کښې دافغان اوشوروي اتحاد ددوستۍ دټولنې رئیس وټاکل شو.
دجوزا له میاشتې څخه د ۱۳۳۲ د عقرب تر آخره د اولس دملي جریدې د امتیاز خاوند ؤ.
دده چاپ شوې لوی او واړه کتابونه دادي.
۱- دپسرلي بلبله دیوه.
لغوی څیړنه ، پښتو سندرې ، عالي افکار ، څه لیکل یا لیك پوهه ، ادبي بحثونه ، پښتو کلی پنځم جلد اول ټوك ، پښتو کلی پنځم جلد دوهم ټوك، دآزادۍ پیغام، غوره اشعار، اوړخیالونه او ژورفکرونه، منطق،غوره نثرونه، املاء اوانشاء.
لیکوالی ، املاء او انشاء دوهمه طبع چه له پخوانه ډیر زیاتوالي پکښې راغلی.
هغه کتابونه بې چه تر اوسه لا نه دي چاپ شوی :
نوی څرك ، ښه لمسون ، اجتماعی نظریات ، څه ګورم او څه اورم ، دټولنی علم ترجمه ، دمو فقیت لاس ترجمه .
سربیره په دې یې دکابل په کالنیو (سالنامو) کښې خورسا لې چاپ شوی او څو کالنۍ هم دده په اهتمام چاپ شوی دي.
مکافاتونه او نمانځنې :
۱- څو ځلی ئې دخوشحال خان ادبي جایزه اوداابن سیناعلمي جایزه اخیستې ده.
۲- یوځل ئې دصدارت عظمی له خوا دوهمه درجه تقدیر نامه اخیستې ده .
۳- دستوری دریمه درجه نښان ورکړ شوی دی .
دپوهنې دوهمه درجه نښان، دوکالت ددوه دورونښانونه،دلوئی جرګې دیادګار نښان.
سفرونه:
۱- پیښورته دیوادبي هیئت په مشرۍ.
۲-مسکوته دیوه کلتوری هیئت پهمشری دشوری اتحاد دکلتوری وزارت په بلنه.
۳-مونشن (میونیخ ته) دختیز پیژندونکو دپنځه ویشتم کانګرس دګډون دپاره چه هلته دوه کنفرانسونه یو دخوشحال خان خټك او بل دپښتو ټولنې د معرفی په باب وارول شو .
٤- تاشکندته دآسیائی او افریقایی لیکوالو په کنفرانس کښې دګډون دپاره.
٥ -مسکو ته دشوروی او افغان دوستۍ دټولنې په بلنه دیوه هیئت په مشرۍ.
٦-مسکوته دختیز پیژندونکو دشپږ ویشتم کانګرس دګډون پهغرض (دیوه هیئت په مشرۍ) چه‌درحمان بابا اوخوشحال‌خان‌ختك پهشعر اوشاعرۍ ئې دمقایسې په ډول کنفرانس ورکړ.
په دغو سفرونو کښې ئې داځایونه لیدلي دي.
مسکو- لیننګراد- سوچی- باکو، ستالین آباد- تاشکند- تهران- پیښور- مونشن.

# دتجارت دوزارت تشکیل

......

وزیر — ښاغلی محمد سرور عمر

معین — « دکتور نور علی

مشاور

دمخصوص قلم مدیر — ښاغلی محمد عزیز پرتو

داحصاییې، کتنې مطالعاتو

او مارکتینګ رئیس — « عبدالغفور سراج

دمارکتینګ لوی مدیر — « محمد عیسی صباحی

دنندارتون مدیر — « عبدالهادی

داحصاییې، کتنې او

مطالعاتو لوی مدیر — « دکتور امان الله رسول

دکتنې او مطالعاتو مدیر — « عبدالرحیم غفوری

داحصاییې مدیر — ......

**دتجارت دوزارت معین**
**ښاغلی محمد سرور عمر**

تجارتي رئیس — « دکتور محمد اکبر عمر

دداخلي تجارت لوی مدیر — « دکتور علی نواز

دواردا تو او صادراتو مدیر — ښاغلی فتح محمد نیاز

د ترانسپورتو مدیر — « غلام صادق

دخارجي جواز نامو مدیر — « غلام حسین بیات

دنمایندګیو او تړونو مدیر — « غلام فاروق غلمزی

دداخلي تجارت لوی مدیر — « حمید الله طرزی

دموسساتو مدیر — « محمد فرید رفیق

دبلیټنی رئیس — « عبدالکریم

اداری لوی مدیر — « عبدالحفیظ کاکړ

دمحاسبې مدیر — « عبدالستار

دآرشیف — « علی احمد ضیایی

په اروپا کښې اقتصادی آتشې — « ......

په ډیلی کښې « — « محمد صدیق

په مشهد او خرمشهر کښې افغانی وکیل التجار — « سد واصیل

په امرتسر کښې افغانی وکیل التجار — « محمد آصف عباسی

# د تجارت د وزارت فعالیتونه

الف صادرات: باندنیو هیوادونه ده هیواد د صادراتو دارزښت مجموعی اندازه په دی وروستیو کلونو کښی په تیره بیا د قوی اسعارو هیوادونه لکه امریکه، انګلستان او المان د نورو تیرو کلونو په نسبت لوړه تللی او همدغه راز نورو هیوادونه ده هیواد د صادراتو مجموع احصائیه وی ارقام د زیاتوالی په حال کښی دی او د افغانستان صادراتی تجارت په څو هیوادو پوری محدود او منحصر نه دی بلکه زیار ایستل شوی دی د معقول او د تجارتی توسعه جو یانه سیاست په تعقیب له نورو هیوادو سره د افغانستان تجارتی روابط ټینګ شی.

د صادراتو د زیاتوالی عامل تل ده هیواد د صادراتی عمده اقلامو د صد ور د مقدار زیاتوالی لکه پنبه، وړی، قره قل، غالی، حبوبات، غوزی او داسی نور دی او س د دی د پاره که دغه زیاتوالی د هر کال په نسبت مقایسه کړو په لاندی ډول په یی احصائیه وښیو:

په ۱۳۳۹ کال کښی د صادراتو د ارقام مجموع ۴۹۸۸۵۳۰۰ ډالره.
په ۱۳۴۰ کال کښی « » » ۵۳۳۸۹۷۰۰ ډالره
په ۱۳۴۱ کال کښی « » » ۵۸۸۹۱۷۰۰ ډالره
په ۱۳۴۲ کال کښی « » پیش بینی کیږی ۶۶۰۰۰۰۰۰ ډالره

**ب واردات:**

ده هیواد د صادراتی تجارت د سیرد تحلیل له مخې ده هیواد د کالنیو صادراتو رقم په وروستیو کلو کښې په سلو کښې له اتو څخه تر نهو پورې زیات شوی دی په همدغه صورت د وارداتو د حجم مجموع هم په دې وروستیو کلو نو کښې نو دې په سلو کښې څوارلس لوړه تللی او ده هیواد د وارداتو میزان په وروستیو کلو کښې د افغانستان د سی، ای، اف په اساس تقریباً ۹۹۰۰۰۰۰۰ ډالره اټکل کیږی چه دغه تزیید اساس د پورونو او مرستیو د سامانو او ما لو نو په واردولو پوری معلو ل دی چه دغه مرستې هم په وروستیو کلو کښې دوه چنده شوې دي.

تر کومه ځایه چه احصائیې ښیې د ۱۳۴۰ او ۱۳۴۱ کـلو او د ۱۳۴۲ کال د دریو لومړیو میاشتو ترمنځ ده هیواد دا ډتیا له مخې د پټرولو، شکرې، ماشینو او استهلاکی شیانو د تورید په مقدار کښې د ملاحظې وړ زیاتوالی راغلی دی.

باید وویل شی چه د تعمیراتی موادو په وارداتو کښې چه په تجارتی توګه وارد یږی

کسر پیداشوی خو په مقابل کښې یې له دغو سامانو زیات مقدار د تخنیکی مرستو او پور ونو له لارې راوارد شوی چه گوا کې دغه تو ریدونه هیواد ته دوار داتو دحجم په مجموع کښې زیاتوالی راغلی او د توریدونو گراف لوړ تللی دی .

**تجارتی فعالیتونه :**

الف د بار تری له هیوادو سره تجارت :

لومړی د ۱۹۶۳ کال دفروری په ۲۵ نیټه چه د ۱۳٤۱ کال د حوت د ٦ نیټی سره سمه ده دشوروی اتحاد له سوسیالیستی هیواد سره د ۱۹٦۳ کال له پاره لاسلیك شوی دی .

۱: دوار داتو حجم په نو موړی موافقه لیك کښې دوارداتو حجم چه د ( ۲۸٦۰۲۵۰۰ ) ډالره پور هم په کښې شامل دی ټاکل شوی دی .

۲: دصادراتو حجم : همدغه راز په دغې موافقه نامه کښې ټول صادرات ۲٦۳۰۲۵۰۰ ډالره دی او دافغانی پیسو تادیات د متخصصینو په وجه کښې له ۲۳۰۰۰۰۰ ډالرو سره مساوی دی چه ټولې پیسې ۲۸٦۰۲۵۰۰ ډالره کیږی .

په نوی پروتوکول کښې د تادیاتو ټکې پولی چه پخوا له سو زرو ډالر وڅخه پورته اخیستل کیدې اوس د دوالدو خواو په موافقه دغه کریدیت پرته له ټکې پولی تر یو ملیون پورې دی .

**دوهم دچکو سلوا کیی له دولت سره تجارتی موا فقت لیك :**

دغه موا فقت لیك چه د ۱۹٦۲ کال داکتوبر په ۱۳ نیټه چه د ۱۳٤۱ کال دعقرب له ۲۲ سره مطابق دی لاسلیك شوی دی چه دیوه کال له پاره اعتبار لری او د نو موړی موا فقت لیك له مخې دیو ر نو ټول وار دات او تادیات ۳۱۲۰۰۰۰ پونډه او دصا دراتو حجم د همدغو پیسو معادل دی .

**دریم: دپولند له جمهوری دولت سره تجارتی موافقت لیك :**

همدغه راز د۱۹٦۲ ددسمبر په ۱٦ نیټه چه د ۱۳٤۱ د جدی ۲٦ نیټه کیږی د پولند له جمهوری دولت سره یو تجارتی موافقت لیك لاسلیك شو چه د دغه تړون داعتبار موده د ۱۹٦۳ کال تر پای پوری ده ، په دغه موافقت لیك کښې د ټو او صادراتو حجم د ۲۲٥۰۰۰۰ ډالرو معادل دی او په مقابل کښې یی له نو موړی هیواد څخه دوارداتی مالو نو حجم هم همدغه پورته رقم ټاکل شوی دی .

**څلورم: همدغه راز په هغه موافقت لیك کښې چه دولسی چین له هیواد سره د ۱۹٦۲ کال** دجولایی په میاشت کښې چه د ٤۱ کال د ز مری له میاشتی سره سم نوې شو او دیوه کال له پاره اعتبار لری دصادراتو حجم یی ٥۸۳۰۰۰ ډالره کیږی او دواردا تو حجم یې هم په همدغه پیمانه سره ټاکل شو یدی .

**پنځم:** په هغی تجارتی موافقت نامه کښې چه د هند له هیواد سره لاسلیك شوی ټول صادرات د ٤۹٦۰۰۰۰۰ هندی کلدارو معادل او دمصارفو دیوی برخې له وضع کو لو څخه

وروسته له هغه څخه دوارداتي مالونو اندازه چه په سلو کښې پنځلس مصرف تري وضع کېږي د پورته رقم معادل دی .

**شپږم:** همدغه راز په ۱۳٤۱ کال کښې چه د ۱۹٦۲ د جولايي ۱۸ نېټه وه د افغانستان د شاهي حکومت او د ولسي چین د جمهوري حکومت تر منځ د تبادلې او تادیاتو د موافقت لیك یو پروتوکول د یو کلنې دورې له پاره نوی شو چه د هغه په اساس له افغانستان څخه ممیز، انجه، لاجورد او نور چین ته صادرېږي او په مقابل کښې یې د ولسي چین جمهوري دولت د افغانستان د ضرورت وړ خپل منسوجات او نور تولیدي شیان دغه هیواد ته راصادروي .

## د ترانسپورت او ترانزیت چارې او د الوتکې په دریعه د تازه میوې د انتقال موضوع :

### الف، عمومي مسایل :

یوه بله موضوع چه اساسأ ډیر اهمیت لري او د تجارت وزارت په ۱۲٤۱ کال کښې هغې ته تشبث کړی ی له ایران سره د ترانزیتي تړون لاسلیك کول دی، وروسته له هغه چه د لرغوني هیواد ترانزیتي یوازنۍ لار د پاکستان سره وتړل شوه او له دغې ناحیې څخه زیات مشکلات او معضلات ده هیواد په تجارتي او ترانزیتي چارو کښې پیدا شول او د تجارو او موسسو مالونه په پاکستان کښې پاتې شول او په هیواد کښې د مالو دفقدان له امله نرخونه لوړ شول او له بلې خوا اروپا یې او امریکا یې هیوادو ته د افغاني امتعې صدور له مشکلاتو سره مخامخ شو او په نتیجه کښې په آزاد بازار کښې د اسعارو بیه پورته شوه او د هیواد دانکشافي پلانو د پروژو یوه برخه وځنډېدې، د تجارت وزارت پدې هڅه کښې شو چه د دغو موانعو او مشکلاتو د لرې کولو له امله د هیواد له پاره نوې ترانزیتي لاره پرانیزي، د دغې مفکورې په پیدا کولو سره یې له شوروي اتحاد سره ترانزیتي تړون نوی او له ایران سره یې د افغاني هیأت په واسطه تړون وشو چه له ایران سره د تړون په لاسلیك کولو سره زیات افغاني مال التجاره چه د کراچۍ، پېښور او چمن په بندرونو کښې پاتې وه د خرمشهر او زاهدان له لارې هیواد ته وارد شول او هم ددې له پاره چه له دغې طریقې څخه زیاته استفاده وشي داسې ترتیب ونیول شو چه په آینده کښې د هیواد یوه برخه صادراتي مال التجاره د ایران له ترانزیتي لارې څخه له هغه څخه ماورا هیوادو ته صادر او هم له دغو هیوادو څخه وارداتي مالونه واردشي د ایران له لارې څخه د صادراتو او وارداتو حجم ۱۰۰۰۰۰ ټنه دی خو کرایه یې د شوروي او پاکستان د لارو په نسبت تر یوې اندازې پورې ګرانه تمامېږي .

د ایران او افغانستان د ترانزیتي موافقت لیك په برخه کښې دغه ټکی د ګرانو لوستونکو د خبرتیا له پاره د لیکو وړ ګڼو چه د اورګاډي د ترخونو د پرېوتو کولو موده او د دغې موافقت نامې د ضمیمې تادیات د ۱۳٤۱ کال په پای کښې سرته ورسېدل نو .

وروسته له هغه موافقت لیك څخه د تجارت دوزارت له خوا یو هیئت ایران ته واستول شو چه نوموړی هیأت په دی بریالی شو چه د عمده مالونو د کرایی د نرخونو د ټیټ کېدو په باره کښی او په تیره بیا د هیواد د انکشافی پروژو د ضروری وړ شیانو چه په هغو کښی زمونږ د دوست او ګاونډی دولت ایران له مسئولو مقاماتو سره مطلوبه او د ښه د منې وړ موافقه وکړی او بیرته هیواد ته راستون شی .

د و همه مسئله چه زیات اهمیت او ارزښت لری د وچې میوی د صدور او په تیره بیا د لندې میوې لکه د انګورو او انار و د صادرولو د موضوع مشکلات دی چه د تجارت وزارت د دغه مشکل د لری کولو په غرض کلك اقدامات وکړی چه تازه میوه چه صادرول یی د وچې له لاری نا ممکن ؤ او په لاره کښی میوه ورانیده او فاسده کیده له د آریانا د الوتکو او د امریکایی چارتر الوتکو د روسی الوتکو د په کار اچولو په وسیله یی د هند او شوروی اتحاد هیوادو ته صادره کړی .

لکه څنګه چه په ۱۳٤۱ کال کښی یوازې له کابل څخه ۱۶۹۰ ټنه انګور چه د یوه ټن بیه یی ۱۳۵ ډالره کیده له د ۹۳۱۶۳۵ ډالرو معادل او ۶۰۰ ټنه انار یو ټن په ۱۲۰ ډالره د ۷۲۰۰۰ ډالرو معادل له کندهار او ۱۲۰۰ ټنه انار یو ټن په ۱۲۵ ډالره د ۱۵۰۰۰۰ ډالرو معادل او له خلم یا تاشقرغان څخه تخمین ۴۰۰ ټنه انار یو ټن په ۱۲۵ ډالره د ۵۰۰۰۰ ډالرو معادل د الوتکی په ذریعه شوروی روسیی ته صادر شوی ، د وچې میوی په برخه کښی باید وویل شی چه د ۱۰۰۰۰ ټنو په شاوخوا کښی په الوتکه او د موټر له لاری څخه د خرمشهر په لار هند ته صادره شوی او د افغانی وچې میوی نور پیداوار د منځنی ختیز ، اروپا او امریکی بازاری هیوادو ته نژدی د ۲۵۰۰۰ ټنو په شاوخوا کښی صادر شوی دی .

ب- په مشهد او خرمشهر کښی د وکالت التجاریو تأسیس :

یو بل سودمن او موثر اقدام چه د تجارت وزارت په ۱۳٤ کال کښي د هیواد د ترانزیټی مربوط چار و په باب ترلاس لاندی نیولی دی او هغه یې د هیواد د ترانزیتی او تجارتی اسانتیاؤ د برابرولو په منظور عملی کړ زمونږ په ګاونډی او دوست هیواد ایران کښې د افغانی نویو وکالت التجاریو تاسیس او پرانستل ؤ لکه چه د افغانستان او ایران ترمنځ د ترانزیتی تړون له کیدو څخه وروسته د تجارتی بندرونو د تأسیس موضوع او په مشهد او خرمشهر کښې د افغانی وکالت التجاریو پرانیستل عملي شول چه دغه وکالت التجاری تأسیس او پرانستل شوی او په لنډه موده کښې په دی بریالی شول چه زیات افغانی مال التجاره چه د کراچی پیښور په بندرونو او نورو بندرونو کښې په پاکستان کښې د افغانی ترانزیت د لاری د بندولو په نسبت ځنډیدلی ؤ افغانستان ته را ولیږدوی او همدغه راز د هیواد د ترانزیتی صادراتی مال التجاره پاتنیو ملکونو ته د ایران له لاری یوسی او وارداتی مالونه هیواد ته وارد کاندی .

## دهیوادد صادراتی مالونو دمارکټینګ په مسئلو کښې فعالیتونه :

دتجارت وزارت په‌دی وروستیو وختو کښې په‌تیره بیا په ۱۳٤۱ کال کښې ددی له‌پاره‌چه‌د هیوادصادراتی امتعی‌دنړۍ د تجارتی مارکیټونو دقبول وړو ګرځول شی په‌دغه باب دملګرو ملتو دله‌لاری اودایشا فوندیشن په‌مرسته اونورو د متخصصینو په ذریعه‌مطالعی او اقدامات شوی اوددغو مقدماتی موادو سروی وشوه چه او س دربوټونو داجرا ترتیت اوترکومه‌ځایه‌پوری چه‌دمتخصصینو سروی ګانې بشپړی‌شوی ترمطالعه اوغور لاندی‌دی اودهیواد دځینو صادراتی موادو د سروی له پاره چه په ځای یې لیکل کیږی له دوستو هیوادو سره نوی موافقت لیکونه لاسلیک شول .

لنډه یې داچه د تجارت‌وزارت په۱۳٤۱ کال کښې زیارایستلی‌دی دمارکټینګ دمسئلو په لړ کښې دصادراتو داصلاح د پروژی دعملی کیدو امکانات دتولیداتو داستحصال زیاتوالی ، دنوو مارکیټونو برابرول ددغو موادو عرضه اونور ترتوجه اوعمل لاندی ونیول شی اودانجنیری سروی ګانی سرته ورسیږی چه ددغه عمل داقداماتو په اثر په‌نږدی راتلونکی وخت کښې دهیواد صادراتی‌عمده امتعه په مساعدو شرطونو سره او دافغانستان داقتصادی ګټو د په نظر کښې نیولو سره دنړۍ د باندنیو هیوادو د مارکیټو بازارونو ته وړاندی شی .

## د میوې دصادراتو د تنظیم سمون او د توسعی له پاره تشبثونه او اقدامونه :

ددی له‌پاره‌چه‌د افغانستان دمیوی په‌صادراتی وضع اود استهلاک په‌بازارو کښې چه‌د هیواد صادراتی بالار زښته اوعمده موادو یادیږی سمون او ښه والی پیداشی دتجارت دوزارت دتدقیق اومطالعاتو اوداحصائیی دمارکټینګ د ریاست په‌اداری تشکیلاتو کښې دمیوی دمدیریت په‌نوم یوه‌نوی څانګه‌دایره‌شوی‌ده چه‌دغی څانګې په۱٤۱او٤۲ کال کښې دمیوی‌دسورت، سټندرد ، سپیسکنګ‌او جنسیت په‌برخه کښې دافغانستان دمیوی صادرولو له‌پاره دخارجی نوو بازارونو پیداکولو او په باندنیو بازارو او په‌داخل کښې دمیوی دبیې او تنظیف په‌باره کښې دفنی معلوماتوراټولولو له‌پاره اوهمداشان نور اقدامات او تشبثونه کړی اودخارجی مارکیټو دپیدا کو او اوپه هغو مارکیټو کښې دافغانستان دمیوی دمعرفی کولو په‌غرض‌څوځو هیأتونه‌آسیا دجنوب ختیز هیوادوجاپان اوځینی‌افریقای‌هیوادو اوهم‌ځینی اروپایی‌هیوادو ته‌لیږل شوی چه‌نوموړی هیأت دهغو هیوادو په‌بازارونو کښې دمیوی دخرڅلاو اوپلورلولازمې کتنې وکړی‌او په‌نوموړو بازارونو کښې یې دافغانستان‌میوه معرفی کړیده او په‌دغه‌باب

منظم ر پوټ ترتیب شوی چه د دغه منظور د عملی کولو له پاره یعنی په خارجی مارکیټو نو کښی د افغانستان د میوی د توسعی ، تنظیم او سمون له امله ورڅخه استفاده کیږی .

همدغه راز د باغدارو او د میوی د مستحصلینو د لارښودنی له پاره د تجارت د وزارت د مارکټینګ در یاست له خوا فنی هیئتو نه د میوی د استحصال عمده سیمو ته لکه کندهار د شمالی بیلو بیلو سیمو ته لکه کوهدامن ، تګاو ، خلم ، تاشقرغان او نورو ځایو ته چه د میوی د استحصالا تو او صادر ولو له نظره د هیواد د میوی د پید اوارو عمده سیمی ګڼل شوی دی لیږل شوی چه لازم تبلیغات وکاندی ، د دغو هیئتو نو په ذریعه باغدارا نو او د میوی مستحصلینو ته د میوی د ترتیب او تنظیم ، په بار جامو کښی د میوی د اینبودلو د اصولو د سم وزن ، د میوی د انتقال له پاره د ښکلو صندوقو نو د انتخاب ، د میوی مطلوب پیکنګ د طرز او د هغو په شان نورو په باب د توجه وړ سودمنی لارښودنی او تبلیغات شوی دی .

همدا شان د تجارت وزارت د ځینو مربوطو څانګو په واسطه زیار ویوست چه ځینی وړی او لویی دستګاوی منځ ته راشی لکه څنګه چه اوس سمد ستی د میوی پاک کولو دوی دستګاوی یوه په کابل کښی چه په یوه کال کښی له ۶۰۰۰ څخه تر ۸۰۰۰ ټنو میزو او نورو ظرفیت لری او بله په کندهار کښی چه په یوه کال کښی د ۳۲۰۰۰ ټنو وچی او تازه میوی ظرفیت لری تأسیس شوی او هم د سړوخونو ، یخچال لرونکو ګدا مو نو د جوړونی له پاره چه په داخل کښی میوی وساتل شی او د یخچال لرونکو نقلیه وسایطو برابرول چه خارج ته د افغانستا ن د تازه میوی د صادرولو له پاره اقدامات جاری دی لکه چه د دغو پروژو د سروی کولو موافقت لیکو نه هم لا سلیک شوی دی چه د هغو په اساس به امریکایی متخصصان او نور د غه موضوع ګانې سروی کړی او وروسته له هغه به د ګدامونو او فنی ذخیرو د جوړولو ، تهیې او پیدا کولو له پاره عملی اقدامات وشی .

همدا شان د هغو سروی ګانو له مخې چه په د غو کلونو کښی د متخصصانو په واسطه انجام شوی د افغانی صادراتی ټولو عمده متاع ګانو د سمون له پاره لکه وړ یو ، پنبې قره قل ، کو لمو ، غالیو ، دوزو او پسو نو د پوستکو ، حبوباتو : غوړ یو او نورو له پاره مفصل پروګرام تر لاس لاندې دی چه دغه پروګرام د هیواد په دوهم اقتصادی پلان کښې د تجارت د وزارت له خوا تـکمیل کیږی او په دریم ، څلورم او پنځم ، کال کښی دغه پروګرام په پراخ او بشپړ صورت سره عملی کیږی د تجارت وزارت په ۱۳٤۱ کال کښی د۱۳٤۲ کال تر نیمائی پوری په د غو ساحو کښی سودمن اقدامونه او فعا لیتو نه کړی چه په تجارتی ښه وضع سره د هیواد د صادراتی شیانو د تجارت انـکشاف دی .

د اصلاحی ترلاس لاندی پروګرامو په برخه کښی باید وویل شی چه د شمالی ولایاتو د پنبې د حلاجی د ماشینو د نوی کولو او انـکشاف په برخه کښی مهم پروګرامونه ترلاس لاندی دی ، په د غه صورت کښی ؛ د حلا جی ما شینونه د برښنا په پوره قوه سره په بغلان ، کلای زال ، دارچی په دښته ، امام صاحب ، خواجه غار او مزارشریف

کښې نصب او په کار واچول شي چه دغه ماشینونه وکولی شي په پوره اوصحیح ډول د پنبې دحاصلاتو زیات مقدار چه دزراعتي پلانو له مخې مـخ په ز یاتیدو دی جین او پرس کړی او همدغه شان په نظر کښې دی‌چه د تیلو ایستلو، دجامدو غوړیو جوړول صابون جوړول دشمالي و لایاتو په سیمو کښې پراختیا ورومی .

ددغو اصلاحی او انـکشافی پروگرامو د په نظر کښې نیو لو سره به له یوی خوا د هیواد په تیره بیا د شمالي و لایاتو د پنبې و ر ځ په ور ځ ز یاتیدونـکی تولیدات په صحیـح او عـصری‌ډول سره حلاجی شي او په سم سورت او ستندرد په دجهانی‌مارکیټونو دغوښتنو مطابق‌صادر شي او لـه بلې خوا به‌د پنبه دانی له حاصلاتو څخه په‌ز یاته اندازه اومقدار تیل اونور حاصله مواد به‌یې دجامدو غوړیواودهیواد دداخلي ضرورتونو له پاره تهیه او مصرف شي .

## ج : دوړیو دمینځلو له پاره‌فابریکه:

دوه فابریکې دوړیو د مینځلو له پاره چه هره یوه یې د ٤٨٠٠ ټنه تا مینـځلو وړیو ظرفیت لری تأسیس کیږی اوطبیعی‌د ه چه مینځلی وړی‌ د نامینځلو وړیو په‌نسبت په ښه بیه دخر څلاو په بازارو کښې پلو رل کیږ ی او هم د اقتصـادی ترانسپورت له امله یې مصرف کم کیږی .

هـ: داوزانو اومقیاسونو دمتر یك دسیستم د تر ویـج له پاره هڅه یو بل اقدام چه سږ کال د تجارت وزارت وکړ دمتریك دسیستم د ترویـج موضوع ده چه‌په تللو وزن کولو اومقیاسونو کښې په‌کار کیږی‌څـر نـگه چه زمونږ د مروجې وزنونو له‌سیستم په هیڅ وجه پرسم اوصحیح سیستم نه دی اودنړی‌د بازارونو له مقتضیاتو سره مطابقت نه لری له دې کبله داسې ایجاب کیده چه د هیواد دداخلي مارکیټو دتنظیم اودمتریك د بین‌المللی مروجې سیستم‌درواج موندلو له پاره دهیوادوزنونه تعدیل شي اوځای یې د متر یك نوی سیستم ونیسی .

ددغه منظور دعملي کیدو له پاره لومړی دکانو او صنایعو اومالیې دوزارتو کابل ښاروالی د نما یندګانو او دتجارت دوزارت د ما کیټنـګ له متخصصانو څخه یوګډ کمیسیون تشکیل شو او هغه کمیسیون په‌خپلو بیلو بیلو اواوږدوغونډو کښې د پوهنې‌دوزارت اودعلومو د پوهنځی په مرسته دافغانستان داوزانو دتعدیل موضوع دمتریك د سیستم په اړه‌لو تر بحث اوغور لاندی ونیوله اوهغه وزنونه چه دتجارت دوزارت او کابل‌ښاروالی له‌خوا جوړ‌شوی‌او نښانی شوی‌ؤ د پوهنې دوزارت اودعلومو د پوهنځی په مرسته په د قیق صورت سره چك کړی شول اودهغه تفاوت له مخې چه دمتریك دسیستم له اوزانو سره ددغو اوزانو په مقایسه کښې ولیدل شو د تجارت وزارت دموظف کمیسیون دهیأت په واسطه د متر یك له سیستم‌سره د کابل دیو حقیقی‌منه دمعلومولو له پاره یې اقدام وکړ او په نتیجه‌کښې د کابل یومن د ٦٦ر٧

کیلو گرامو معادل تثبیت شو او بالاخره د دې له پاره چه متریك په سیستم سره دهیواد مروجې وزنونو د تعدیل داصولو نظریه عملي شي داسي فیصله وشوه چه اوس سمدستي دسیټ له نوع څخه تشبث شوی ، دمتریك سیستم دولایاتو اواعلی حکومتو له پاره چه قولی ۱۸ سیټ دی د متریك دسیستم داوزانو د ۴۳۰۰۰ سیټو فرمایش دې ورکړ شي او همدغه واز ۲۰۰۰ سیټه نور فالتو او د احتیاط په ډول تهیه شي چه دلزوم په صورت کښې هغو سیټو ته ولیږل شي چه ضرورت او اړ تیا ورته لري چه په دغه ډول سره ګواکي دجنګلك دفابریکې په ذریعه اوس ۴۵۰۰۰ دمتریك د سیستم د اوزانو سیټونه د ۱۴۸۵۰۰۰ ـ افغانیو په لګښت جوړ شوی اودغه سیټو نه په لاندی ډول دی .

۱ـ ۲۰ کیلوګرامه ، ۲ـ ۵ ګرامه ، ۳ـ ۲ ګرامه ، ۴ یوګرام
۵ ـ ۵۰۰۰ ګرامه ، ۶ـ ۲۰۰ ګرامه ۷ـ ۱۰۰ ګرامه ۸ـ ۵۰ ګرامه
۹ـ ۲۰ ګرامه ،

البته ددغه سیستم د تطبیق او د په کار اچولو طریقه به داسي وی چه دغه نظر په د ۱۳۴۲ کال څخه په ولایتو کښې شروع شي او خلکو ته به موقع ورکړ شي چه په دغه سیستم کښې معلومات او تجربه حاصل کړی اوورو سته له هغه په ورو ، ورو سره دافغانستان په ټولو ولایاتو کښې دمتریك سیستم رواج ومومي .

همدغه راز د تجارت وزارت په نظر کښې لری د متریك د سیستم د متخصصانو درار سیدلو په وخت کښې چه دملګرو ملتو دمکاریو په لړ کښې کابل ته راځی دمایعو اوجامدو دوزن اودحجم اوطول اود متریك دسیستم دټولوچارو په باب به په عصری ډول زیات اقدامات ترلاس لاندې ونیسي .

## د وار دا تو په برخه کښې صرفه وی پروګرامونه:

دافغانستان د تجارتی موازنې دټینګولو په منظور د تجارت وزارت په د ې وروستیو کلو نو کښې یوه اندازه ابتدایی مطالعې کړی او پیشنهاد یې کړی دی چه د پروژو دعملی کولو دامکاناتو اودمقواء ، قطیو او د قطعه ای بار جامو دجوړ ونې له پاره موسسې تاسیس شي او هم د سګرټ جوړ ولو فابریکه تاسیس شي چه دد نه به هیواد کښې د تنباکو د انکشاف او مخصوصو سګرټو په باب زیاتې مطالعې وشي لکه څنګه چه په لا ندی ډول لازم بریښونه لاسلیك شوی او انتظار کیږی چه دامریکې دمرستو د اداری په مرسته او معاونت په نږدی وخت کښې مر بوط متخصصان افغانستان ته راشي او ددغو پروژو په باره کښې نهایی اوانجنیری مطالعات وشي .

## احصاییوی چاری :

نوری مسئلې چه په ۱۳۴۱ او ۱۳۴۲ کال کښې یې د تجارت د وزارت پاملرنه و ر اړولې ده داحصاییوی معلوماتو د تهیه کولو او راټولو د احصاییې په طریقو او اشکالو سره داحصاییو د اعدادو دارقام خپرولو اوتدوین موضوع ده څنګه ترکومه ځایه پورې چه څرګند ه ده په تیره کلو کښې په هیواد کښې یا تجارتی احصاییې

اصلا موجودی نه وی او یا په ډیر نامطلوب او ناقص ډول سره دعلاقه لوو نکو او لوستونکو له پاره وړاندی کیدی چه په هیڅ صورت سره داستفادې وړنه وی خو په دی وختو کښی دتجارت وزارت د احصاییوی عللو دفعالو ځا نګو په رو یکار کولو او دخارجی ماهرانو او د پلان اومالیی د وزارتو د افغانستان بانك اونورو په همکاری په دی بریالی شوی چه صادراتی احصا یی دکوداو اف ـ او ـ بی په ډول او وار داتی احصا یی دسی ـ ای ـ اف په ډول وسنجوی او ترتیب یی کړی میاشتنی او کالنی یی براېرې او تنظیم کاندی او هغه داشاعی او استفادې په معرض کښې کیږدی چه د هیواد دتجارت تکاملی او توسعوی سیر دهغو په مطالعه سره په مستند اومدلل ډول څرګند شی البته په دغه کار کښی داشیا فوتدیشن دموسسی دمتخصصانو همکاری هم مو ثرې دی لکه څرنګه چه د ٥ ۱۳۳ کال څخه تر ۱۳٤۰ کال پوری د هیو اد دوار داتو او صادراتو شپږ کلنه احصا یيهاو دموظفو مامور ینو او ددغو متخصصانو همکاری په مقایسوی توګه نشراو توزیع شوې دی . لنډه داچه دهغه ترتیب لهمخې چه داحصاییی په شق کښی نیول شوی دی نن دتجارت دوزارت لهجوړو شوو احصاییو څخه مطلو به او زیاته استفاده کیدی شی

## نند ارتو نونه:

دتجارت وزارت په ۱۳٤۱ کال کښې هم د نورو تیرو کلونو په شیان دهیو اد دصادراتی مال التجاره دمعرفی کولو او د نړیه پر مخ تللو هیوا دو دتجارت او صنعت په نوی سیستم او طرز سره دهیواد دتجارتی او صناعتی موسسو اوتجارو دطبقی داشنا کولو په باب دننه په هیواد کښې داخلی نند ار تون دایر کړاو وخت پهوخت په خارجی بین المللی نندار تونو او دګاونډیو هیوا دو او نور هیواد پهعا دی نندار تونو کښې لکه دپولیند ، مصر ، چکو سلوا کیی او هند په نندار تونو کښې دافغا نستان پیدا وار او متا عګانې لکه اومه مواد چه دصادر ولو وړ وی اوداسې نور دنمایش او نندارې له پاره ایښی دی .

## دپولی ریفورم موضوع

یوه بله باارزښته او مهمه مسئله چه د ۱۳٤۱ او ۱۳٤۲ کال په ترځ کښې هغه و رته و شو ه د پو لــی ر یفــا ر م د منځ تــه راو ډلو موضوع ده چه نتیجــه یې د هیــواد د صــا د را تو مسلمه پر اختیــا او د زیــاتو او پــوره خــا رجی اسعارو تهیه اودهیواد دانـکشافی پرو ژو او پلا نوعملی کول دی او همد غه ر از له دغه پولی ریفورم څخه مقصد دادیچه دمولد و او مستحصلو له طبقی څخه د جنس دپیرودلو اودلو اود بیې ورکړه لوړه، لاهه شی او اقتصادی لویې اغیزی پهځنګ کښې لری چه پههیواد کښې دننه دتو لیداتو دزیاتوالی او تکـثیر اسباب برابروی

لـکه څنګه چه په دغه لړکښی پهدی منظور تصمیم نیول شوی چهدهیواد د صادراتی عمده متاعګانو داسعارو په باب لاندې نرخونه وټاکـل شی.

دپښې له پاره پوډالر په٣١٫٧٠ـ افغانی، دوهیو له پاره یودالر په ٣٣٫٧٠ افغانی اودقره قل له پاره یوډالربه ٣٧٫٧٠ـ افغانی ټاکـل شوې اودحاصلهاسعارو دډول له زیاتوالي څخه دافغانی عوایدو دوپښلو په باب دغهټـکی د یادلو وړدی چه پخوا دوزیرانو عالی مجلس تصمیم نیولیو چه دیوه قره قلی پوستکی دپیرودلو له پاره وسطی بیه ١٧٠ـ افغانی تثبیت شی. دپښې پهبرچه فیصله شوېده چه ددانې لرونـکې پښې دبیې زیا توالی په یوه من کښې له پنځو افغا نیو څخه کمې نهوی (لـکه چه اوس ددانې لرونـکې پښې دپیرودلو قطعی بیه ترغوراوڅېړنه لاندېده چه رپوټ به یې وروسته دمربوطو و زارتو له خو ا د صدارت عظمی لوړ مقا م ته وړاندې شی.) همدغه راز هغهاغیزې چهلهدغې ناحیې څخه دپښې دحلاجی شرکتونو اودنساجی شرکت ته چه د پښې عمده پیرودونـکی دی واردیږی هم ترغور لاندی نیول شو ی او ددغو مطالعاتو له پاره دمتخصصانو او نورو څخه متشکه یوه فرعی جرګهګی ټاکـل شویده چه پهدغه باب به د توحید ا و انسجام جرګه ګی ته خپلی نظریې و ړاندې کړی چه ورو سته له هغه به یې نتیجه د و زیرانو عالی مجلس ته ا راٸه شی.

دادی پولی ریفورم بهپه لاندې ډول دهیواد دصادراتی عمده موادو څخه پهدوه قلمو کښې و لولی :

لومړی: په هیواد کښې دننه دقره قل په پیر و د لو او پلو لو کښې د لازمهو اسانتیاؤ دبرابرولو او دمالدارو دطبقی دحمایې په منظو ر د هیواد دپیدا وارو او دقره قل دپو ستـکو د ٨ سورتو په پیر و دلو کښی لاندې بیه ټاکـل شو ې او تثبیت شو یده .

| | پخوا نی بیه | او سنی بیه |
|---|---|---|
| ١ـ اسمانی شین پو ست | ١٦٠ـ افغانی | ١٩٥ـافغانی |
| ٢ـ شیرکبود پوست یودانه | به ١٥٠ـ » | به ١٨٠ـ » |
| ٣ـ تور کبود » » | » ١٤٠ـ » | » ٢٢٥ـ » |
| ٤ـ دوبرکبود » » | » ٨٠ـ » | » ١٠٠ـ » |
| ٥ـ لومړی درجه تور» » | » ١٢٠ـ » | » ١٩٠ـ » |
| ٦ـ دوهمه درجه » » | » ١٠٠ـ » | » ١٧٥ـ » |
| ٧ـ دریمه درجه » » | » ٨٠ـ » | » ١٣٠ـ » |
| ٨ـ دوبر تور » » | » ٥٢ـ » | » ٧٦ـ » |

دوهم همدارنـګه دمستحصلانو دحمایې او تقو یې او دوهیو د استحصا لا تو

زیاتوالی او دهیواد دصادرولو وړ،وړیو داقسامو او ډولونو دپیرودلو بیه په لاندې ډول تاکـل شوې او تثبیت شویده .

| دوړیو ډول | پخوانۍ بیه | او سنۍ بیه |
|---|---|---|
| ۱ـ دجلـګې سپینې وړۍ یومن | په ۸۸ر۲۱ ـ افغانۍ | په ۱۰۵ر۷۰ـ افغانۍ |
| ۲ـ دجلـګې وړۍ یومن | په ۶۲ر۵۸ » | » ۸۱ر۸٤ » |
| ۳ـ دګـلران سپینې وړۍ یومن | په۷۰ر٤۰ » | » ۹۷ر۸۹ » |
| ٤ـ باد غیسی سپینې وړۍ یومن | په۶۲ر۵۸ » | » ۹۰ر۰۷ » |
| ۵ـ دکشك رنـګه وړۍ یومن | په٤۶ر۹۳ » | » ۶٤ر۰۳ » |
| ۶ـ دکـلای نو رنـګه‌وړۍ یومن | په ٤۵ر۳۸ » | » ۶۲ر٤۸ » |
| ۷ـ دمرغاب رنـګه وړۍ یومن | په ٤۳ر۸۱ » | » ۶۱ر۹۱ » |
| ۸ـ دغور ماچ رنـګه‌وړۍ یومن | په ٤۲ر۲٤ » | ۵۹ر۳٤ » |
| ۹ـ دګـلران رنـګه وړۍ یومن | په ۵٤ر۷۵ » | » ۷۱ر۸۵ » |
| ۱۰ـ دغلجیو سپینې وړۍ یومن | په ۶۸ر۷۵ » | » ۸۹ر۲۱ » |
| ۱۱ـ دقره‌قل سپینې وړۍ یومن | په٤۵ر۰۰ » | » ۶۲ر۱۰ » |
| ۱۲ـ کندهاری سپینې وړۍ یومن | په ۸۸ر۰۰ » | » ۱۱۷ر۲۶ » |
| ۱۳ـ کندهاری رنـګه وړۍ یومن | په ۵۸ر۹۸ » | » ۷۹ر۱٤ » |

دغه نرخونه دپلان، مالیې او دکرهنې دوزارتو او دافغانستان بانك دنمایندګانو په ګډون او همکارۍ دهیواد دصادراتی پورته اقلامو دپلورلو او پیرودلو له پاره وټاکـل شول او دوزیرانو دعالی مجلس له منظورۍ نه وروسته دپیرودلو حد اقل نرخونه دټولو دخبر تیا له پاره دهیواد د مطبوعاتو او راډیو په وجه اعلان شول او همدغه راز د ولایاتو د تجارت اتاقو ته خبرور کړ شوی دی چه دغه نرخونه دپورنیو موادو دمستحصلانو او پیرودونـکو دخبر تیا او اطلاع له پاره ورسوی اوخبر یې کړی او هم ددې څارنه وکړی چه‌ددغو شیانو پیرودونکي له‌ټاکل شوو نرخونو څخه کم خریدونه‌کاندی‌چه‌دمستحصل اومولد دتاوان سبب نه شی .

## دداخلی تجارت په برخه کښی اقدامات :

الف : هغه اقدامات چه‌په ٤۱ کال کښې دداخلی تجارت دتنظیم، تنسیق او پراختیا په برخه کښې شوی‌دادی چه‌دتجارت وزارت دداخلی تیتو پرکو پنګکو دراغونډولو او دخارجی پنګکو دجلبولو له‌پاره یوشمیر نوی تجارتی، ترانسپورتی، صادراتی او نور شرکتونه تأسیس کړل او ځینې خارجی کمپنۍ یی دسرمایه‌ګذاری«پنګی اچولو» ته رابللی دی، دداخلی شرکتونو دتاسیس په برخه کښې نظر یه‌داده چه‌متمرکز شوی پنګی وکولی شی‌د پنګې په‌قوت سره له مولدینو او مستحصلینو څخه یوه زیاته برخه استحصالات او تولیدات خریداری او صادر کړی او له‌بلی‌خوا وړی پنګی چه‌دهیواد دصادراتی‌پوره متاعګانو دصادولو

# نوی مقرری

دکرهنی دوزارت د طبیعی منابعو رئیس ښاغلی عبدالاحد

دکرهنی دوزارت دښار یو دساتنی رئیس ښاغلی مسجدی

دکرهنی وزارت دتولید او تر ویجو رئیس ښاغلی دکتورمحمداحسان رفیق

دکرهنی دوزارت دبورداو پلان رئیس ښاغلی عبدالمجید

دکابل ښاروالی دتشکیلاتو رئیس او دتبلیغاتو آمر ښاغلی محمدیونس حیران

# نوی مقرری

د کندهار نایب الحکومه ښاغلی
محمد صدیق

د هرات نایب الحکومه ښاغلی
عبدالکریم حکیمی

د بامیانو اعلی حاکم ښاغلی
میر امین الدین انصاری

د فراه اعلی حاکم ښاغلی عبدالعزیز

قدرت نه لری زیاتی شی او په پوره قوت او زیات قدرت سره د هیواد په تجارتی ار
اقتصادی چارو کښی سودمنی ثابتی شی او خارجی مارکیټونه د داخلی پیداوار و او
موادو په صادرولو او همدغه راز د هیواد د وارداتی بازارونو په تنظیم کښی بارز
اواحساس سهم ولری لکه څنګه چه په ۱۳۴۱ او ۱۳۴۲ کال کښی د تجارت وزارت
په دی بریالی شو چه په هیواد کښی دمجموعی (۲۱۵۶۰۰۰۰) افغانیو په پنګه سره نه
شرکتونه تاسیس او په بیلو بیلو تجارتی ترانسپورتی او نورو ساحو کښی یی په کار
وګماری او یو شمیر تجارو او انفرادی موسسوته د تجارت نوی جوازونه و رکاندی
او همداشان په هیواد کښی دیوشمیر خارجی تبعه وُ جوازونه نوی کړی او یاد خارجی
کمپنیو ځینو نمایندګانو ته د تجارت او په افغانستان کښی داقامت جواز ورکړی .

## ب د خارجی پنګو راجلبول:

همدغه راز په ۱۳۴۱ کال او د ۱۳۴۲ کال په دریو میاشتو کښی د تجارت وزارت
د خارجی پنګو د جلبولو په منظور او په عام المنفعه چارو کښی یی په کار اچول چه په
هیواد کښی د ننه تجارت کښی هم موثری او سودمنی دی په اقدا ماتو او تشبثو نو
لاس پوری کړی او په نتیجه کښی دغه لاندی کمپنیو په افغانستان کښی د سرمایه ګذاری
له پاره خپلې پروژی او پیشنهادونه مربوطی څانګې ته سپا رلی دی چه ځینو یی
قانونی مراحل طی کړی او ځینی یې خپل قانونی مراحل تیروی.

۱ـ داند یمار د کمپنی د سرمایی اینبودلو پروژه دسمنتی موادو د دستګاه د تاسیس
له پاره د ۱۴۹۳۸۰ ډالراو ۳۰۰۰۰۰ افغانیو په پنګه د تجارت د وزارت له خوا منظور
شوی چه نوموړی شرکت په کار پیل کړی دی.

۲ـ همدغه شان داند یمار د صناعتی شرکت او د هیلمند د ناوی د ساختمانی د ستګاه
د پنګی اچولو پیشنهاد ۸۲۵۰۰ ډالرو او ۸۰۰۰۰۰ افغانیو ګډې پنګی چه په سلو
کښی شپیته د هیلمند د ناوی د ساختمانی دستګاه او په سلو کښی څلویښت داند یما ر
شرکت د فلزی موادو د تاسیس په باب لکه دوسپنې د دروازو او، دوسپنې د کړکیو
د جوړولو له امله په کاراچوی او سهم په کښی اخلی دغه پیشنهاد یې د تجارت وزارت ته
سپارلی چه ژر به نهایی نتیجی ته ورسیږی.

۳ـ همدارنګه د کابل د چرمګری او بوټ جوړولو په فابریکه کښی د سویس د سنت
ګلی ویدر پکانې موسسی د سرمایه ګذاری پیشنهاد کړی او د مختلفو څرمنو ار ډول
ډول بوټونو د جوړولو له پاره د تجارت وزارت ته وړاندی شو چه په نتیجه کښی پیشنهاد
د تجارت د وزارت له خوا ومنل شو او منظور یی کړ او نوموړې موسسی په کار پیل کړی
دی د فابریکې ۱۴۰۰۰۰۰۰ افغانی د، چه په سلو کښې ۲۵ یې د ویدو پکانی د موسسی
له خوا ورکړ شویده ،

۴ـ همداډول د وړین او بدلو او تار ریشی د یوی فابریکې د تاسیس په برخه کښی
د ملو یدیز المان او سیدو کې فورورک اوجان ولفمګ اوزامنو یې پیشنهاد د ۵۰۰۰۰۰

المانی مارکو په ډنګه چه ۶۲۵۰۰۰۰۰ـ افغانۍ کیږی منل شوی او انتظار کیږی چه دغه کمپنۍ په ډیر نژدی وخت کښې په کار او فعالیت پیل وکړی .

له یورتنیو کمپنیو څخه علاوه له څومودی را په دې پخوا په دې وه برخو کښې دهوختیف د کمپنۍ د ډنګی اچولو پیشنهاد نوموړی وزارت ته سپارلی شوی دی چه یو یې د پخو سمنټی خښتو دشیانو دجوړونی دفابریکی تأسیس دی او بل یې دحجاری او نجارۍ دفابریکی او دجنګلك دفابریکو اجاره کول دی او س سمدستی دنوموړی کمپنۍ پیشنهادونه په دغه وزارت کښې ترغور او مداقه لاندې دی چه انتظار کیږی دمنلو په صورت کښې په دغو شقوقو کښې دهغی کمپنۍ د ډنګې اچولو داجازی په باب هم لازم اقدامات وشی .

## دافغان بیمی دکمپنۍ تأسیس :

له هغه ځای څخه چه تراوسه پوری په تجارتې صناعتی، حیاتی او نورو چارو کښې دبیمې کمپنۍ گانې دهغو اهمیت او فوق العاده او عمده ارزښت سره سره په افغانستان کښې نه دی تاسیس شوی او دیومی اوورځ په ورځ زیاتیدونکو احتیاؤ د به نظر کښې نیولو سره له دغه امر څخه دافغانستان تجارت ته عمده اسعاری ضررونه متوجه دی نو دتجارت وزارت دافغان بیمې دیوه سهامی شرکت دتاسیس موضوع ترغور لاندې و نیوله په دی لحاظ چه دهغه شرکت دتأسیس مسئله یوه ډیره علمی او دتخنیك او فن دژورو مطالعاتو وړ موضوع ده نو په نظر کښې نیول شوی چه اوس سمدستی دیوی خارجی نامتو بیمې په اتفاق او گډون دبیمې دیوه شرکت تأسیس ته هڅه وشی . لکه څنګه چه په دغه باب اقدامات شوی او اوس دپیشنهادونو په لړ کښې دلندن دگاردین انیشورنس دکمپنۍ له خوا یو بل پیشنهاد او بهزوریخ کښې دسو لیستی دبیمې دکمپنۍ له خوا بل پیشنهاد دتجارت وزارت ته رارسیدلی چه نوموړو کمپنیو په افغانستان کی د بیمې دشرکت دتاسیس له پاره خپله علاقه ښودلی او هم یې کابل ته خپل نمایندگان رالیږلی دی انتظار کیږی چه دسږ کال ترآخره پوری دافغان بیمې یو شرکت په کابل کی دگاردین انیشورنس په ډنګه تاسیس شی او په دغه برخه کی په فعالیت پیل وکاندی.

## د بندروالی چاری:

په دی وختو کښې دهیواد دوارداتو او صادراتو دچارو دتنظیم او اسانتیا له پاره دشیرخان ،تاشگذر ، دکلفت دبندرونو او دهرات دولایت دتورغوندۍ دبندر له لاری دتجارت په وزارت کښې دبندروالی یو منظم تشکیل منځ ته راغی چه د هغه په اساس دغه بندرونه کار کوی او د ۱۲٤۱ کال دسرطان له لومړۍ نیټی څخه او د ۱۳٤۲ کال تر دریو میاشتو پوری ۲۵۶۲۹۱۷۸ر۹۶۲ـ ټنه مالونه له دغو بندرونو څخه صادر شوی او د ۹۰۵۶۵۵٤۲ر۲۰۰ ټنه مالونه وارد شوی او هغه عایدات چه د ۱۳٤۱ کال دعقرب

دمیاشتی تر آخره پوری له دغو بندرونو څخه دمال التجاره صادریدو اووار د یدو له مدرك څخه لاس ته راغلی ۱۳ر۱۰۷۰۰۹۸۳۲ — افغانی دی .

## د کتابخانی د تاسیس موضوع:

په ۱۳٤۱ کال کی په اقتصادی، تجارتی، علمی او نورو چاروکښی د مطالعی او څیړنی د زمینی د برابرولو په غرض د تجارت د وزارت د تدقیق او مطالعاتو د اوی مدیریت له خوا د تجارت په وزارت کی د یوی مجهزی او بشپړی کتابخانی د تاسیس له پاره علمی او مؤثر اقدامات تر لاس لاندی نیول شوی لکه څنګه چه د هغی کتابخانی نقشه د ایښا فوندیشن د متخصص په مرسته او د هغوی په عرفانی کمکو طرح او تهیه شوه او د یو شمیر نورو کتابونو د پیرودلو له پاره باندنیو هیوادو ته فرمایش صادر شوی دی هیله من یو چه د سږ کال تر ختم پوری دغه کتابخانه په رسمی توګه پرانیستل شی.

## د تجارت د اصولنامی د تدوین او د اصولنامی په ځینو موادو د تجدید نظر چاری

۱ — په ۱۳٤۱ کال کښی د تجارتی شخړو د اصلاح او یا د حکمیت قانون د تجارت د وزارت له خوا تدوین شوچه ژر به د قانونی او نورو مرحلو د طی کولو له پاره مربوطو مراجعو ته وسپارل شی.

۲ — همداشان په ۱۳٤۱ کال د تجارت وزارت د تجارت د اصولنامی او د پنګی اچولو د قانون په ځینو موادو غور وکړ چه په هیواد کښی د تجارتی چارو د انکشاف له لحاظ څخه او د وخت او زمان په ایجاب سره تجدید نظر پکښی وشی.

۳ — همدارنګه د تجارت وزارت په نظر کښی لری چه د بیمی اصولنامه تدوین کړی چه مقدماتی مطالعی یی په ۱۳٤۱ کال کښی شروع شوی دی. «پای»

# دپوهنتون دریاست تشکیل

| | |
|---|---|
| رئیس | ښاغلی دکتور محمد عثمان انوری |
| مرستیال | » » محمد عمر وردك |
| دښوونې او روزنې لوی مدیر | » محمد حیدر میا خیل |
| دمحصلانو مدیر | » دکتور غلام سخی مصئون |
| دخارجه ارتباط مدیر | » » خلیل احمد ابوی |
| دخپرونو مدیر | » عبد الغفوری بابهری |
| اداری لوی مدیر | » عبدالهادی رحیم |
| دپلان مدیر | » محمد نعیم |
| دمحاسبی » | » محمد حیدر |
| دمامورینو مدیر | » محمدطاهر |
| دقبلی کنترول مدیر | » عبدالرؤف |
| دخدماتو » | » احمدعلی |
| دآرشیف » | »غوث الدین |
| دپلټنې » | » عبداللطیف |
| دلیلیې » | »شیرمحمد |
| ددرسی موادو دتهیې مدیر ښاغلی محمد یعقوب مفتون | |

د پوهنتون رئیس ښاغلی
دکتورمحمدعثمان انوری

## دپوهنځیو رئیسان

| | |
|---|---|
| دښوونې اوروزنې دموسسې رئیس | ښاغلی دکتور محمدرسول تره کی |
| دطب دپوهنځی رئیس | ښاغلی دکتور عبدالصمد سراج |
| دعلومو » » | ښاغلی دکتور عبدالغفار کاکړ |
| دکرهنې دپوهنځی رئیس | ښاغلی دکتور شاه محمدالکوزی |
| داقتصاد » » | عبدالواحد سرابی |
| دادبیاتو » » | سید بهاالدین مجروح |
| دحقوقو اوسیاسی علومو دپوهنځی رئیس | دکتور عبدالحکیم ضیایی |
| دانجینرۍ دپوهنځی رئیس | دکتور عبدالغفور قیسانی |
| ددرملجوړولو دپوهنځی رئیس | دکتور سید عبدالله سید |
| دتدبیر منزل دپوهنځی رئیس | پیغله کبرا نورزایی |
| دننګرهار دطب » » | ښاغلی دکتور سید عبدالقادر بها |
| دښوونې اوروزنې » | » » محمدصدیق |
| دشرعیاتو »مرستیال | » عبدالستار سیرت |

# دپوهنتون دریاست فعالیتونه

## دپوهنتون دخارجه ارتباط دمدیریت راپور.

دپوهنتون دخارجه ارتباط دڅانګی لوی هدف چه دتعلیم او تربیې دلوی مدیریت یوه څانګه ده، خارج ته دزده کوونکو استول دی. همدغه شان په مونشن، مسکو بیروت او امریکا کښې دکلتوری ادارو سره دتماس په اثر دزده کوونکو تعلیمی مسایل او نوری موضوع ګانی اجرا کیږی، دغه شان هغه ټولو کسانو ته دصحی فورمی اخیستل چه دوزارت خانو او مستقلو ریاستو نو څخه او دمملکت دنورو داېرو څخه ته استول کیږی ددغه مدیریت له لیاری اجراء کیږی.

په ۱۳۴۱ کال او د ۱۳۴۲ کال په نیمائی کښې ۶۱ تنه محصلان او محصلانې ددغه څانګی له لیاری په بیلو بیلو شقو کښې دعالی زده کړی دپاره بیلو بیلو مملکتو نو ته لیږل شویدی چه ددغه جملی څخه پنځوس تنه محصلان او یوولس تنه محصلانې دی.

## دپوهنتون دمعلمینو اومحصلینو دمدیریت فعالیتونه!

دمعلمینو او محصیلنو مدیریت چه دپوهنتون دتعلیم او تربیې دلوی مدیریت یوه څانګه ده دنوی شامل شوو زده کوونکو دآشنائی او بلدیت لپاره دنشراتو دمدیریت په مرسته (دپیژندنی دهفتی) په نامه ئی یوه هفته مربوطو پوهنځیو ته دزده کوونکو دتقسیم څخه پخوا تخصیص کړیده څو نوی شامل شوی زده کوونکی خپل پوهنځی دخپل شخصی نظره او دپوهنتون دریاست دمقام په صلاح دید او ددولت په خواسته انتخاب کړی، ځکه چه پخوا پوهنځیو ته دنویو شاملیدونکو زده کوونکو تقیسیم دیو کمیسیون له خوا کیده چه په ۱۳۴۲ تعلیمی کال کی دپوهنتون ریاست پخپله او دپیژندنی دهفتی په اتکا له دغی عهدی څخه ووت.

په تیرو کلو کی زده کوونکی په مجموعی ډول دام، پی، سی، بی په ټولګی کښې شامل کیدل او دکال په اخیر کښې ئی دطب پوهنځی، دعلوم فارمسی پوهنځیو دپاره بیل تقسیمات ایجا بول چه په ۱۳۴۲ تعلیمی کال په لمړی وخت کښې زده کوونکی هغو پوهنځیو ته تعیین او په ګډه سره ئی دام، پی، سی، بی ټولګی پای ته رساوه.

علمی آثار او داستاذانو تیزونه چه دهغو دژورو او دقیقو مطا لعو او تتبعاتو اثر دی او دعلمی مقام اورتبی دنیو لو دپاره ئی لیکی پخوا بیرته استادانو ته ورکول کیدل او اوس دهغی فیصلی له مخی چه شویده دچاپ وړ آثار دپوهنتون دتألیف او ترجمی مدیریت خپروی څو دعلاقه مندانو په اختیار کښې کیښو دل شی او نور آثار دپوهنتون دکتابخانو او نشراتو په مدیریت کښې ایښودل کیږی اوهمدغه شان، دپوهنځیو درسی پروګرامونه دمحیط او وخت دایجاباتو سره سم دیو تقسیم اوقات له مخی دپوهنتون دپوهنځیو دخارجی او داخلی استادانو له خوا اوډاندی بیول کیږی.

دتعلیم او تربیی ، تدبیرمنزل، دغاښو دطب او انجینری پوهنځی په بیل ډول په ۱۳٤۱ کال کی په مستقل ډول تأسیس او په تدریس ئی پیل وکړ .

لاندی احصائیه په ۱۳٤۲ کال کی د کابل د پوهنتون د پوهنځیو داستادانو او زده کوونکو ټول شمیر ښیئی .

| د پوهنځی نوم | نارینه زده کوونکی | ښځی زده کوونکی | ټول | داستادانو شمیر |
|---|---|---|---|---|
| طب | ٤۳۵ | ۱۰۹ | ۵٤٤ | ۱۱۵ |
| حقوق | ۳٦۳ | ۲۳ | ۳۸٦ | ۳٤ |
| علوم | ۱۵۷ | ٤٦ | ۲۰۳ | ٦۳ |
| ادبیات | ۲۰۵ | ۱٦٤ | ۳٦۹ | ٦۷ |
| شرعیات | ۸٦ | - | ۸٦ | ۱۵ |
| د کرهڼی پوهنځی | ۱۳۷ | ..... | ۱۳۷ | ٤۹ |
| دانجنیری « | ۲۰۹ | - | ۲۰۹ | ۷ |
| اقتصاد « | ۲۰۱ | ٦۵ | ۲٦٦ | ٤۰ |
| دواسازی | ۷۱ | ۱۳ | ۸٤ | ۱٤ |
| تعلیم و تربیه | ۵٦ | ۱۲ | ٦۸ | ۳۲ |
| تدبیرمنزل | ..... | ۳۰ | ۳۰ | ۱ |
| | | دټولو شمیر | ۲۰۲۲ | جمله ٤۳۷ |

## دخپرونو او کتابخانو د مدیریت اجراآت

دکابل د پوهنتون کتابخانی ټولی دکارتوتیك په سیستم او په عصری اصولو تنظیم شوی اودهغو نور درسی مواد کتلاك شویدی .

په ٤۱ او ٤۲ کال کی لس زره کتابونه او دعلمی مجلو کلکسیونونه د پوهنتون په کتابخانو زیات شویدی .

دنړی دمشهورو کتابخانو او مختلفو مؤسسوسره دکتابونو دمبادلی قرارداد ونه لاسلیك شوی او په دی وسیله هم دکتابخانو په کتابونو کی زیاتوالی راغلی دی .

دخپرونو او نشراتو په ساحه کی ، دکابل پوهنتون خبرونه ، میاشتنی مجله او بدنی روزنه مجله په دی میاشتو کی یوزل په ښکلی طبع او ښایسته صحافت خپری شوی او نشر شویدی .

د ۱۳٤۲ کال په لومړی کی دتألیف او ترجمی مدیریت د پوهنتون د نشراتو او کتابخانو د مدیریت تر اثر لاندی تأسیس او په کارئی پیل وکړ .

ددی لپاره چه د پوهنتون دکتابخانه رسمی دفترو اودهغو د مربوطاتو دصحافی دچارو په فوق العاده مصارفو چه په قرار دادیانو اجراکیدل مخ نیوی وشی او په لږ مصرف په زړه پوری کاروشی دصحافی یوه څانگه د پوهنتون دکتابخانو او د نشراتو دمدیریت تر اثر لاندی د ۱۳٤۱ کال په پای کی جوړه او په کارئی پیل وکړ چه تر

اوسه ئې د کتابخانو او رسمي دفترو لس زره او پنځه سوه ټوکه کتابونه و قایه او صحافي کړي دي.

د ۱۳۴۲ د سرطان په میاشت کې د پوهنتون د کتابخانو او نشراتو د مدیریت تر اثر لاندې د پوهنتون د کتابو د بلورنځي بو مرکز پرانستل شو او د خارج او داخل څخه ئې په مختلفو ژبو علمي کتابونه تهیه او په ارزانه بیه ئې مراجعینو ته ورکړېږي.

## د شرعیاتو د پوهنځي راپور!

د شرعیاتو پوهنځی چه د افغانستان د اسلامي عالي تعلیماتو یوازنی مرکز او د کابل د پوهنتون د پوهنځیو څخه یو پوهنځی دی په کال ۱۳۳۰ کې د مذهبي منورو علمیانو او هغو محوانانو ته د اړتیا او نیاز منده په اساس جوړ او تأسیس شو چه نوي او زاړه علوم د مقایسې له نظره او د نني تعلیمي سیستمونو مطابق مخ په وړاندې بوتلای شي:

د شرعیاتو پوهنځی د ۱۳۴۱ کال تر وروستو وختو پورې په پغمان کې وار د ۱۳۴۱ کال د جدي په میاشت کښې بې د کابل مرکز ته کوچ وکړو.

په ۴۱ کال کې د پوهنځي نوی اساسنامه ترتیب او د استادانو په علمي مجلس کې تصویب شو او د مربوطو مقاماتو په نظر ورسید. د دغه اساسنامې په مخې د پوهنځي په اداري څانګو علاوه د ریاست د مقام نه وروسته د عالي مرستیالۍ شعبه هم تأسیس شود او د دغې شعبې تر اثر لاندې د کتابخانې نشراتو او تدریسي څانګې فعالیت کوي.

د شرعیاتو د پوهنځي کتابخانه سره له دې چه یوه ابتدائي بڼه لري او په تیر کال کې ئې د عربي متحد جمهوریت څخه د یوې اندازې کتابونو په پیرودلو د پوهنځي او سني ضرورت رفع کړي او په نظر کې دي چه هر څومره ژر د عربي کتابونو په بیلو بیلو برخو کې یوه زیاته اندازه کتابونه لاس ته راوړي.

په نظر کې دی چه د نشراتو څانګه د ۴۲ کال په وروستیو وختو کې په فعالیت پیل وکړي او د زده کوونکو د تدریسي او معلوماتي موادو په خپرولو علاوه یوه دایمي میاشتنۍ مذهبي مجله هم خپره کړي.

د شرعیاتو د پوهنځي د تعلیمي پراختیا او انکشاف په سلسله کې د عربي ادبیاتو د پاره په مصري استاد محمد عامر المهندس علاوه، د ۴۱ کال د حمل د میاشتې په ۱۳ نیټه دوه تنه استادان د اسلامي فقې متخصصین د مصر د ازهر د پوهنتون څخه په کابل کې د عربي متحد جمهوریت د فرهنګي اداري له لیاري کابل ته راورسیدل او د شرعیاتو پا پوهنځي کې ئې د اسلامي فقې په تدریس پیل وکړ.

د دغه پوهنځي ۴ تنه استادان د ازهر د پوهنتون څخه د تخصص علمي اسناد لري او نور استادان خپله د هغه پوهنځي لیسانسه دي.

د دغه پوهنځي د تدریسي غړو څخه یو تن په ۴۱ کال کې د لوړو تحصیلاتو لپاره د شرعیاتو په برخه کې عربي متحد جمهوریت ته استول شوی دی او اوس د دغه پوهنځي

داستادانو شمیر ۱۲ تنوته رسیږی او ۹۰ تنه زده کوونکی پهدغه پوهنځی کی پهزده کړه بوخت دی عربی ژبه پهدې پوهنځی کی دنورو برخو سره ډیره ژوندۍ اوجدي ونډانډی بیول کیږی او دهغه پهخنګک کې انګلیسیژبه هم دکورس پهډول لوستل کیږی .

دغرب دحقوقو مضمون دشرعیاتو دپوهنځی پهڅلور واړو ټولګیو کی لوستل کیږی په داسیحال کښیچهاسلامیحقوقد نورو برخوسره پهډیرو تازه اساسو سرهسم تدریس کیږی . دمقایسوی له نظره دغرب دحقوقو لوستل پهدشرعیاتو زلمیان مجهز کړی .

دشرعیاتو پهپوهنځی کې دمافوق لیسانس دیوی دوری تأسیس(قضائیعلومو دتخصص) دمؤسسی پهنامه دمطالعی اوکتنی لاندیدی او دغه موسسه پهډیر ژر افتتاح شی. دغه شان دشرعیاتو په پوهنځی کی دپیغلو دداخلیدو دچانس اخیستو موضوع دمطالعی اوغور لاندی ده اوپه نظرکی دی چه داسلامی عالی تعلیماتو ته پهبرخهکې دپیغلو دتحصیل زمینه برابرهشی . علاوه پهدې دشرعیاتو دپوهنځی دشاملینو پهشمیرکی بههم پهزړه پوری زیاتوالی راشی .

## دعلومو دپوهنځی فعالیتونه :

۱ - په۱۳٤۲ تعلیمیکال کښی دعلومو دپوهنځی دداخلی استادانو شمیرد ٤۰ تنو پهشاوخوا کېږو اوله هغې جملی نه٦ تنه پهخارج کی پهکتنو بوختدی .

۲- په۱۳٤۲ تعلیمیکال کیدعلومو دپو هنځیدخارجی استادانوشمیر۸ تنهدیچه لههغی جملی نه٥ تنه درابطهٔ توامیت د هیأتو مربوط یوتن لهیونسکو نه - یوتن دهوا پیژندلو دموسسی نه اویوتن ئی داتومی انرجی له بینالمللی موسسې نهدی .

## ۳- په ۱۳٤۱ کال کښی دفارغ التحصیلا نو شمیر :

| | |
|---|---|
| شاګردان | ۳۱ تنه |
| شاګردانې | ۳ تنه |
| ټول | ۳٤ تنه |

## ۴ - د۱۳٤۱ کال دمحصلینو اومحصلاتو شمیر :

الف : له دوهم نهتر څلورم ټولګی پورې څلورګونی برخې :

| | |
|---|---|
| شاګردان | ۱۳۰ تنه |
| شاګردانی | ۲۰ تنه |
| ټول | ۱٥۰ تنه |

ب دساینس له بسیك نه

| | | |
|---|---|---|
| شاګر دان | ۱۳۰ تنه | |
| شاګر دانې | ٦٦ تنه | ۲۹۰ تنه |
| ټول شاګر دان اوشاګر دانی | | ٤٤۰ تنه |

## دتوامیت دروابطیمرستی اوفعالیتونه

په۱۹٦۲ کال کښې دطبیعی علومو له پوهنځی او دبن دپوهنتون لهرياضیاتو سر.

دکابل د پوهنتون دعلومو د پوهنځي درابطهٔ تواميت مرستې داپتيك آلات او لوازم دکیمیا آلات اولوازم- زولوجي- جیالوجي پالیانتو لوجي- دکتابو په شمول- دکیمیا مواد -دعلمی سیرو دپاره دوه موټرونه دي چه دهغو ټوله بیه دغر بي الما ن (۳۵۰) زره مارکه کیږي.

په ۱۹۶۳ کال کښې دکیمیا - زولوجي- او پالیانتو لوجي په برخو کښې مرسته د(۱۱٤) زرومارکو په شاوخوا کښې وه او دفزيك -میزالوجي بوتانيك او دریاضیاتو دپاره په ناځه(۳۲۵۰۰۰) الماني مارکه پیشبیني شویدي .

او تردې پروگرام درولوجي او کیمیا په برخو کښې يوتن کيمو تخنيك او يوتن پريپرا تورزولوجي هم په فعالیت بوخت دی .

همدغه رازدری تنه الما ني شاگردان دخارجي استادانو ترنظر لاندې زموږ دداخلي شاگردانو په لږ کښې دعلومو د پوهنځي دوسايلو نه دخپلی دوکتورا په لاسته راوړ لو کښې کار کوي.

دزولوجي اختصاصي لابراتوارو چه د۲۰ تنو محصلينو گنجایش لري د پوهنځي دعالي دټولګیو په محصلينو اومحصلاتو پوري مختص دی او همدغه راز د بسيك سا ینس لابراتوارونه تجهیز اواکمال شویدي.

د تواميك ددغه رابطه د۱۳٤۰ کال په آخرو وختو کښې دهغو فرهنگي روابطو او مرستي دقرار داد په اساس شوی چه پخوا دافغا نستان اوفدرالي المان د حکو متو تر منځه شوی ؤ .

## لابراتوارونه:

الف:- دتحلیل طبقي لابراتوار :- ددی لابرا توار کار په مقد ماتي صورت سرته رسیدلی او په همدی نژدی و ختو کښې به دلو ازمو د نصبولو دچارو دتکمیلو لو نه وروسته داجساموفزيك د برخي استادان او دلوړو ټولګیو محصلين دطیف له نگاه کتنی کوی او دالابراتوارد يو نسکو په مرسته چوړ شویدی.

ب:- دهستوي دوهم اودریم لابراتوارونه :

دهغو د آلاتو د نصبولو مقدماتي چاري تکمیل شوي او اوس په هغو کښې د کرهڼې دطب او بیالوژي په مختلفو برخو کښې يو لړ علمي تفحصات کيږي دهستوي د دریم لابرا توار :- چه دذروی تشعشعاتو له نقطی نظره دمملکت د بیلو بیلو سيمو دسروی او تحقيقاتو مرکزدی دسرته رسیدلو په حال کښې دي :

ج:- دعلومو د پوهنځي د کیمیا په انستيتوت کښې دعضوی کیمیا دلا برا توارو دا احداث کارسرته رسيدلی او دشلو تنو گنجایش لري .

د:- د۱۳٤۲ کال دجوزا په میاشت کښې دزرولوجي اختصاصي لابراتوار په فعالیت شروع کړی او دالابرادتوا میت درابطی دهبأ تو په مرسته تاسیس او تجهیز شويدی .

علمی سیرونه :-دعلومو د پوهنځي دکیمیا- بیالوجي- او جیا لوجي د برخو

شاگردانو له تیرو کالونه زیاتره په۱۳۴۲ تعلیمی کال کښی په علمی سیرو لاس پوری کړی او ددی سیرونوعمومی نتیجی یو لږ هغه‌موادی چه‌دعلومو د پوهنځی دحیوانی ـ نباتی اوجیالوجی دموزیمو نودپاره راټول شو یدی .

## دعلومو د پوهنځی کتابخانه :

په۱۳۴۲ تعلیمی کال کښی دعلمی کتابو اوماخذو شمیر ۱۰۸۰۰ جلد وته رسیږی او برسیره پدی سږ کال ۱۰۰ ډوله مختلفی مجلی هم اشتراک شو یدی .

## نشراتی فعالیتونه :

الف :ــ د کتابو دطبع پهساحه کښی:ــ دعلومو د پوهنځی دګستتنر ددستګاه پهذریعه ، دریاضی ـ فزیك ـ کیمیاـ بیالوژیـاو بوتانیك زو لوجی په بر خو کښی لهلسو جلدو نه زیات‌علمی کتابو نه‌چاپ‌شو یدی .

ب:ــ دساینس علمی یعنی دعلومو د پوهنځی دری میاشتنی خپرو نه چهد ۱۳۴۱ کال داسد په‌آخر کښی تاسیس‌اوخپره شوی‌وه‌همدغه‌ر از پهرو دریومیاشتو کښی یو‌ځل په‌علمی جدی مطالبو خپریږی . او هم ضمناً یو لږ فوق الـعا ده‌مجلی هم خپری شو یدی .

ج :ــ په‌نورو نشراتی ساحو کښی :

په۱۳۴۲ کال کښی یو لس دقیقه ئی پروګرام او۴۲ کال دجوزانه وروسته پهدوهمه مرحله‌کښی ۱۵ دقیقه ایز نشراتی پروګرام دهری‌سه‌شنبی په ماښام له کابل راډیو نه خپریږی او پدی پروګرام کښی پهساده ژبه ډیر نوی علمی اطلاعات او رول کیږی. همدغه‌راز په‌ورځنیو علمی موضوعاتو باندی دعلمی‌تبصرو پروګرام جاری دی‌او دهری پنجشنبی په‌ورځ داصلاح په‌ورځپاڼه کښی‌خپریږی

## دپوهنځی‌دودانی‌د دریمی‌طبقی جوړول -

دعلومو دپوهنځی داوسنی عمارت دد‌ریمی طبقی کار دلابرا تو ار ونو تیا تر و دانکشاف اوتوسعی په‌منظور چه په‌عصری ډول مجهز اود محلورو سوو کسا نو ګنجایش ولری اوهم د یو اختصاصی امفی تیا تر ودانی چه ۱۸۰ تنه پکښی ځای کیدلی شی د۱۳۴۲ کال داسد دلمړی نیټی څخه ئی په‌کار لاس پوری شو یدی .

۱۱ـ دیوی مجهزی نجومی رصد خانی دتاسیس په‌باره کښی‌لازم اقدامات شو یدی اوددی منظور دپاره مناسب ځای ټاکل شو یدی . اودریفر اکتور دیوی پائی آلی داخیستلو دپاره چه دهغی بیه ۱۲۶زره المانی‌مارکو نه کیږی‌لازم‌اقدامات جاری دی .

۱۲ :ــ د خارجی پروفیسرانو معلمینو نه غوښتنه شوی اوځرنګه چه‌دراتلو نکی سپتامبر په‌میاشت کښی به دتوا میامیت درابطی ترقرار دادلاندی دبن له پوهنتون نه دکابل دعلومو پو هنځی ته راشی . (باقی په۱۴۵مخ کښی)

# دملکي هوايي رياست تشکيل

رئيس — ښاغلی سلطان محمود غازي

مرستيال — « ډګروال ګلبهار

اداري لوی مدير

دهوانوردۍ لوی مدير ښاغلی محبوب الله سراج

دهوا پيژندلو « دکتور عبدالخالق

دښوونۍ اوروزنۍ مدير « حامد سلجوقي

دانجنيرۍ اوودانولو « محمود کريمزاده

دماموريتو مدير

دآرشيف مدير « ابوبکر علومي

دقوا نينو مدير

دمحاسبۍ « محمد کريم حليمي

دعملياتو « عبدالحميد ممنون

دهوا دمجلې مسئول « شاه علي اکبر

شهرستاني

دملکي هوايي رئيس ښاغلی
سلطان محمود غازي

دکابل دهوايي

ډګر لوی آمر — ښاغلی پترسن سويدني

اداري مرستيال — « حبيب الله

دعملياتو « — « جګړن عبدالرحيم

فني — « جانباز

دروغتيا مدير — « دکتور سلطان احمد رمزي

دامنيې « — « ډګروال ملنګ شاه

دقندز دهوائي ډګر آمر — « عزيز احمد اعتمادي

دکندهار دهوايي — « محمد سرور خيبري

ډګر اداري مرستيال

دکندهار د هوائي

ډګر آمر — « محمد حسين

دکابل دهوائي

ډګر آمر — « شاه محمد

# دملکي هوايي رياست

## گزارشونه

### د کندهار بین المللي هوايي ډگر

د ټولو والوتو امو ټرونو د ریدځای د هغه هنگر ـ ترمینل ترمنځ دمربوطو ورخونو سره دسپین بولدك عمومي سړك د کورنیو ودانۍ دمخابرې مرکز ـ او ټول عمارتونه دهغو د رڼا او تنویر سره نور ساختماني کارونه په سلو کښې سل جوړ او بشپړ شوي دي د دغو والوتونو اوږد والی تقریباً لس کیلو متره ټول پوره جوړ شوی دمخابرې داخیستلو مرکزي ودانۍ چه د ټولو ولایاتو او بین المللي الوتنو کرښې چه هر څومره هیوادونه د کندهار سره ارتباط او تماس ولري جوړه شوې ودانۍ ئې مقصد تأمین کولای شي ځکه گرد چاپیره پکښې په اوږدو دوه کیلو متره مربوطه انتنونه لیگدلي او د اخذ و واسطې ئې د لگولو په حال کښې دي. د احتیاطي قوې د تولید ماشین هم پکښې لگیدلی عمارت ټول سر ته رسیدلی دی. دغه ودانۍ سر بیره پردې چه تشنا بونه پخلنځی لري د الکترونیکي پرزو بوگن ځایونه هم پکښې دي د مراسله مخابرې دو دانۍ جوړل هم سر ته رسیدلی دی. په دغه ودانۍ کښې د مراسلې ترانسمیټرونو قوي آلات چه د راډیو د بین المللي میدان ارتباط د ټولو داخلي او خارجي میدانو سره تأمین او ښلولی شي لگولی شوي دي. د کندهار په بین المللي میدان کښې چه کومه د استفادې وړ دستگاه د رول شوی هغه د راډیو تلگراف او راډیو تیلفون څخه عبارت دستگاوې دي.

د مراسلې د دستگاه او مربوطه انتنونو گرد چاپیره دری کیلو متره اوږد بوخ دیوال جوړ شوی دی.

د کندهار د بین المللي میدان د ټرمینل ودانۍ چه تخمیناً په دری مهمو ځانگو ویشل کیږي بشپړه شوې ده.

لومړی ځانگې ئې د مسافرو د تسهیلاتو د پاره د چه د خارجه افغانستان ته د افغانستان څخه خارج ته او یا ترانزیټي مسافرو ته اختصاص ورکړ شوی دی.

دغه برخه ودانۍ چه په پوره لویه سیمه کښې د مسافرو د انتظار د پاره لوی رستوران په خوراعصری ډول آشپز خانه او د پخلنځي ښه سامان پکښې برابر دی د میلمنو د پاره د دمي او انتظار ځای ـ گمرك ـ ویزه ـ په پوره اندازه تشنابونه ـ د ښځو او سړیو د پاره په تفریق سره مختلف عمارتونه ـ د شیانو او نورو محصولاتو د فروش غرفې او د فضائي شرکتونو نمایندگۍ لري.

داخلي برخه ئې د هغو مسافرو د تسهیلاتو د پاره ټاکلې شوې چه د اخلي هیوا د کښې مسافرت کوي. دغه ځانگه هم د مسافرو د انتظار د پاره پوره مجهز رستوران

عصری آشپز خانه متعدد تشنابونه د بنځو او نارینه وو د پاره تحانله دشیانو د خرڅلاو غرفی او د دفضائی شرکتونو نمایندگی لری .

دریمه برخه و دانی دمیدان د اداری مامورینو ددفتر او تخنیك د پاره ټاکلی شوی دی . ددغی نوموړی مانی دگرمی اوساړو مرکزونه داو لگیدلو د خطر داشاروپه سیستم سره په عصری ډول مجهز دی اوهم مسافرینو ته د پرواز ا بلاغیه او داطلاعاتو دمخابری په سیستم سره په عصری ډول مجهز او په ټولو خونو اومنځونو کښی موزیك لری ، د ترمینل په ټولو برخو کښی ساعتو نه دی او ترمینل ته د ننوتلو په برخه کښی داطلاعاتو یوه بنکلی غرفه ودانه شوی ترانزیتی او یاد مسافرینو ددمی هوټل او ترانزیتی شفاخانه هم ور سره غبرگ جوړ شوی دی .

دهاید رانت یی ـ او ـ ال سیستم دالوتکو د پترولو د تزریق د پاره په بین المللی میدان کښی چه پیشنهاد شوی ؤ اخیراً ولگول شو .

دغه دستگاه په یوه دقیقه کښی په الوتکه کښی د شپږسوه گیلنو پترولو د اچو لو قدرت لری او د شلو دقیقو څخه په لږ وخت کښی (۲۲) زره گیلنه پترول په الوتکه کښی اچوی .

د کندهار د بین المللی میدان دهاید رانت سیستم په یوه وخت کښی شپږ لوی (ډی ـ سی) اته یا بوینگ الوتکی (۷۰۷) چه له دغو څخه نوری ۱۲ دی سی ۳ ـ دی دی سی ـ ۶ ډوله الوتکی او یا دغو څخه کوچنی الوتکی ته پترول ورکولای شی .

ددغی دستگاه دټانکونو په لوښی کښی په مجموعی ډول (۵۳۰۰۰۰) گیلنه او د مربوطو نلو نو ظرفیت یی (۳۵۰۰۰) گیلنه دی چه د عمومی سیستم ظرفیت یی (۵۶۵۰۰۰) گیلنو ته رسیږی .

د بین المللی میدان دعملی استوگنی د پاره څلویښت عمارتونه جوړ شوی دغه عمارتونه په عمارت سی و لوار پخلنځی په برقی آلاتو مجهز او نورعصری تشنابونه کاراچونه او د ذخیری کافی محلونه یی ودانی شوی دی :

داو بورسولو دانسانی د پاره په دننه میدان کښی شپږ ژوری څاگانی کیندل سوی چه دهـیـنو څـاگـا نـو ژوروالی پنځه سوه فوټو ته رسیږی او همداو بو د ذخیری (۳) ټـا نـکـو نـه چـه دخـوړالـوی ټانك ظرفیت یی پنځوس زره گیلنه دی وددول شوی دی .

دمیدان د برقی تسهیلاتو د پاره د بریښنا دتولید په احتیاطی ډول چه فعالیت سره برق قوی کړی شپږ ماشینونه چه قوی ماشین یی (۳) سوه کیلو واټه برق تولیدوی درول شوی او بنکلی عمارت ورته جوړ شوی دی .

عرادجاتو ته دپټرولو ورکولو د پاره د پټرولو د کوچنی دستگاه د نرمیم سره یو ځای د بین المللی میدان په یو عمارت کښی ودان شوی چه د پټرولو په ذخیره با ندی برقی پمپونه هم لگول شوی کاپی سرته رسیدلی دی .

میدان ته د نابلد و خلکو او ښارو یو ښخه د میدان د ساتنې د پاره د دغه میدان په شلو رو ګوټو نو کښې شلور برجونه جوړ شو یدی.

## د کابل په بین المللی میدان کښې

د کابل د هوائی میدان د ترمینل ماڼۍ چه مجهزه ماڼۍ ده د ګرمولو او سړ ولو د آلاتو مرکزونه بشپړه برقی آشپزخانه او د بڅو او ناریڼه وو د پاره ځانله ځانله تشنابونه هم جوړ شوی دی.

د ترمینل د پاسه د فضایی ښاراو پاملرنې د پاره برج هم جوړ شوی چه په ټولو عصری تسهیلاتو مجهز دی. نوموړی ترمینل سربیره د داخلی محصولاتو او ټکټ فروشی په غرفو لرلو د مسافرو د دمې د پاره په زړه پورې د انتظار ځای او د میدا ن د فنی کار کوونکو د اداری دفتر د پاره ښکلی محل هم لری.

د دغه ترمینل مجهزه مخابراتی دستګاه د کندهار د دستګاه په شان مخابراتی تسهیلات لری پخوا له هغه چه د کابل د بین المللی میدان ترمینل ودان کړای شی د دستګاه د فنی ځانګو د اداری د فتر ـ مخابری ـ ګمرک ـ رستورانت او نور و د پاره ګڼ عمار تو نه ودان شوی وو.

## د مخابری د اخستلو د انتنو نو تسهیلات :

د کابل د میدان په څنډه د آخذی د انستن آلات نصب وو د آلا تو د پاره ئی پخوا کو چنی عمارت جوړ شوی او خزا وشایی قیر شوی ده.

د کابل د هوائی میدان د مراسلی عمارت په اتخیلو کښې د شرخی پله سره ودان شوی چه سامان آلات یې د نصبو لو په حال کښې دی او د قوی د تولید د ماشین عمارت چه هری خواته د بیکن سم ته د پاره کافی برق پیدا کړی بشپړه شوی د برق د تولیدات سامان هـم د لګو لو په حال کښې دی.

د کابل په میدان کښې د برق د یوې مستقلې احتیاطی قوی د تأمین د پاره د داسی قوی ماشینو نو پیش بینی شوی وه چه برق تولید کړی دد غو ما شینو عما رت بشپړ شوی ماشینو نو یکښې لګول شوی او چالان شوی دی د برق د ټولو مرکزو او د میدان د ټولو تأ سیساتو ترمنځ او همدغه رنګه د برق د کیبل سره د مخابری مرکزونه د میدان د ننه سیمه کښې د(۱۲) کیلو متر و په او ږ ده سیمې کښې ترا تخیلو پو ری لینو نه غزولی شوی دی.

د میدان د مختلفو تاسیساتو او تر مینل په خوا اوشا کښې د وه کیلومتره اوږده سړ کونه ویستلی شوی او قیر یری اچولی شوی دی او د ترمینل خو او شا هم رڼا شوی د الوتکو د محر و قا تو ږ یز ل او پټر ولو د ذ خیری د پاره د کا بل په میدان کښې یوه کافی ذخیره خانه جوړه او بشپړه شوی ده، د میدان په عراده جاتو کښې د پټوولو اچولو د پاره په یو عمارت کښې د پټر ولو یوه دستګاه د هغې د مخصو صو

دافغانستان نوی صدراعظم ښاغلی دکتور محمدیوسف دکابل د بین‌المللی هوایی ډگر د نوی
ترمینل بلډنگ پرانستلو په وخت کښې درې رنگه‌نوار پرې کوی

په کابل کښې دبین‌المللي هوایی ډگر نوی ترمینل بلډنگ چه سبزکال پرانیستل شو .

دکابل په انصاری واټ کښې دملکی هوایی ریاست نوی ودانی

دکندهار د بین‌المللی هوایی ډګر د ترمینل بلډنګ یوه برخه چه کار یې بشپړ شویدی .

پمپونو سره بشپړه مجهزه شوی ده په کابل کښی دمیتر لوژی یوه خورا مجهزه دستګاه چه سر بیره د(۲٤) ساعتو دجوی اوضاع به پیشګویی اومشاهداتو دهیواد آینده وضع هم واقی تاسیس شوی دغه، قول تشکیل او دستګاه ګانی دمید ان په پخوانی مانی کښی دی چه اوس ئی دتربیوی مرکز په خوا کښی یوه نوی ماڼی درلودونکی او هوا پیژندنه لو چارو دپاره جوړه شوی ده .

د کابل دمیدان درنوی دلوید یز دپنځه نیمو کیلو متری په فاصله کښی دګیتر دانتنو نو اومرا سلو دواسطو دبرق دقوی دتولید دواسطو عمارت هم تکمیل شوی دی او هم ددغه عمارت نه یو کیلو متره ګرد چار پیره جوړه شوی ده .

## د هرات هوایی میدان:

دهرات په هوائی میدان کښی سر بیره په هغو چارو چه دمخه بشپړې شوی دی دمیدان دساتنی دپاره چه اشخاص او څاروی داخل نشی دمحافظینو دپاره پنځه برجونه او پهره دار خانی دساختمان لاندی نیولی شوی دد غې ود انی کار په سلو کښی پنځوس تکمیل شوی دمیدان دفنی مامورینو او مستخدمینو داستوګنی دپاره دمیدان په یوه څنډه کښی دوه فامیلی عمارتو چه دجوړ یدو کار یې په سلو کښی اتیا بشپړ شوی و دا نیږی او دمربوطو مامور ینو داستو ګنی دپاره چه دوه فامیلی عمار تونه دجوړ یدو لاندی دی کار یې په سلو کښی تقریبا ۷۵ تکمیل شوی دی او هم په نوموړی میدان کښی دیوی پهر دار خانی دجوړ لو کار په سلو کښی (۳۰) سرته رسیدلی دی.

## دقندوز هوایی میدان:

دتر مینل عمارت یې دو دانی په حال کښی دی چه دعمیر کار یې په سلو کښی اتیا تکمیل شوی دی .

او هم دجنر یترو ودانی په سلو کښی سل بشپړ او سرته رسیدلی دری ۷۵-۱۸ کیلو واټه ماشینو نه دترانسفارمره لګولې شوی دبیکن هرسمت ته(۱٦۰) فوته دانتن پا یې او دمر سلی دستګاه هم نصب شوي دمرسلی ودانی سرته رسیدلی یې ده .

## دمزارشریف هوایی میدان:

دمخابري موقتي دستګاه چه اوس دمزارشر یف دښار دمیتر لوژی په پخوا نی ودانی کښی ده لګولی شوې دمرکز سره دجوي ر پوټو نو په رالیږلو کښی ارتباط او دالوتکو سره په تماس کښي ده همدغه رنګه دمیدانونو دافق په لازمه ستندرد د هوا پیژ اندلو دستګاه مجهزه ده . ددوش اوخز ش کر ښه اودالو تکو ددر ید ځای دافغانستان دنورو میدانو په شان به په ۱۳٤۲ کال کښي بو خ او قیر ریز ې شي او تسهیلاتی واسطی به هم پکښي وډرولی شي .

داطفا ییې عمارت یې په سلو کښي اتیا بشپړ شوي دي .

## د ننګر هارهوایی میدان

د ننګرهار دمتمم میدان کارچه څینې یې باتې ؤ دجوړ شو پرو ګرا مونو اود

پلان د پیشبینی پهاساس په ( ۱۳٤۲_٤۱ ) کال کښی روان وددریو گرا جونو کار پهسلو کښې نیژ دې اتیا سرته رسیدلی اوداطفاییی د تشناب کا راو د مخا بر ی ددستگاه دودانی کـار بیخی بشپړشوی اودتکس وې پاتې چارې او دتر مینل نور سا ختمانی کارونه اودهغه مواضع او لوازم بشپړشوی‌دی . دلغمان دهو اپیژ ند نی دودانی دمو ضع سروی بشپړهشوی اوژربهیی دسامان دنصبولو کـارپای‌تهورسیږی اودمتر ولوژی دودانی دجوړولو کارهم شروع کیږی په ٤۱_٤۲ کال کښی مخا بره دالوتنو عملیات، هواپیژندنه اودهوانوردیه کمپنی او نور د کابل- کـندهار- هرات قندوز میمنی مزارشریف، لښکرگاه- شمالی اوجنوبی سالنـگ دمیدانو دمخابرې له سر کـتو نه څخه پهمر تب ډول شوی دی اود بین‌المللی اوداخلی الوتنو احصائیه هم په مرتب ډول اخیستل شوی اوترتیب شوی ده .

## هوا پیژند ل :

دراديوسا ند او پایلوټ بالون دآلاتو پهواسطهد پورتنیو کـتنوددستگاه تاسیس څرنـگه چهدمځکی سطح ته نیژ دی دجوی پیښو دتحو لاتو اوڅرنـگوالی مطا لعه دتحقیق دجگک اتمو سفیر لهپیښو اوڅرنـگوالی سره نیژدی اومستقیم ار تباط لری پهدی ترتیب سرهدجوی حالاتو دپیشگویی او دپیښو اواختلا لو نو د تحلیل د پاره کـتنی په تیره بیا پهغرنیو سیمو کښې بس نه دی، او پاس دهواد حرکاتو دحالاتو څخه وقوف څهدسینا پتیك لهنظره او څه دجټ دجـگو الوتو نـکو الوتـکو دمصئو نیت دپاره یوضروری کار گڼل کیږې ځکه چهدجټ ستـریم دچټـکو او فوق‌العا ده قوی بادونو دجریان څخه خبرتیا چه په عمومی ډول په ژمی کښی دافغانستان پهفضا کښې لـگیږی دراديو ساند دآلې پهواسطه ورکول کـیدای شې نو له دې کـبله دیو ی دغه ډول ځانـگی تاسیس هم حتمی گڼل کیـږی درا دیو ساند و پایلو ټ با لو ن دځا نـگې دجوړ یدو مقر رات د ۱۳۳۸ کال په اول کښی دخارجی ماهرانو ترنظر لاندیونیول شول‌اود۳۸ کال پهآخر کښې‌دهوایې‌ملکی‌ریاست‌نکار کوونکو لهخوا په عملی اوامتحانې توگه‌رسماپر انستل‌شوه‌اودرادیو ساند لومړیه آلهدهیواد په صافه هوا کښی‌جگه شوهوروسته بیادیولړ تجربی عملیاتو نه‌پس‌درادیو ساند کتنوشوق پیداکړ او دجوی حالا تو دپـیشگو یی په نقشه باندی پهڅکیسو ایښودلو کښې‌هم په داخل کښې لههغه استفا ده کـیږ ي او هم خا ر ج تهمخابره شوی او کـیږی، درادیوساند کـتنه د کابل پههوائی میدا ن کښې دور ځې یوځل دپایلوت بایلون کښی دورځې دوه ځلې په ا وه‌نیمو بجواو یوه نیمه بجه‌کـیږ ي بایدووایو چهدپورتنی هوائی کـتنی تاسیس یوازې دسمت‌او بادسرعت لهنظره دپایلوټ بالون دالی په وا سطه سمد لاسه دهو اپیژ ندنې مؤسسې د جوړیدو داول نه دکابل او کند هار په میدان کښې کیږ ي او د رادیوساندآ له چه‌پهسمت اود باد پهسرعت علاوه دهوار طوبت دهواد تودوخی درجه اودهوافشارهم بیلو بیلوطبقوته مخابره‌کول دافغانی کـار کـو نـکو دروز لو نه

وروسته په کار واچول شوه دراديو ساند آله د کابل په ميدان کښې په منځني صورت خو جـکو الې يې (۱۵۰۰۰) متره جوي حالات مخابره کوي او دهيواد په ختيز گاونډيو هيوادو کښې دهغو کتنې ډير اهميت لري ددغه ډول څانگې تاسيس د ملکي هوايي رياست يوه ستره کاميابي گڼل کيږي .

۲- د هوا پيژندلو دسامان برابرول اوذخيره دمربوطو آلاتو دترميم ورکشاپ او دستيشنونو دکتلو چارې .

دهيواد په بيلو بيلو ځايو کښې دجوي متعددو او مجهز وستيشنونو دسروي او تاسيس او دراديو ساندو، پايلوټ بالون ددستگاه د تاسيس سره سرة د ذخيري سامان او لابراتوار اودسامان دغو نيو لودد يو گانو او د دستگاو مستعمل سامان دترميم دورکشاپ د تأسيس ضرورت احساس کيده څرنگه چه د هوا پيـژندلومو سسه په ۱۳۳٤ کال کښې د نړۍ د هوا پيـژندلو دموسسې په غړيتوب منل شوي نو د مربوطه ؤيسنو نو د هوا پيژاندلو يو شمير سامان او آلات ورته دمرستي په ډول د نومړي سازمان څخه ور کړی شوي او هم يوه اندازه سامان د ملکي هوائي رياست دهواشناسي د موسسې له خوا خريد اري شوي دي .

چه په ؤيسنو کی د دغو آلاتو د لگول يو شمير را ليږلی شوي او هم د دغو سامانو په احتياطي ډول اضافه برخه په د يپو گانو کښې د ذخيري په ډول موجود دي .

دهوا پيژاندلو دمربوطو لوازمو او سامانو دترميم او برسيره کولو د پاره د تخنيك اوور کشا پ يوه څانگه پرا نستلې شوې ددغي څانگې د کار کو و نکو وظيفه د ؤيسنو نو پاملرنه او کتنه ده چه د ضرورت په وخت کښې د ؤيسنو لازم کتنه و کړي او په ؤيسنو پاملرنه و لري سږ کال د ملکي هوايي ريـاست د کابل په هوايي ميدان کښې د هوا پيژ اند لو د يو عصري مجهز او بشپړه ورکشاپ اولابراتوار په تاسيس موفق شو په دغو لابراتوار و او ورکشاپو کښې لکه بارو مترونه او نور دهوا پيژاند لو هر ډوله هغه سامانونه او لوازم ترميم کيږي چه پخوا به په خارج کښې ترميم کيدل دراديو ساند آلي ترمومترونه ، باد نما جنريترونه او لمو بل سنجونه ؤول په ښه ډول برسيره او د استفادې وړ هم تـر هيميد لی شي او هم يوه دهيا ګرو ستات آله چه دسنجو نو د رطوبت درابر سيره کو لو دپاره پکښې نصب ده د برسيره کولو او ترميم کار کوي .

د ۱۳٤۱ کال نور په مياشت کښې د خارجي متخصصو په ګډون يو هيئت دغزني کند هار ـ لښکر ګاه فرا او هرات دؤيسنو نو دچارو دکتنې ليدنې د پاره دغه سيمو ته ليږلی شوی چه دؤيسنو نو دچارو د کتنې په ترڅ کښې يې ځنې ساما نونه ترميم او يو اندازه نوی سامان دغو ؤيسنو ته ور کړی دی دغسې نور ډير هيئتونه دؤيسنو نو د تفتيش د پاره وخت نا وخته ليږلی شوي او مربوطه چارې يې د نژ دی څخه ليد لی او مشکلات يې ورته رفع کړی دي .

داقلیم اوجویی اوضاع دپیژاندنی پیشگویی :

دفور کاست څانګه ـ دهوا پیژاندلو دلویو خدمتو اوو ظایفو دجملی څخه چه دهوایی اوضاع پیښویی کنټل کیږی دهوایی ناڅاپو حوادثو اود خطرنه دالوتکو او مسافرو دامن دپاره دهوا نور دانو دډیر ضرورت دمخی دیوی خوا او دخلکو دورځنی حیاتی فعالیت په نظر دبلی خوا چه لږو ډیر ورته هر څوك ضرورت لری، دملکی هوایی ریاست دپیشګویی څانګی دلومړی ځل دپاره په امتحانی ډول په ۱۳۳۷ کال دوطن دآزادی دبیرته ګټلو دڅلو پښتم کال دجشن په شپږ ورځو کښی د کابل راډیو په ذریعه دهوا دوضعیت پیشګویی دګرانو وطن والو غوږته ورسوله همدغه رنګه تر اوسه پوری یی خپل فعالیت ته ادامه ور کړی دهغو تجربو په نظر چه دهوایی اختلال دنقشو دحل او تعقیب په ساحه کښی افغانی فور کاسترونو تدریجا حاصل کړی دپیشګویی نتیجه دپخوا نه ښه او مخ په انکشاف ده

دملکی هوایی ریاست په مرکز کښی اوس دهوایی اوضاع ۷ نقشی د هوایی مشاهداتو په یوه پراخه ساحه کښی ترتیب او حل کیږی چه دری نقشی یی د خوا وشاه ځمکی دسطح دهوایی مشاهدو او ٤ نوری یی هوادپورتنیو برخو د(۱۵۵۰)مترو (۳۰۰۰) (۵۰۰۰) او (۷۵۰۰) مترو څخه هوایی مشاهدات ترتیبول شی . او په نړدی راتلو نکی وخت کښی به دمخابری د نوی سیستم نږدی په کار اچولو سره دفور کاست دمرکز مرتبه نقشی (٤٥) عدده ته ور سیږی چه طبعاد فور کاست صحت او سمون به دهوا بازانو داستفادی دپاره دمختلفو پیشګویی په ترتیب کښی ډیره مرسته کړی .

دفور کاست دمرکز دتشکیل لاندی دری څانګی دی .

۱ـ دمخابری څانګه ـ چه وظیفه یی دذیعلاقه ملکو نو دځمکی دمخ او پورتنی برخی څخه دهوایی اوضاع رپور ټونه اخیستل دی .

۲ـ دنقطی ایښودلو څانګه ـ په دغه څانګه کښی دمخابری دڅانګی نه درمز په ډول اخیستل شوی رپور ټونه ترجمه کوی او دنقطه ګذاری دنقشی دمخی دتحلیل دپاره د تحلیل څانګی ته سپاری .

۳ ـ دانالیز او نقشی دتحلیل څانګه: دغی څانګی ته چه دهوایی حالاتو دنقطی ایښودلو نقشی لیږلی کیږی وروسته له هغه په فشار او تیمپ دقیکو تحلیل او ترسیم او دخارجی مشاورینو په مشوره سره دتخمین اختلال دګړند حرکت او استقامت او پیښی دځای ټاکلو افغانی فورکاستر ونه زمونږ دهیواد دمختلفو برخو نه دراتلونکو ۲٤ ساعتو داخستی شوی پیشګویی نتیجه دباختر آژانس ته لیږی چه دکابل راډیو او اخبارو نو په ذریعه پرې ګران وطن وال خبر شی .

دکلیماتولوژی یااقلیم پیژاندلو څانګی دملکی هوایی ریاست دذیعلاقه مو سسو

(باقی په ٥٤٦ مخ کښی)

# دکابل ښاروالۍ تشکیل

ښاروال ښاغلی پوهاند محمد اصغر
مرستیالی « امرالدین عبادی
اداری رئیس « محمد نبی
دکاراوجوړونو رئیس ښاغلی مهندس عصمت‌الله عنایت سراج
دتشکیلاتو رئیس اودتبلیغاتو آمر ښاغلی محمد یونس حیران
دحفظالصحی رئیس ښاغلی ډکتور محمد آصف فقیری
دښاروالی د انجمن منشی ښاغلی محمد کبیر نورستانی
دپامیردجریدی مسئول چلوونکی ښاغلی محمد رویدارمرزی
دمحاسبی لوی مدیر ښاغلی حاجی محمد انور
دکار او جوړونو فنی مدیر ښاغلی غلام حیدر

**کابل ښاروال ښاغلی پوهاند محمد اصغر**

فنی مشاور ښاغلی رمضان
اداری مدیر « عبدالقدیر
داوبورسولو مدیر « محمد کبیر
دصحی انجنیری لوی مدیر « انجنیرعبدالغفور
دکارلوی مدیر « محمد بصیرسمیعی
دپارک دسینما لوی مدیر « محمد عیسی یعقوبی
دترافیک لوی مدیر « ډگرمن امان‌الله حیدری
دتنظیفاتو « « حبیب‌الله
دلوازمو « « فقیرمحمد

| | |
|---|---|
| د پاڼومدیر | ښاغلی محمد ابراهیم |
| د محاسبی مرستیال | « محمد علی |
| د تصفیې مدیر | « صالح محمد |
| د وارداتو مدیر | « امیر محمد |
| د عامو خدمتو مدیر | « نوراحمد ملال |
| د محیطی حفظ الصحی لوی مدیر | « روح الله مهتدی |
| د ترمیماتو مدیر | « محمد یوسف |
| د اوبو رسولو فنی مدیر | « محمد اصغر |

## د کابل ښاروالی د ناحیو مدیران

| | |
|---|---|
| د لومړۍ ناحیې مدیر | ښاغلی ضیأ الدین « امیری » |
| د دوهمې « « | « عبدالسلام |
| د دریمې « « | « عزیز احمد پنهان |
| د څلورمې « « | « عبدالحمید |
| د پنځمې « « | « سید مجتبی |
| د شپږمې « « | « نورالحق |
| د اومې « « | « محمد عمر کندهاری |
| د اتمې « « | « پاینده محمد |
| د نهمې « « | « رحمت الله |
| د لسمې « « | « غلام رسول |
| د پغمان د ښاروالی « | « عبد الودود |

.................................................

# د کابل ښاروالی فعالیتونه

### د ساتنې او څارنې چاری :

سربیره پر اداری چارو او هغو او امرو چه د ځینو ترمیم طلبو برخو د ترمیم په باب فنی او برآوردی هیئتو ته صادرشویدی د سیند دیوالونه د شوروی سفارت نه ترمخ او نوری د پلیو لاری ، د نوی ښار د پارك ، قهوه خانه د علاؤ الدین پمپ هوس او د میرانو د جومات رنګول ، د شاه دوشمشیری د جومات او د مراد خانیو د جومات د ږبرو فرش لېږید ونکی پل او د ښاروالی ملکیت اپارتمان ترمیمول او د ګذرګاه د پله او د شاغاسی د پله ، د باغ عمومی د پله ، د شاه دوشمشیری د پله ، د بی بی مهرو (رح) د زیارت رنګول ، د غه راز د نخاس د جومات او د شیرپور د جومات د زینې ترمیم او رنګول ، د شوربازار د تاویلخانی ترمیم او کاه ګل کاری ، د ښاروالی د تشنابو

بشپړول ، دښاروالۍ دوداني ددوهم پوهڼ ځاکول اودښارد کشافتو لرې کول لو
چارې د ښاروالۍ د ترميماتو دمديريت له عمده اجرآتو څخه دي .

## دکاراوساختمان (جوړونې) چارې :

په ۱۳٤۱ کال کښې چه دکابل ښاروالۍ انکشافي بودجې دپلان وزارت ته
وړاندې شوې دښار په بيلو بيلو ساحوکښې اتلس پروژې د۰۰ر۹۳۵۹۷۵ - افغانيو
په حقيقې بيه منظورې شوې . دکابل دعمومي پلان دسروې کارنژدې په سلو کښې
پنځه څلويښت ختم شويدی چه دغه ربوټ دمتخصصينو دکار له اول څخه يعنې د٤۱ کال
د زمرې له مياشتې څخه د٤۲ کال د زمرې ترمياشتې پورې پدغه برخه کښې عملي چارې
شويدي

## توپوګرافي چارې اواناليتي شبکې :

په څلورو کلاسوکې دتونکوليشن اجراکول دتونکوليشن دترصد ځايو موندل
اوټاکل سرته رسيدلي اودترصد په ځايوکې سمنتي پيلرونه درول شويدي او پاوه ځايوکې
برهيدونه نصب شويدي چه دهغو له سرڅخه دمثلثي زاويې په صورت دتونکوليشن ځايونه سره
ونښلوي او په افقي اوعمودي توګه دسرحد نتيجې قيد شي .

داسترنومي نقطه دکارتوګرافي دپخوا ني ودانۍ په څنګ کښې تعبيه شوې او
دشپې له مخې په هغه ځاى کې ترصد اجرا اوزاويې تثبيتيږي اودتونکوليشن دکرښو
د شبکو ټاکلو له پاره دکاردفيات نقاط نصب او په نژدې (۳۰۰) مربع کيلومترو
کښې پرا ميدونه هم درول شويدي اودښارپه پنځوسو بيلو بيلو ځايو کښې اناليتي
شبکې ايښودل شوې اوپه اساسي کرښو يعنې دښار په واټو کښې په (۳۸) کيلو مترو
فاصله پلو نومتري اجرا شوې او په بيلو بيلو ځايوکې (۷۵) سمنتي پيلرونه نصب شويدي
ترڅو که لاندې شبکې لکه دمخا براتو ، اوپورسولواو برښناچارې په برخه اندازه
دتوپوګرافي په نقشه کې شامل شوې اودتوپوګرافي دبشپړ کولو له املا چا الخ کې ئې
دجيالوجي معلومات حتمي دي دجيالوجي انجنيرانو په ذريعه تثبيت شوې اوجيافزيکي
اوهيدرولوجي معلومات په خوځو برمه کاريوسره لاس ته راغلل اوله ديرش کيلو مترو
مربع ساحې څخه دفوتوتياد ليت د ماشين په واسطه فوتوګان واخيستل شو ل .
سربيره پر هغه په تنګې سيدانو کښې د يوه پله جوړولو او د لوګر پر سيند د يوه
پله تيرولو د پاره د توپوګرافي چارې بيرته رسيدلي دي

## دجيالوجي انجنيرۍ چارې

سم له پروګرامه سره د بيلو بيلو ځايو د جيالوجي مقصد د پاره د عملي
په واسطه څو څو ځايونه کيندل شوي دي چه په بيلو بيلو کښې (۳۰۰۰) مترو
مربع ژورې ځاګانې کيندل شوې دي چه د تجزيې د پاره د هغو ځاګانو او په اوخاوره
په لابراتوار کښې ساتل شوې ده .

دکابل دښار دآينده ضروري او بوتهيه کولو له امله دهيدرولوجي او هيدروجيالوجي

او فیزیکی تحقیقات شو یدی یعنی د متخصصینو په واسطه ځاگانی او و یالی کیندل شوی دی او او به ئی د باکترلوجی او د ډولو فزیکی خواصو له مخې په لا بر اتوارکښی تجزیه شو یدی او د هغو فیصدی کلسیوم ، مالگه او نور تر مطالعه لاندی نیول شو یدی.
تر اوسه پوری د هیدروجی مقصد د پاره (۳۰۰) متره ځا کیندل شوی او د پغمان لوگر او کابل د سیندو له ویالو څخه د او بو ا خیستلو ا ند از ه کید ل همیشه جریان لری .

## د پلان طرح کول :

د کابل د ښار د نوی پلان طرح کول چه د مهند سینو او د شورویارشتیکتیانو له خوا شو یدی او دغه لومړنی طرح د ه خو کله چه د جیا لو جی ، هید ر و لو جی او فیزیکی هیدرولوجی په مسألو کښی تحقیقات وشی او پدغه باره کښی ډیرمعلومات لاسته راشی نو هغه وخت به ئی عمومی طرح او نقشه بشپړه شی .

## د کابل د ښار د آینده پلان طرح کول :

د کابل د ښار کانالیزا سیون د کابل د ښار او به رسول ، ترانسپورت او مو اصلاتی کرښی هم د مهمو طرح شو یو پلا نو له جملو څخه د ی . هغه اجراآت چه د شور وی متخصصینو له خوا د کابل د ښار د عمومی پلان په با ره کښی شوی دی نژدی په سلو کښی پنځوس ئی کار بشپړ شو یدی او هیله شته تر شپږو راتلونکو میا شتو پوری نور په سلو کښی پنځوس ئی هم بشپړ شی . د کابل د ښا ر د نوی پلا ن په با ره کښی د ترتیب او مشوری د پاره د کار او ساختمان ( جوړ و نی ) رئیس مسکو ته لاړ او څو محله شوروی متخصصین د کابل د ښار د نوی پلان او د ښارو الی د مصرف په شاؤخوا کښی د غور او مشوري له امله افغا نستان ته را غلی دی .

## د ښاروالی ودانۍ :

د ښاروالی د ودانۍ د پاره چه(٤۰۰۰۰) ملیونه افغانۍ منظوری شوی وی چه کارئی په سلو کښی سل بشپړ شی له دغی جملی څخه د ری ملیو نه افغانۍ په ۱۳٤۱ کال کښی ورکړ شوی وی او د یو ملیو نو افغانیو د پلان له وزارت څخه مو ا فقه ورسره شوی ده خو د مالیی د وزارت له لیاری څخه تر اوسه پوری اجراآت ند ی شوی او تر استفادهٔ لاندی راغلی سره له هغه هم تر اوسه پوری د ښاروالی د ودانۍ چاری په سلو کښی (۹۷) بشپړی شو یدی چه پاتی کارئی امکان لری چه پخپله د ښاروالی له بودجی څخه بشپړ شی .

## د ترافیکو دلوی مدیریت اجراآت :

هغه ترافیکی اتوماتیك څراغونه چه له خارج څخه غوښتل شو ی و به لسو څلو ر لارو کښی نصب او تر استفاده لاندی شوی دی، شل کجاوه والا موټرسا یکلو نه چه په جرمنی کښی جوړ شوی او سل فا لتو ټیر او ټوپ او دوه صندوقه فالتو سامانو نه

د هند جمهور رئیس ښاغلی ډاکټر راداکرشنان هغه وخت چه په کابل کښې د خپلې رسمي استوګنې په موده کښې د کابل ښاروال پوهاند محمد اصغر په واسطه د کابل د ښاریانو تحفه قبلوي

په فرمایښت سره له خارج څخه رارسیدلي او تر استفادې لاندې دي دغه راز د آتنې پېښو د وارسۍ او روغتونو ته د ژوبل شوو کسانو رسولو له امله خارج ته د څلورو بنزو موټرو فرمایښت ورکړ شویدی چه زر په زر به راورسیږي، په واټو کښې د کرښو ایستلو د رنګو خارج ته ئې فرمایښت ورکړ شوی او رارسیدلي دي او له دغو رنګو څخه په واټو کښې د رنګ اچولو کار اخیستل شوی او د موټرو د تګ لارې وربانډې ټاکل شویدي دغه رنګه په رسمي مراسمو کښې د ترتیباتو نیولو او پذیرائي له امله (۲۰۰) کورتۍ او سپین کمربندونه ، (۳۰۰) جوړې بوټ ساقدارې موزې (۲۰۰) سپینې پولیسي خولۍ او د موټرسایکل سوارو (۱۰۰) سپینې (رومر) خولۍ چه له خارج څخه غوښتل شوي وې رارسیدلي او استفاده ورڅخه کیږي ، د ښاري سرویسو د منتظرینو د استفادې له امله (۲٦) اووړي چوکۍ تهیه شوي او په و ځ ځایو کښې ایښودل شویدي؛ ټولې ترافیکي لایحې اوسنۍ ئې د ښار د ننه د ډ ید ځایونه او ترافیکي غرفې د ترافیکو د عملې په واسطه رنګ او روغن شوي او د میونډ د آبدې څخه تر پل خشتي پورې او د شاهي پله په شمال کښې د موټرو له ټکر څخه

د تیریدونکو د ساتلو او د ځکرو د مخنیوی د پاره د لرګیو کټاری درول شوی دی د فه شان د تر ا فیك د مدیریت د کمپ و د انی ختم شوی دی چه استفاده ورځنه کیږی د څرخی د پله د واټ لایحی بشپړی شوی دی، دغه راز دښار د ننه کمپو د لایحې هم بشپړې‌شوی دی .

**دحفظ الصحی دریاست فعالیتونه :**

تنظیفاتی چاری د تنظیف د عملی د اوو سوو تنو اداری ما مورینو ا و نقلیه وسایلو په واسطه اجرا کیږی .

**نوی پروژه:**

نوی پروژه د زاړه ښار د کورو جوړولو د پاره د یو شمیر بیت الخلا ګا نو د جوړولو څخه عبارت دی چه له عاشقانو اوعارفانو څخه شروع شوی او د د غسی بیت الخلاو دجوړولو د پاره یو کروړ (لس‌ملیونه) افغانی تخصیص شویدی پله پروژه د نوو عصری‌عمومی بیت الخلا نو جوړول له‌امله‌دښار په څلور له ازدحامه ځکو ځایو کښې‌ده چه دډو او خلکو د استفادی‌د پاره‌دښار په څلورو بیلو بیلو ځایو کښې جوړیږې پله پروژه دکشافاتو لري کولو پروژه ده چه‌دکورو دتنظیف اودمچانو محوکولو دپاره‌ده‌او د آزموینی په ډول په نوی‌ښار کښی د پارك‌سینما ته‌نږدې چه‌په دوهمه ناحیه پوری مربوطدی تشکیل‌شوی او له‌یوسل او پنځوسو کورونه زیات ترکنترول لاندی نیول‌شویدی چه سربیره د بیرلو په ایښو دلو ، څارنه او دکشافتو په تشولو ، دکورو د بیت الخلاګانو او دکور دمحیط دحفظ الصحی صحی څارنه‌هم کیږی.

دریمه پروژه دمحیطی حفظ الصحی له پروژی څخه عبارت ده چه‌په عمومی ډو ګـه دښار سرکو او بازارو تنظیفـاتی څارنه‌کـوی چه‌دخوراکی‌شیانو ددکانو هوټلو او سموارچیانو اونورو دروغتیا له‌مخی څارنه کوی‌ښاروالی دښار په‌بیلو بیلو ځا یو کښې دکوچنیانو دپاره یوځو باغچی‌هم جوړې‌کړې‌دی اوځو نورې باغچې‌د پروژې‌تر جوړونه لاندې دی‌ځـکه‌په نوی‌ښار، دپروان په‌کارته او په نوروځایو کښې دکوچنیانو دپاره باغچې په‌نظر کښی نیول شوې دی کوچنیا ن استفاده ورځنه کوی‌ځو په‌زاړه ښار کښې دغه موضوع په‌نظر کښې‌نه‌ده نیول شوی ځکه دغه موضوع دکوچنیانو د پاره دروغتیا خطر پیدا کوې‌دغه‌راز په زاړه‌ښار کښې ځوداسی کورونه شته‌دی چه‌بیت الخلا ګانې ئې دکوڅې دتنګوالی‌د یو له‌بله نږدی‌والی او دتیارې په‌اثراصلاح کیدی‌نه‌شی‌نوسم له نوې پروژی سره‌داسی په نظر کښې دی چه‌په‌هر ګـذر کښې ځو یو له‌بله سره نږدې کورونه و بیری‌او دروغتیا دنقشو دشقو له‌مخی دهماغه ګذر دکوچنیانو د پاره باغچی ورځخه‌جوړې او دهغو کډ چنیانو یه استفاده کښې ئې بریږدی چه‌له‌یو بی‌خوا به‌هغه‌د ګذر نه‌اصلاح کیدونکی کشافتو نه‌له‌منځه لاړشی له‌بلی‌خوا به د کوچنیانو د پاره باغچې جوړې شی، دمربوطو باغواصلاح کول هم په‌نظر کښې نیول شویدی.

## داوبو رسولو عمومي چارې :

دغې ښاګڼې نوې پروژه دښار په دریو برخو کښې لکه په (نوي ښار، زاړه ښار او کارته) کښې دښاري شبکې له تیرولو څخه عبارت ده، ددغې ښاري شبکې ترڅنګ دجاپان

### په کابل کښې دپښتونستان په وات کښې دخیبر رستوران ترمخ فوارهلرونکی حوض

له ګوشو کمپنۍ سره شوېدې چه نلونه او نور سامان ئې په دې ورځو کښې کابل ته رارسیدلی او دشبکو کار دهمدې کال دلېم او لیندۍ دمیاشتو څخه شروع ګیږي البته سربیره دپغمان او دعلاوالدین دځاګانو پراو بو ددغې شبکې او دکابل دښار دپاره به دفرعي لهاو بو څخه هم استفاده وشي سربیره پردغه شبکه د(۲۵۰) نلو تیرول د حریق ضد سلو نلونو سره په نظر کښې نیول شوي او عملي به شي.

## دروغتیا د انجنیرۍ چارې:

دروغتیا انجنیرۍ په سږ کال کښې دغذائي مرکزدنابناپاخو، دلبنیات پلورونکو قصابانو، کله پخوونکو، کبابیانو رستورانو، میوه پلورونکو اونورو دکانو دپاره چه خوراکي شیان لري دروغتیانقشه طرح شوي دروغتیا او دعامې روغتیاد ګټورو موادو سره نوموړو دکاندارانو ته ورکول کیږي او دخوراکي شیانو څارنه د روغتیاپالو په ذریعه سره کیږي.

## د تشکیلاتو ریاست اجراآت :

**د تبلیغاتو چاری:** د پامیر جریدی له ښار یانو څخه د ښاروالی د فعالیتوا بلاغیو او هیلو په منعکس کولو او د ښاری مسأ لو په چارو کښې د ښار یانو همکاری جلب کړی او د ښاروالی او ښار یانو ترمنځ ئی د فکری ارتباط وسایل برابر کړی دی او د خپلو خپرونو په لړ کښې ئی ګټور معلومات ورکړی دی او د کابل محترمو ښار یانوته ئی موقع ورکړیده چه د ښاری مسأ لو په باب د خپلو نظریو او انتقا دانو په څرګندولو کښې استفاده ورځخه وکړی، دغه راز د دغی جریدی کار کوونکو د ښاروالی له مربوطو څانګو څخه د ښار یـانو محوا بونه، نظـر یـی او انتقا دونه لاس ته را وستلی او د ښار یـانو پـه عامـو ا نظا رو کښې ئی منعکش کړ یدی، سربیره پر هغه د پامیرجریدې دارتزاقی موادو او د عامه ضرورت د نورو موادو د نرخنامو د خپرولو له لیاری د ښار یانو د هوسایی او د نرخو د تثبیت د پاره خدمت کړ یدی او د ښاروالی له مقرراتو څخه د محتکرینو او متخلفینو د جـرایمو د لستو خپرولو له لیاری د یوی انتبـا هی وسیلی په حیث یی فعالیت کړ یدی .

**د لسګو نو ناحیو چاری:** د لسګو نو ناحیو مدیر یتو له کابل ښار یانو څخه د شاهی کرایی تحصیلو او په برخه کښې د کورو، سرایو د کانو او اپار تمانو د صفایی د محصول په اخیستلو کدې د ښار د کاندارانو او کاسبانو ته د صنفی جواز لیکو په ورپشلو د کابل د ښار د خلکو داحصا یبی او د عسکری مکلفیت د چارو په وارسی کښې د معامله دارانو په جلب او د هغوی د اصولی مرحلو په پوره کولو کښې له وزارت خانو، مؤسسـو او دولتی ادارو سره په همکاری کښې او د خپلو مربوطو او متعلقو تنظیفاتی چارو په وارسی کښې او لـکه د ښاری نقشې څخه د خلاف، ودانیو څخه بې اجـازی ودانیو څخه د منع کـو لو د تعمیر اتی مسأ لو او د دعواګانو د حل کو لو له قبیله په تعمیراتی چارو کښې د ښاروالی د مقرراتو په تعمیلو لو او څارنه کښې فعالیت کړ یدی دغه شان د ښار یانو د ارتزاقی او مصرفی موادو د نرخنامو توزیع کول او په مربوطو منطقو کښې دروغتیا د مقرراتو تطبیقول، د زیږ یدنو مړو او وادو کولو داحصاییو ترتیبول او تهیه کول او د بیځایه او مضرو عادتو او رسومو څخه مخه نیول د ناحیو د مدیر یتو له وظیفوی چارو څخه دی چه ټو لې ئی سرته رسولی دی.

## د عامو خدمتو اجراآت:

د عامه خدمتو مدیر یت د ښار یانو په همکاری سره نه یوازې نرخنامی د کاندارانو ته توزیع کړ یدی بلکه لکه کابل راډیو، د انیس د ملی ورځپانی او د پامیر د جریدی په ذریعه یې د کابل د ښار د خپرو نو په وسیله له نرخ ټاکلو سره ټول ښار یان هم خبر کړ یدی پخواچه په هرو پنځلسو ورځو کښې (۷۳۲) قطعی نرخنامی د کاندا رانو ته توزیع کید لو اَوس

( پاتی په ۵۶۰ مخ کښې)

# دهیرمند دسیمې دپراختیا دلوی ریاست تشکیل

رئیس ښاغلی دکتور عبدالوکیل
اداری مرستیال « ......
تخنیکی « « سید وحدت شاه
د کندهار د ملکیتو نو د تثبیت رئیس ښاغلی غلام محی الدین
د لښکرگاه « « « « سیدعباس
اداری رئیس « ......
د افغانی دستگاه رئیس « محمد یعقوب لعلی

## د تخنیکی معاونیت

اداری آمر « فتح محمد
د بودجې لوی مدیر « عبدالرسول پښتون
د مخصوص قلم لوی مدیر « یاقوت شاه ضمیر
د املاکو لوی مدیر « عبدالستار ضیاء
د کرهنې لوی مدیر « عبدالحکیم
د پراختیا لوی مدیر « شاه محمد
د کرهنې د ودانیو لوی مدیر « محمد ابراهیم سپاهی
د ناقلینو « « عبدالغفور صدیقی
د کرهنې د محاسبې « « سیدعلیشاه
د لښکرگاه د ودانیو « « عبدالرحیم
د کمپنۍ د تصفیې « « سید محمد

## د چاه انجیر د دستگاه

د انجنیرۍ لوی آمر « انجنیر محمد امان

## د چاه انجیر د افغانی دستگاه

اداری مرستیال ښاغلی محمد کریم نصرتی

## د ودانیو دفنی څانگې

عمومی آمر « میرحسین سادات
د خدمتو او مامورینو مدیر « عبدالوهاب فرزانه
د هایدورلوژی
د لوی مدیریت مرستیال « غلام دستگیر شمع

| | |
|---|---|
| دظاهرشاهی و یالی دآبیاری مدیر | ښاغلی میرحسین |
| دتخنیکی معاونیت انجنیر | ښاغلی محمدرحیم |
| دلښکرگاه دلیسی تدریسی مدیر | ښاغلی محمدجان صافی |
| دښوونې اوروزنې مدیر | ښاغلی پاینده محمد کشککی |
| دعامې روغتیا مدیر | « دکتور غلام حضرت |
| دکندهار په حوزه کښې دملکیتونو دتثبیت مدیر | ښاغلی سیدفیض محمد |
| دکرهنې دنسل اخیستلو مدیر | ښاغلی محمد موسی |
| دگرشك دروغتون سرطبیب | ښاغلی دکتور محمدسرور |
| دعمومې محاسبې مرستیال | « شاه نعمت الله |
| دتاد یاتو مدیر | « محمد کریم ستومان |

د هیلمند د سیمې د انکشاف دلوی ریاست او د افغانی دستگاه مامورین په کابل کښې:

دنمایندگی او دافغانی دستگاه رئیس ښاغلی عبدالحی قاضی

دافغانی دستگاه مرستیال ښاغلی محمداعظم

دکابل دنمایندگی مرستیال او دخیبر رستورانت آمر ښاغلی محمدعلم

# فعالیتهای ریاست عمومی انکشاف

## وادی هیرمند

### امور توسعهٔ زراعتی :

این شعبه در ظرف سال گذشته توانست که اهالی را تشویق و ترغیب نماید تاازهمه‌اولتر به‌اعمار یك تعداد منازل نشیمن کم‌مصرف وصحی بپردازند. روی‌همرفته‌تعداد [illegible] رهگذر به زارعان در تمام ساحه ها اعمارشده درحدود پانزده‌تعمیراست.

معاونت هاییکه ازاین رهگذر به دهقانان حوزه صورت می گیرد شامل تهیهٔ سنگ تهداب - بناء و نقشهٔ تعمیرات میباشد صاحبان منازل پول مواد وعمله را در ظرف سال به اقساط جداگانه می پردازند .

باثر رهنمایی‌های کشت پنبهٔ سال جاری‌مردم بر ٤٤۰۰۰ هزار جریب زمین بالغ میشود همچنین شعبهٔ توسعهٔ زراعتی همواره از بذر پنبه مراقبت نموده و را جع به‌آبیاری- خیشاوه - وقلعهٔ آن وقتاً فوقتاً دهقانان رارهنمایی وهمراهی میکنند .

### دستگاه حلاجی

این دستگاه که عنقریب فعال میشود بچهار حصه مشتمل است که در فی ساعت ۱٤ عدل پنبهٔ محلوج (عدل مساوی ۵۰۰ پوند) را تولید میکنند .

قیمت این دستگاه بشمول تعمیر آن به مبلغ ۱۸۰۰۰۰ دالر تمام گردیده‌است.

در سال گذشته به اندازه پانزده تن انبار مصنوعی و آلات زراعتی از قبیل

کراچی دستی قیچی ، بمبه های دوا پاشی وغیره آلات برای اهالی فر و ش و یك قسمتی هم به منظور تشویق طور رایگان به ایشان داده شده است. همچنان یکمقدار تخم جوب ونبات نیز طور رایگان برای علاقمندان آن توزیع گردیده است .

مقدار تخمیکه سال گذشته از طریق کمك های خارجی امریکا وارد شده بالغ بر ۲٤۱ پوند میگردد که یك مقدار آن بدسترس زارعان گذاشته‌شده است .

این شعبه نه تنها به امور فوق الذکر توجه دارد بلکه احصائیهٔ بذر یات و محصولات زراعتی را در ساحه های پروژه وی همه ساله اخذ واز آن استفاده مینماید بدینترتیب سالانه بهزاران جریب زمین کشت وزراعت میشود .

## جنگلها :

قبل از غرس نهالها به اندازهٔ ۱۷۸٤۸۹ متر جوی سابقه پاك و۲۲۳۶۲ مترجوی جدید برای غرس و آبیاری نهالها حفر کرده و به تعداد ۲۰۱۲۲۷ غوچه جهت‌غرس نهالها کنده شده که در همه بهزاران اصله وقلمهٔ نهالهای مثمر و غیر مثمر غرس و بصدها سیر تخم نباتات و درختان در قوریه های مربوط هم بذر گردیده است .

همچنان در قسمت غرس اشجار وبته‌های زینتی نیز اقدامات عملی صورت گرفته که از همهٔ آن نتایج مفید و مثبتی حاصل شده است .

## شعبهٔ ناقلین :

شعبهٔ ناقلین معاونیت زراعتی وادی هیرمند ازتاریخ ماه‌میزان۱٤۱الی اخیر سنبلهٔ ٤۲ به‌اسکان وتوزیع زمین برای رؤساء ۱۳۵ ـ خانوار ناقلین اقوام مختلف درنقاط زراعتی وخارج زراعتی موفق شده است. هکذامراتب اسکان وتوزیع ۲۳۲ ـ خانوار تحت اجراء میباشد .

## شعبهٔ املاك :

الف .ـ شعبهٔ فارم ماشینی .

بنابر صوابدید دولت وسعت فارم‌ماشینی درحوزهٔ مارجه از ساحهٔ ٤۰۰۰ جریب سال۱۳۳۹ بهرقبهٔ ۲۰۰۰۰ جریب درسال ٤۱ تغییر یافت . ساحهٔ این‌فارم ها دروادی هیرمند تاآواخر پلان پنجسالهٔ دوم در حدود اضافه تر ازیك لك جریب زمین وسعت می یابد . دردوران فعلی فارم ماشینی پنبه وگندم بحیث‌تولیدات عمده شبدر بصفت‌کود سبزجهت تقویهٔ زمین‌تحت بذرگرفته شده‌است که‌باثرآن منا صفهٔ اراضی تحت کارپنبه ونصف دیگرآن گندم کشت‌گردد . شبدر بعد از رفع حاصل بحیث کودسبز جهت تقویهٔ حاصلات پنبه‌که بعداً کشت‌میگردد استعمال میشود .

## ب:شعبهٔ اراضی :

تاکنون توسط این‌شعبهٔ برای بیش‌از ۲۰۰۰ـ خانوار ناقلین از اقوام نقاط مختلف مملکت در وادی هیرمند اراضی توزیع گردیده است که‌از آنجمله تخمیناً ۱۰۰ـ خانوار آن درظرف ششماه اخیراسکان شده اند .

## ج: شعبهٔ سروی خاك :

نقشهٔ تصنیف برخی ازاراضی تارنك ، مارجه وقسمت از شمالان تکمیل و فعلاً مطالعهٔ اراضی خوزه درویشان تحت کار بوده و بهاسرع وقت اختتام می پذیرد .

نتایج اجراآت این شعبه برای امور انکشاف اراضی دستگاه سا ختمانی افغانی بحیث رهنماء بوده و بکمك آن اراضی غیرقابل انکشاف مشخص ومانع انکشاف بعدی آنشده وازمصرف بیجاجهت هموارکاری جلوگیری بعمل می آید درظرف ششماه اخیر تصنیف اراضیزراعتی شمالان صدفیصدو درحوزهٔ درویشان بحدود نود فیصد تکمیل شده است .

## د :- شعبهٔ واردات:

برای اینکه اراضی مربوط حکومت خاره ولامزروع باقی نماند زمینهای مذ کور توسط اینشعبه باجاره داده میشود زمینهای قابل اجاره سالانه درحدود سههزار جریب زمین بالغشده وحق الاجاره اینزمینها تحت تحصیل گر فته میشود .

## شعبهٔ تعمیرات :

درددوران سال ۱۸۱- بابمنزل درحوزهٔ شمالان باشش باب تعمیر در بلاك ٦- مارجه برای ناقلین مربوطه اعمار شدهاست . همچنان درضمن جریان ساختمان های مربوطه بهناقلین پانزده باب ساختمانهای موردضرورت دیگر نیزدرساحه های مختلف اعمار شده است .

## شاپ ترمیماتی :

این شاپ از بدو تاسیس تاکنون آلات و سامان تخنیکی از قبیل ترکتورهاو غیره را بقدر امکان ترمیم و اصلاح نموده است .

## شعبهٔ نسلگیری :

۱ - دستگاه لبنیات این دستگاه مشتمل از ماشین پاستورائیزرشیرهموجنائیزر قیماق کشی ، مسکه کشی ، پنیر سازی ، شیر یخ سازی ، قالب نمودن مسکه ، بوتل شویی ، سردکنندهٔ شیر ، تانك ذخیره بایلر و ماشین های سرد خانه به مقصد ذخیرهٔ تولیدات و محصولات دستگاه میباشد که فعالیت های آن جاریست که ظرفیت این دستگاه بصورت عموم روزانه ۱۰۰ گلین شیر میباشد .

همچنین در تربیهٔ گاو ها از نسل دورکه علی الخصوص بین برونسویس ووطنی نتیجهٔ خوبی از لحاظ تولیدات شیر، گوشت و قلبه بدست آمده و بهاثر این مفکوره از جوانه گاو های نو برونسویسی - ساهیوال - ترپارکر نسلهای دورگهاخذ و نسل های مذکور هم قسم خالص نگهداری میکردد .

در سال گذشت در تعداد گاو های شیری ۱۵ فرد اضافه شده و باینصورت مقدار تولیدات شیر چه از لحاظ تغذیهٔ مناسب و چه از مدرك علاوه شدن این گاو ها ۳۰ فیصد بلند رفته است .

تعداد نرگاو های که برای ناقل در ۹ ماه گذشته توزیع گردیده به ۷ - فرد نرگاو میرسد و همچنین به تعداد یازده فرد دیگر بغرض فروش در بازار عرضه شده است . همچنان بتعداد ۲۴ فرد گوسالهٔ نرو ۲۵ فرد گوسالهٔ ماده دو جریان سال تولید و تربیه شده است .

از برج حوت ۴۱ - الی ۱۵ جوزا ۱۳۴۲ به تعداد ۶۵ بیضه تخم مرغ خانگی از نسل نیوهمشیرو ۵۶ بیضه تخم مرغ آبی از نسل وایت پیکنگ‌دگک که نتیجهٔ خوبی داده به اهالی غرض انتشار وازدیاد نسل بفروش رسانیده شده است .

همچنان در اخیر برج حوت ۴۱ به تعداد ۸۰۰ قطعه جوجهٔ یك روزه از نسل وایت لگهارن ذریعهٔ کمك های خارجی امریکا از بیروت تورید وتحت تربیه گرفته شده است .

## پلانهای آیندهٔ تربیه مرغ :

۱ - تربیهٔ مرغ خانگی به مقصد تجارت و اهمیت اقتصادی آن وسعت داده میشود در نظر است که به تعداد چهل و پنجهزار بیضه تخم جوجه کشی شده و تعداد زیاد آن بعد از مدت هشت هفته به فروش رسانیده شود .

۲ - دو پایه ماشین جوجه کشی هر یك به ظرفیت ۲۵۰۰ بیضه تخم با یك تعداد وسائل ضروریهٔ پرورش جوجه از طریق اداره همکاری بین المللی امریکا وارد شده است .

۳ - چهار تعمیر برای چوجه کشی و تربیه تخم گذاری مرغها تحت ساختمان بوده و در ششماه آینده تکمیل میگردد .

٤ - همچنین یك پایه جنریتر دیزلی به نزدیك تعمیر مرغخانها بغرض استفاده در مواقع ضروری تهیه و نصب میگردد تا در صورت بروز خرابی در برق آبی ازان استفاده شود .

شعبهٔ نسلگیری در عرصهٔ پنجسال گذشته بنابر انتخاب و جوره نمودن قچ های سفید ومطلوب یك تعداد گوسفند های بدست آورده که رنگ و پشم آنها سفید ووزن پشم حاصله بطور اوسط چهارونیم پاو و همچنین مقدار گوشت آنها از ۱۰ الی ۱۵ پاو زیاده تراز دیگر گوسفندان اصلاح ناشده میباشد .

شعبهٔ نسلگری فعلا به تعداد ۴۲ فرد قچ های سفیدوقوی الجثه را برای نسل گیری مالداران جهته فروش آماده کرده است .

بمنظور تربیهٔ حیوانات شعبهٔ نسلگری در حوزهٔ نادعلی - مارجه یك یك اراضی را بصورت فارم تجربوی جهت تهیهٔ علوفهٔ حیوانات تحت استفادهٔ خویش قرار داده تا بدینوسیله علوفه موود ضرورت را حاصل بتواند کرد .

همچنین این شعبه در نتیجه یك تعداد اسپ های مورد وزارت دفاع ملی وتولید قاطر جهت ضرورت دهقانان ساحهٔ وادی هیرمند مصروف فعالیت بوده، یك تعداد نسل

خارجی را جهت بهتر ساختن نسل های وطنی تو رید وهم نسل های بهتر و طنی را از دیگر مواضع بدست آورده است .

### فارمهای تجربوی :

این شعبه ۷٦ نوع گندم و جو داخلی و خارجی رادرتجربگاه های بولان ومارجه تحت تحقیق و تجربه قرار داده است .

همچنان از ۲۷ نوع علوفه در تجربگاه مارجه از ۱٦ نوع بولاف در تجربگاه بولان ، از ۲۱ نوع رشقه زرع شده در تجربگاه مارجه نتایج مفید و مثمری حاصل شده است .

### دستگاه ساختمانی افغانی :

این دستگاه در پهلوی اجراآت روزانهٔ خود بقوت وسایل دستداشته عصری و کارکنان ورزیدهٔ خویش در ساحهٔ انکشاف اراضی مثل احداث کانالها، حفر چاههای عمیق ، بر چاله ، جویها و انهار عملاً کارهائی کردة است همچنان ساختمان پل های دلاآرام ، فراه رود ، جیجه ، شنیز نهرهاشمی ومراقبت سرکهای مربوط بداخل پروژه از اجراآت عمدهٔ و قابل تذکر این دستگاه میباشد .

علاوةً یکتعداد عمارات و ساختمانهای عصری خرد و بزرگ در نقاط مختلف پروژه های مربوط اعمار شده که برخ آن تکمیل و بعضی آن در شرف اکمال میباشد .

### توسعه و تقویه کمپ های ساختمانی :

اصلاح ـ تقویه و ازدیاد در بنا ها و تسهیلات کمپهای چاه انجیر ، درویشان تارنك سراج و منزلباغ که ممد اجراآت اساسی وعمدهٔ دستگاه است از مفردات پلان است .
دو منزل رهایش درسال ۱۳٤۱ تکمیل گردیده است ـ یك خانهٔ دیگر یکه در لشکرگاه تعمیر آن در سال ۱۳٤۲ آغاز یافته بود تا اسد ٤۲ هشتاد و پنج فیصد تکمیل شد و در عین حال کار دو خانهٔ دو منزلهٔ دیگر جریان دارد .

### تانك های ذخیره پترول و دیزل چاه انجیر :

اعمار تانك جدید ذخیره پترول در داخل چاه انجیر در سال ٤۱ تکمیل یافت .
حصار سیمی قسمت شمالی کمپ که قبلاً غرض سهولت تعمیر تانك بر داشته شده بود دو باره نصب گردید و هم بطول یك کیلو متر زا بر جدیدی در قسمت شمال چاه انجیر غرض دفع سیلابهای دشتی تکمیل شده است .

### دستگاه مولد برق گرشك وسیتم توزیع آن :

ترمیم جنریتردوم استیشن برق گرشك تکمیل و پنج ترانسفارمر ۱۵ کیلوواته در شهر لشکرگاه نصب گردید. لین دوانیی محبس لشکرگاه، پل لشکرگاه، تانك سابق آب وعمارت جدید که نزدیك تانك نمبر ۲ واقع است بالاین ۳۳۰۰ ولته درسه قطار که هریك بطول ۱۱۷۰ متر باشد نیزانجام داده شده است .

سیم ۲۲۰ والته بطول ۷۳۱ درعمارات جدید الاحداث امتداد یافته و چند عدد ترانسفارمرهای ۲۵ کیلو واته نیز نصب گردیده است.

## ترمیم مجدد کانال بغرا:

از جملهٔ مفردات این پروژه که ترمیم و استرکاری چهارده کیلومتر کانال بغرا و پانزده کیلومتر کانال مارجه و ترمیم قسمت سنگکاری سربند بغرا ترمیم کانال درویشان و کانال هزار جفت را احتوا میکند کار پالاکاری بغرا از ستیشن ۱۰۰-۶۶ تا ۶۰۰۰-۷۰ بغرا درسال ۴۱ الی اخیر جوزای ۱۳۴۲ انجام شده است.

خاك مناسب برای استرکاری کانال بغرا جستجو شده است ومحل دو کانال بای پاس برای قسمت شرقی مارجه نیز تعیین گردیده است.

پاك کاری کانال .......... ۴۵۰۰ متر.

## فعالیتهای مدیریت عمومی حفظ ومراقبت معاونیت تخنیکی:

### اپریشن و کنترول:

کنترول وعملیات روزمره بندهای کجکی وارغنداب برای مقاصد آبیاری عبارت است از بازرسی و نظارت دروازه های بند و تونل ها و نظارت مقدار آب در بندها وعملیات از دیاد و تنقیص جریان آب از بندها.

آب رسانی در پروژه های هیرمند وارغنداب توسط کانال های بغرا ، شمالان درویشان ظاهر شاهی ترنك صورت میگیرد این کانال ها تماماً دارای سربندهای اساسی است که بصورت فنی ساخته شده ودرطول کانال ها ساختمان های کانکریتی دیگر نیز از قبیل دروازه ها پرچا به ها و دهنه های نهرهای فرعی و شریعه های فرعی برای مقاصد آبیاری تعمیر شده است.

درطول سال گذشته شعبه آبیاری مطابق به احتیاجات زراعتی ودرخواست موظفان زراعت به پروژه های مربوطه آب رسانیده ودرعملیات و بهداشت شبکه های آبیاری داخل پروژه اهتمام داشته است.

این شعبه توسط موظفان آبیاری را پورهای مقدار آب مصرف شده را نیز در بعضی ساحات ترتیب وثبت داشته است:

### حفظ و ترمیمات:

این حصهٔ کار مراقبت فنی تمام دروازه های جرهای ثقیل ، توربین ها ، آلات برقی ، دهنه های و ترمیمات متفرقه ، بند ها ، کمپ ها ، کانال ها را دربرمیگیرد همچنین شامل ترمیم و مراقبت روزمره ومتمادی کانالها وزابر ها از قبیل لای کشی ورفع جا منك ولغ از کانالها وزابرها میباشد . مراقبت سرك های بازو ، زابر ها و کانال ها و تعمیر منازل دفاتر موظفان بند ها و کانال ها و آسیاب ها و تهیهٔ سنگ برای اصلاح خرابی آب بردگی درحصه های تحتانی وفوقانی بنا ها و ترمیم خود بناها نیز درآن شامل است.

**فعالیت های شعبهٔ صحت عامه هیرمند:**

درتمام شفاخانها ومراکز صحی وادی هرمند که۵۶ بستردارداراست پروگرامهای طب وقایوی کلینیک حمایهٔ مادران واطفال معاینه وتداوی اطفال (ذکور و اناث) ونیز پروگرام حفظ الصحه محیطی ووظایف کاربیج منظماً جریان دارد. نفوس این ساحه که عبارت (از ۱۹۰۰۰۰ نفرمیباشد، مراکز صحی مربوط حین مراجعهٔ مریضان بتداوی ومعالجه لازم شان میپرداززد.

**وارسی ازپروگرامهای وقایوی:**

عبارت از پروگرام مجادلهٔ ملاریا. مجادلهٔ حمای لکه‌دار. واکسینیشن های چیچك محرقه وکولرا. حفظ الصحهٔمحیطی وتبلیغات صحی. حمایه مادران واطفال میباشد که‌فعالیتهای مذکور بصورت متداوم دوام داشته است.

**مجادلهٔ حمای لکه دار:**

درظرف سال گذشته به‌تفصیل زیردرمساجد، مکاتب، منازل، دکاکین، بازارها محبس ها، هوتلها، واقامتگاهای ژاندارم وپلیس سرای‌ها، پوددری، دی، تی ده فیصد تطبیق گردیده است.

**واکسینشن:**

۵۷۵۵٤ نفر واکسین چیچك، ۲۹٤۰ نفر واکسین محرقه و۲۰٤ نفر واکسین کولرا شده اند.

**پروگرام حمایهٔ مادران واطفال:**

شیرپودری وروغنی، صابون وویتامین درد وهفته یك مراتبه طبق مقررات ریاست روزنتون ازشفاها ومراکز صحی بوسیلهٔ اشخاص موظف توزیع گردیده وراپورصرفهٔ آن مسلسل به‌ریاست روزنتون ویونیسف فرستاده شده است.

**حفظ الصحه محیطی و تبلیغات صحی:**

برای تعمیم مبادیات حفظ الصحه وتفهیم مسایل مراعات صحی آن باهالی وباشندگان این ساحه نشاندادن فلمهای صحی درمورد تربیهٔ اطفال استعمال آب نوشیدنی وحفر بیت الخلا هارهنمونی لازمه بعمل آمده است.

**معالجه وتداوی درشفاخانه هاو مراکز صحی:**

درپولی کلنیك مردانه لشکرگاه ۲۰۷۹۳ نفرمعالجه و تداوی شده اند.

**شفاخانهٔ مستورات**

بواسطهٔ این شفاخانه ۸۳۲۱ نفر زن وطفل معالجه گردیده اند.

**کلینیك امراض زهروی:**

بصورت عمومی مراجعینیکه اشتباهاً عوارض امراض زهروی داشته‌اندو نیز بلااستثنی تمام افرادیکه بحیث مامورو یامستخدم شامل کارشده اند مجاناً معاینات خون شان اجراً

( بقیه درصفحهٔ ۵۵٦ )

# د کلیو د پراختیا د ریاست تشکیل

رئیس ښاغلی عبدالوهاب ملکیار

اداري مرستیال « محمد سرور

فني مرستیال ښاغلی عبدالصمد بدخشي

د کلیو د انکشاف د عملي روزنې د مرکز

لوی مدیر ښاغلی میرمحمد اسمعیل راحل

اداري مدیر « غلام حسن صالحي

د پلټنې « « محمد کبیر سمیعي

د خپرونو « « غلام حبیب نوابي

د تعمیراتو « « غلام دستگیر سلطان

د ننګرهار ولایت

د پروژو لوی آمر « عبدالواحد نجم

د کلیو د پراختیا رئیس ښاغلی
عبدالوهاب ملکیار

# د کلیو د پروژې د پراختیا

## د ریاست فعالیتونه

لکه ټولنی د پراختیا پروګرامونه د څرنګوالي په لحاظ د دې څخه عبارت دي چه باید په دې لیاره کښې ټول وګړي د ژوندانه د سطحې د لوړونې لپاره په کومه اندازه چه د دوی توان او قدرت وي ګډ کوشش ته دوام ورکړي . او همدا راز د دولت له خوا د تخنیکي خدمتونو په باب د خلکو د تشویق په غرض د دغه سره مرسته او دغو ته بلنه مناوت ډیر زیات موثر ثابتیږي.

### د کلیو د پراختیا لومړنی پنځه کلن پلان او د هغه هدفونه په لاندې ډول دي:

۱ـ په کرهڼه کښې د عصري میتودونو او تکنیکونو د معرفي په وسیله د کلیوالو حقیقي ګټو او د تولیدي محصولاتو پرمخ بیول، د روغتیا او روغتیا ساتنه، کوپراتیفونه د کلیو د اوبو لاسي کارونه او داسې نور.

۲- دجماعتو نو جوړول او برابرول ،دښوونځیو جوړول اودخلکو دژوند دښه والی لپاره دتفریحی ځایونو جوړول اوداسی نور.

۳- په ځانونو کښی دمرستو او کومکو نو روحیه اوحس پیدا کول اود کلیوالو ترمنځ دهمکاری روحیه ژوندی ساتل ددی دپاره چه دخلکو داجتماعی اواقتصادی پرمختګونو ددایمی اساس بنسټ تشکیل کړی.

٤- د یوی داسی اداری جوړول چه د کلو د پراختیا په لپاره کښی دهغو په واسطه غړی وزارتونه و کولی شی چه د کلیوالو دژو ندانه دسویی دلوړیدو لپاره دمرستی او کومك په غرض خپل منابع ددوی داستفادی لپاره دوی ته وسپاری.

نو په دی وجه دټولنی دانکشافی پروګرامونو اصلی غایه اوهدف یوازی د کلیو دخلکو ذهنیت بدلول او په دوی کښی په خپل ځان کښی داعتمادروحیه تزریقول اودښه ژوند اودژوند دښه والی آرزوده.

همدار از په دوی کښی دامفکوره پیدا کول چه د کرهڼی اومالداری د پرمخ بیولو په لیاره کښی ګډ کومکونو اوفعالیتونو ته التفات و کړی اود کلیو دجرګو جوړولو مرکزونه په نظرکښی و نیسی-د کلیو د پلانونو ترتیب اود کورونو اصلاح-روغتیا او دمحیطی روغتیا ساتنه- تعلیم اوتر بیه او اساسی تعلیمونه، واله صنایع او اجتماعی بهبود ددی ټولنی عالی مرامونه دی.

او داټول فعالیتونه په موثر اومرتب ډول سره سرته رسیږی ی مقصدداچه د کلیو د پراختیا په هره پروژه کښی په بیلو بیلو چارو کښی فنی کارکوونکی د پروژی د آمر تر اثر لاندي کار کوی چه ددوی دغه فعالیتونه او کاردفکر په وحدت او نظرسر ته رسیږی.

د کلیو د پراختیاټولنه داول ځل لپاره د یوی کلیو الی اوازمتیا پروژی په شکل په دوه کلیو کښی (شیوکی اوده یعقوب) په امتحانی ډول د۱۳۳۳ کال داسد په میاشت کښی د پوهنی، روغتیا، کرهنی، اجتماعی بهبود اوروستائی صنایعو د یو لړ ګټورو عملی فعالیتونو دښودنی په غرض منځ ته راغله.

دغه پروګرام ډیر ژر خپل اهمیت ثابت کړ ی شو او و ر سر ه د لو مړ نی پنځه کلن پلان درانګ سره یی دیوملی پر وګرام شکل ځان ته پیدا کړ- او کال په کال یی پراختیاومو نده لکه چه د۱۳٤۱ کال تراخره دهیواد په نسبتاً وروسته پا تی سیمو کښی یوولس پروژی جوړی او په کار واچول شوی اولادوام لری، په روان کال کښی دری پروژی نوری پری زیا تی شوی چه ټولی څوارلس پروژي کیږی.

د دی دریو پروژو مقدماتی اړتیاوی پو ر ه شو ی او د پر ا نیستو په شرف دی

مربوطی پروژی په لاندی ډول دی:

| شماره | د پروژی ځای | د تاسیس نیټه یی | د کلیو شمیر | نفوس یی |
|---|---|---|---|---|
| ۱- | دشیوکیو پروژه | د۱۳۳۳-اسد | ۱۱٤- کلی | -۳۳۷٦۱ تنه |
| ۲- | دلوګر لومړی پروژه | ۱۳۳۵-دثور | ۱۱۳ » | ۳۹۲۱۵ » |

| پروژه | نېټه | کلي | تنه |
|---|---|---|---|
| ۳- د پروان د سیدخیلو پروژه | ۱۳۳۸- د حمل | ۱۲۰- کلي | ۵۲۲۳۸ تنه |
| ۴- د لوګر د ووهمه پروژه | ۱۳۳۸- د ثور | -۹۱ » | ۵۶۷۵۹ » |
| ۵- د نورستان د لنډۍ سیند پروژه | ۱۳۳۸- د میزان | -۳۸ » | ۱۶۰۸۰ » |
| ۶- د ځاځي میدان پروژه | ۱۳۴۰- د ثور | -۱۳۷ » | ۴۳۵۳۵ » |
| ۷- د ننګرهار د پېچ ددرې پروژه | ۱۳۴۰- د جوزا | -۹۴ » | ۴۴۶۵۰ » |
| ۸- د غزني د اندړو پروژه | ۱۳۴۰- د ثور | -۲۷۰ » | ۳۱۹۴۶ » |
| ۹- د کندهار د پنجوایي پروژه | ۱۳۴۱- د اسد | -۳۴ » | ۷۸۱۳۰ » |
| ۱۰- د بدخشان د اشکاشم پروژه | ۱۳۴۱- د سنبله | -۸۲ » | ۳۰۹۸۳ » |
| ۱۱- د بامیانو د یکاولنګ پروژه | ۱۳۴۱- د اسد | -۱۷۶ » | ۵۲۲۰۰ » |

په روان کال کښې نوری درې پروژې په لاندې ډول کښې پرانستل شوي دي .

| پروژه | کلي | تنه |
|---|---|---|
| ۱۲- دورډکو پروژه | ۶۵۹ کلي | -۷۴۸۴۷ تنه |
| ۱۳- د بامیانو د پنجو پروژه | -۳۷۱ » | ۸۸۹۴۰ » |
| ۱۴- د پکتیا د ځمکنیو پروژه | -۱۱۷ » | ۲۴۶۱۰ » |

ددغو پروژو عمومي شمېر څوارلس او دکلیو شمېر یې (۴۲۱۳) او د نفوسو شمېر یې (۶۴۳۲۸۴) تنو ته رسیږي . او د بدخشان د جرم او د ننګرهار د خوږیانو او د پکتیا د ارګون په سیمو کښې مقدماتي چارې بوره سرته رسېدلي دي او په راتلونکي کال کښې به دکلیو دانکشاف دوزلني لهخوا په دغو دریو برخو کښې یوه یوه پروژه جوړه شي .

## تعلیم او تربیه:

دکیلو د پراختیا ریاست د فني اشخاصو په روزنه او ددې مؤسسې د تخنیکي معیار د لوړولو په برخه کښې خاصه پاملرنه کړې ده او ددې ریاست د پروژو د پراختیا لهپاره یې د ضرورت په وخت کښې مسلکي کورسونه هم دایر کړي دي .

باید وویل شي چه دغه کورسونه اغلباً دګلزار د ملي تربیې په مرکز کښې چه ددې څو کلنو په موده کښې سرته رسېدلي دي دایر یږي . ددې مرکز دوداني ظرفیت او د تدریس د اساتیذ او او سیدو لپاره د (۲۵۰) تنو ګنجایش لري سربېره پردې د کنفرانس خونه د ننداری خونه د نمایشو خونه او یو جماعت هم لري . او د هغې د کرهڼې د بزغلي ځمکه تقریباً او یا جریبه ده چه د هغې یوه برخه مختلف بزغلي او نیالګي هر کال د هقانانو ته و یشل کیږي او د هغې یوه برخه نور د تخمونو په لحاظ په مخصوص ډول تجربه او اصلاح شوي دي چه د شاګردانو له خوا صورت نشي او د کرهڼې د عصري او نوو آلاتو په وسیله انجام موندي او په راتلونکي وخت کښې به د مرغانو او ځارویو د روزنې له پاره هم [illegible] امونه

په کار واچول شي ـ او د نجارۍ ورکشاپ به په همدې ځای کښې دایر شي او د آهنګرۍ ورکشاپ هم په نظر کښې دی .

الف: ـ د کلي کارکوونکي: ـ د کلیو کارکوونکي چه د کلیو د خلکو سره یې کار کوي او د نیږدې والي وسایل د کلیو د خلکو د دولت د فني دستګاو ترمنځ برابروي او د هري سیمې ځنځه چه د پروژې د تاسیس لپاره په نظر کښې وي پنځه لس تنه او ځینې د سیمې د پراختیا په له نقطه نظره د دې ځنځه زیات د ښځو مو ټولګیو فارغ التحصیلان ټاکل کیږي او د روزنې مرکز ته راوستل کیږي او اغلباً د تعلیمي دورې د پای ته رسولو نه وروسته چه د پروژې د شروع کیدلو سره مصادف وي بیر ته خپلو سیمو ته لیږل کیږي چه هلته د کلیو د کارکوونکو په حیث کار وکړي . په دې ترتیب د کلیو د کار کوونکو د کورس شپږمه دوره چه د شاملینو شمیر یې (٥٦) تنه دی د وام لري او دغې مشمولین چه د ۱۳٤۲ کال په اول وخت کښې فارغ شوي دي په کار ي شروع کړي او وظیفې ورته ټاکل شوي دي. او شل تنه د ورد ګوله حصې ځنځه تعیین شوي او همداراز د پکتیا د ارګون او زنګرهار له خوږیانو ځنځه پنځلس تنه په همدې ورځو کښې د انتخاب او د روزنې په مرکز کښې د روزنې لاندې نیول شوي دي .

ب: ـ د اساسي تعلیماتو منتظمین: ـ د کلیو په ټولنو کښې د ښوونکي مقام ډیر لوړ دی او کولی شي چه د کلیو د پراختیا د پروګرامونو د پرمخ بیولو په لیاره کښې په عملي شکل په ټولنه کښې د ښوونځي مفکوره تقویه او په محیط کښې د درسي پروګرامونو په تطبیقولو کښې مهم رول ولوبوي .

نو په دې وجه د کابل د دارالمعلمین د وروستي ټولګي د بیلو بیلو ګروپونو شاګردان د روزنې مرکز ته راځي او د رسي مخصوص پروګرامونه یا د ټولنې مشرولی او یا یې په اساسي تعلیماتو کښې تعقیبوي او په دې موده کښې د (٥٨) تنو په شمیر ډلې ډلې راغلي او دري میاشتني کورسونه یې تعقیب کړي دي او یو کورس چه د شاملینو شمیر یې (۱۸) تنو ته رسیږي شروع دی.

ج: ـ امدادي فني اشخاص: ـ د صنعتي همکارۍ پورې مربوطو چارو د اداري د تنظیم په برخه کښې د فني اشخاصو د روزنې او برابرولو لپاره دیو کلنې کورس په تعقیب چه یوولسو تنو لپاره چه د دولسم ټولګي فارغ التحصیلان و دایر شوي و د ۱۳۳۸ کال د حمل په میاشت او د ۱۳۳۸ د حوت په میاشت کښې د وهم کورس چه د شاملینو شمیر یې اته تنه ؤ د ۱۳٤۱ د عقرب له میاشتې راپه دې خوا دوام لري .

د ټولنې د پراختیا د پروګرامونو سره د فني اشخاصو اشنا کول :

د دې لپاره چه کوم فني خلک چه په پروژو کښې کار کوي د ټولنې د پراختیا خاصو پروګرامونو د هدف او څرنګوالي ځنځه په ښه توګه خبر شي ترڅو د پروګرام پراختیا او اتمام په نظر کښې ونیسي او د یو واحد ټیم په صورت وظیفه اجرا کړي

هغه کورسونه چه په دې موده کښې دایر شوي دي په لاندې ډول دي:

| کال | دشاملینو شمیر | دوره | دکورس شاملین |
|---|---|---|---|
| ۱۳٤۱ | ٤۰ تنه | درې هفتې | فنې کارکوونکي او آمران |
| ۱۳٤۱ | ۱٤ » | » | » » » |

هـ:- دکیلو د پروګرامونو سره دمشرانو اشنا کول:- له دې امله چه دکلیو دځوانانو دخلکو د پراختیا پروګرامونه د خلکو په وسیله او دحکومت په مرستې پوري تړلي دي نو له دې وجې څخه دې دکیلو مشران د دې پروګرامونو په پرمخ بیولو کښې پوره ونډه ولري. او د پروګرام اصلي او مهم هدف ته په صحیح صورت سره ددوی داخلیدل او پوهیدل دموفقیت پوازنې لیاره ده، ددې غرض لپاره دکیلو دلویانو لومړی کورس چه د شاملینو شمیر یې (۴۷) تنه وو ددوه هفتو لپاره دایر شو. ددې کورس شاملین دشیو کپو د پروژې دکلي دجرګې غړي منشیان، رئیسان او معاونان و.

و: دحرفت کورسونه:- دروزنې په مرکز کښې د ترکانۍ ورکشاپ جریان لري او دزده کړې په ترڅ کښې د روزنې دمرکز شاګردان د پروژو دضرورت او احتیا وړ شیان په ساده ډول جوړوي مخکښې دوه دوري فارغ التحصیلان دغه کورسو څخه فارغ شوي دي او پخپلو کیلو کښې په کار بوخت دي.

دقاپه کارۍ کورس چه دشاملینو شمیر یې لسو تنو ته رسیږي تیر کال جوړ شوي دي او دوام لري. دا کورس په چار یکارو کښې دي.

## روغتیا پالان:-

دروغتیا دمحترم وزارت په همکاري دمحیطي روغتیا د ساتنې د پروګرامو دپرمختګ لپاره روغتیا پالان تر روزنې لاندې نیول شوي دي. په دې ترتیب چه د پروژو دضرورت وړ نفر د کیلو د پراختیا د ریاست په لګښت دروغتیا پالانو په توګه کښې تر روزنې لاندې نیول شوي او وروسته د تعلیمي دورې د پای ته رسولو نه په مربوطو پروژو کښې په کار شامل کړی شي.

## دښځو او نارینه ؤ ښوونکو روزنه:

په ځینو پروژو کښې دمربوطو ښوونځیو لپاره دښځو او نارینه ؤ ښوونکو دروزنې په غرض دلنډې مودې لپاره کورسونه جوړ شوي دي چه له یوې خوا دځوانانو د پراختیا مفهوم او فلسفه او له بل پلوه دتدریس اصول زده کړي. تر اوسه دا ډول درې کورسونه جوړ شوي او هم دا راز د پروژې دښځو ښوونکو لپاره یو سیمینار جوړ شوي دي.

فیلو شپان او سکالر شپان:

ددې ریاست دتخنیکي او مسلکي معیار د لوړولو له پاره تر کومې اندازې چه ممکنه وه دملګرو ملتونو دسازمان او دهغه داختصاص موسسو او دځینو بین المللي موسسو دفلیو شپانو څخه استفاده شوې ده. لکه چه پوهیږو ددې ډول تعلیمي فرصت څخه استفاده

ددل آرام او گرشک ترمنځ دمارګي ددښتې ژوره ځاچه دلويديز ليري
دپروژې له مخې په او به نه لرونکو ځايو کښې کيندل کيږي

د حمل ۳۰ ـ د کابل په پو هنتون کښې د تألیف او ترجمې یوه نوی شانګه پرانستله شوه .

حمل ۳۱ ـ داقتصادی او اجتماعی شوری په غونډه کښې د ملګرو ملتو په مؤسسه کښې د افغانستان د نماینده تعدیل نامه تایید شوه .

د ثور لومړی ـ سل عرادی تراکتورونه په د کرهڼې د وزارت له خوا په کار واچول شی

د ثور ۲ ـ په افغانستان او هند کښې د ایران کلتوری آتشی ښاغلی محمود تفضلی له ښاغلی پېنوا سره د پېژند ګلوی کتنه وکړه .

د ثور ٤ ـ ثور ـ د هو قلمداری ښوونځی د پوهنی د وزارت له خوا تأسیس او زده کوونکو یې په زده کړو پیل وکړ .

د ثور ۵ ـ ښاغلی ګل پاچا الفت د قبائلو د مستقل رئیس په حیث مقرر شو یدی .

د ثور ۵ ـ ښاغلی میرامین انصاری د بـا میانـو د اعـلی حکومت د کفیل په حیث مقرر شویدی .

د ثور ۵ ـ ښاغلی سید شمس الدین مجروح ، ښاغلی الفت د قبایلو د ریاست ماموریتو ته ورمعرفی کړ .

د ثور ۷ ـ د پغمان د نجونو کلیوالی ښوونځی ابتدایی ښوونځی ته جګ شو .

د ثور ۷ ـ د اساسی قانون د مطالعی د کمیټې په پنځمې غونډې کښې د فرعی جرګه کی کښې ربوټ واوریدل شو .

د ثور ۷ ـ د هالیند وزیر مختار ښاغلی لرتس وان ېلاك پرون له ښاغلی صدراعظم سره د پېژند ګلوی کتـنه وکړه .

د اساسي قانون د مطالـعي د کمیټې په پنځمه غونډه کښې د فرعی جرګه کی ربوټ واوریدل شو .

د ثور ۸ ـ د ابن سینا د موسسې د اکسریز نوی دستګاه پرانستله شوه .

په راتلونکی وخت کښې به د میرمنو د ټولنې نماینده ګی په ځینو نورو ولایاتو کښې هم جوړی شی .

د ثور ۸ ـ دغلې د تهیې د ریاست له لاربښوونې سره سم به د غنمو د نوی فصل تر رسیدلو پوری د کندهار ، هرات ، فراه او ګرشك له ګـدامونو څخه خلکو تـه د ضر ورت ورغنم ور کړل شی .

د ثور ۹ ـ د وزیرانو مجلس د ار تزاقی موادو د بیهو په باب یو لړ تد بیرونه ونیول .

د ثور ۹ ـ د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د فرهنګی روابطو د همکاری پروګرام موافقت لیك لاسلیك شو .

د ثور ۹ ـ له ښاغلی صدراعظم سره د اسو شیتید پرس د خبریرسولو د آژانس نماینده ښاغلی براتر اختصاصی مرکه وکړه .

د ثور ۱۰ـ دافغانستان او فرانسې د دواجوړ ولو او طب د پوهنځیو ترمنځ دنږ دی همکاری تړون لاسلیک شو .

د ثور ۱۱ـ پښتنی تجارتی بانک د لګ لګ خانی سیلا و ځپلو ته سل زره افغانۍ بسپنه ورکړه .

د ثور ۱۱ـ له ایرانی مربوطو مقاماتو سره یې دافغانی هیأت د ترانزیت د یولړ مربوطو موضوعاتو په باره کښې خبری اترې په زړه پوری و بللی .

د ثور ۱۲ـ ښاغلی بېنوا په قاهره کښې دافغانی لوی سفارت داطلاعاتو دادارې د آمر په حیث مقرر شویدی .

د ثور ۱۳ـ دمطبوعاتو په قانون باندې د بیاکتنی له پاره د دکتور پوپل تر ریاست لاندې یو کمیسیون تشکیل شویدی .

د ثور ۱٤ـ شهریاری ذات داختر امو نغ د شاهی ارګ په جومات کښې ادا کړ او په شاهی سلام خانه کښې یې د نمایندګانو او مامورینو دمبارکی عرض ومانه .

د ثور ۱۵ـ دسګرټ جوړولو دفابریکې پروژه دتجارت دوزارت تر کتنې لاندې ده .

د ثور ۱٦ـ په افغانستان کښې به دحقوق پوهانو یوه ټولنه جوړه شي .

د ثور ۱٦ـ دننګرهار دطب په پوهنځی کښې به دلومړی کال دپاره ترپنځوسو تنو زده کوونکی شامل شي .

د ثور ۱۷ـ ښاغلی ملکیار ددرو پښانو د سیمی دپښې دکرهنې فارمونه و کتل

د ثور ۱۸ ـ دصدراعظم او خارجه چارو دوزیر له خوا داحمد خمیستی دمړینې په مناسبت دالجزایر د صدراعظم ښاغلی بن بلا په عنوان دتعزیت تلګرام مخابره شویدی .

د ثور ۱۹ـ دکابل دهوایی میدان ترمینل د صدراعظم په واسطه پرانستل شو .

د ثور ۲۰ـ جلالتمآب دهند جمهور رئیس کابل ته راغی .

ښاغلی «حکیمی» دهرات دولایت دنائب الحکومه په حیث مقرر شوی دی .

ددواجوړولو د طب دپوهنځی دلابراتو ارو نودوداني کار به ژر بشپړ شي .

د ثور ۲۱ـ دهمایونی اعلیحضرت ګران میلمه جلالتمآب د هند جمهور رئیس کابل هوایی ډګر ته راورسید او د ګران ټولو اك له خوا یې تود هرکلی وشو .

د ګران ټولواك له خوا دوی د ګران میلمه په ویاړ میلمستیا شوی وه .

د ثور ۲۲ـ دهند دجلالتمآب جمهور رئیس په ویاړ دښاغلی دکتور محمد یوسف صدر اعظم له خوا په کابل هوټل کښې میلمستیا شوی وه .

د ثور ۲۳ـ دهند جلالتمآب جمهور رئیس پرون د ګلبهار د نساجی فابریکه وکتله .

دافغانستان او د المان دفدرالی جمهوری دولت ترمنځ دفرهنګی روابطو موافقت لاسلیك شو .

۲٤ـ تجارتی محکمې دعدلیې په وزارت پوری مربوطې شوی دی .

جلالتمآب د هند جمهور رئیس د پوهنتون د منسوبینو پاغو نډه کښی گډون وکړ.
جلالتمآب رادا کرشنان د هند دولتی سفارت د نوی ودانی د بنسټ ډبره کیښوده.
د ثور ۲۵- جلالتمآب د هند جمهور رئیس گران قولواک سره خدای پا منی وکړ.
د ثور ۲۶ - د هند جلالتمآب جمهور رئیس پرون له کندهار څخه تهران ته لاړ.
د ثور ۲۸- د اساسی قانون د کتنی د کمیټی په اوومه غونډه کښی د فرعی کمیټی راپوټ
واوریدل شو.
د ملی شوری د یو ولسمی دوری د در یم کال لومړنی عمومی غونډه پرانستله شوه.
افغانی پهلوانان په هند کښی له یو لړ مسابقو وروسته بریالی کابل ته راستانه شول.
په واشنگټن کښی د افغان ملی جامو پوستی ټکټونو د ارتیستانو د تقاشیو ننداړتون
د افغانی لوی سفیر ښاغلی میوندوال له خوا پرانستل شو.
سږ کال یونیم لك افغانۍ څخه زیاتی مطبوعاتی جایزی ورکول کیږی.
د ثور ۳۰- د افغانستان او پاکستان نمایندگان په تهران کښی سره وگوری.
د ثور ۳۱- د دریای پنج د پاسه د هید رومتریك د کارو د پای ته رسولو پروتوکول
د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ لاسلیك شو.
د ثور ۳۱- د مطبوعاتو په قانون باندی د بیاکتنی کمیسیون د دکتور پوپل په مشری
غونډه وکړه.
د ثور ۳۱- د افغانستان او پاکستان نما ینده گان به په تهران کښی سره وگوری
او په نظر کښی د چه د مطبوعاتو وزیر ښاغلی رښتیا، دخارجه چارو د وزارت معاون
ښاغلی نوراحمد اعتمادی او د خارجه وزارت د سیاسی روابطو مدیر ښاغلی عطا الله
ناصر ضیاء دهمدی مقصد لپاره تهران ته لاړ شی.
د جوزا ۱- د داخله وزیر ښاغلی سید عبدالله مستعفی او ښاغلی دکتور عبدالقیوم
د مخابراتو د وزارت پخوانی کفیل دهغه وزارت د کفیل په حیث مقرر شو.
د جوزا ۲- د مطبوعاتو وزیر ښاغلی رښتیا له خپلو ملگرو سره تهران ته لاړی.
د المانی بانك هیأت په افغانستان کښی د دوو یو سیلو گانو د جوړولو هیله
ښکاره کړه.
د جوزا ۳ - د افغانستان او پاکستان ترمنځ د روابطو د بیا ستقرار په باره کښی
د اعلیحضرت همایون د ایران د شاهنشاه د جمیله کوښښونو په اثر تاکل شو یده چه د افغانستان
او پاکستان وزیران په تهران کښی سره گوری.
د جوزا ٤- افغانی او پاکستانی هیأتونه د اعلیحضرت د ایران د شاهنشاه حضور ته ورغلل.
د جوزا ٤- د پوهنتون علمی مناظری به ژر شروع شی.
د جوزا ٥- د افغانستان او پاکستان د هیأتو په ویاند د ایران د خارجه وزیر له خوا
میلمستیا شوی وه.

دجوزا ۵ـ داساسی قانون دکتنی جرگه کی اتمه غونډه وکړه .

دجوزا ۵ـ یوفرانسوی‌قانون پوه کابل ته راو رسید

دجوزا٦ـ دهیواد دخپلوا کی د بیرته راوستلو پنځه څلو یښت کالیزه مراسمو په ټول هیواد کښی تجلیل شو .

د جوزا ۷ـ دافغانستان او پاکستان تر منځ بیر ته سیاسی، قونسلی او تجارتی روابط برقرار شول .

دجوزا۹ـ دمطبو عاتو وزیر دتهران غونډه بریالی وبلله .

دجوزا۹ـ دمرکزی لابرا توار ودانی پرون افتتاح‌شوه.

دجوزا۱۲ـ دکورونو جوړولو فابریکه دپر اختیا په حال کښی‌ده .

د جوزا ۱۳ـ ښاغلی صدراعظم دشوری وکیلانو ته دخپل حکومت دکړ نلاری په برخه کښې تو ضیحات ورکړ ل .

دجوزا۱۳ـدوزیرانو دمجلس له‌خوا د۴۲ کال بو دجه تصو یب شوه.

دجوزا۱٤ـملی‌شوری دښاغلی‌دکتورمحمد یوسف کابینې‌ته‌داعتمادرأیې ور کړي.

دښاغلی صد راعظم له خوا یو‌محل بیا دپښتونستان دو لس ملاتړ تا ییداو په‌دغه برخه کښی دافغانی ولس او خلکو دریغ ر و ښانه شوه .

۱٤ـ ښا غلی دکتو ر محمد یو سف صدر ا عظم د مما لجی د با ره و یلانا ته و خوځید .

ښاغلی انجنیر مساه دپترولوپلټنې ر ئیس د مخابراتو د وزات د کفیل په حیث مقرر شو .

دابن سینا دنوی کلینیك دپرانستلو لومړی کالیزه تجلیل شوه .

۱٦ـ د افغانی سری میاشتی نو ی تشکیلات او بودجه تصو یب شو.

دجوزا ۱۷ ـ دمطبو عاتو دقا نون دکتنی فر عی کمیته وټاکل شوه. دکندهار مخورو دری لکه افغانی سری میا شتی ته‌ورکړی ،

د جوزا ۱۸ ددوا جوړولو دپو هنځی دلابراتور دو دانی کار پای‌ته‌ورسید .

دمطبوعاتو وزیر ښاغلی رښتیاد کندهار مخوروته دکندهار دمطبوعاتو دپراختیا په‌باب کښی تو ضیحا ت و ر کړ ل . د ا سا سی قا نون دکتنې د کمیټی لسمه غونډه وشو .

دجوزا ۱۹ـ گران ټولواك پرون دسالنګ دعمومی واټ دکار جریان‌معاینه‌کړ دمطبو عا تو وزیر ښا غلی رښتیا دد ولتی مطبعی دنوی ودا نـی د کا ر جر یـا ن وکوت .

د جوزا ۲۰ ـ دکابل دامنیی قوماندان وویل چه دپو لیسو دستگاه د جنایاتو د کشفولو لپاره په هرډول‌مدرنو‌ساما نوځخه سنبا له شو یده .

دجوزا ۲۱- دکندهار دمیوی ساتلو او صادرولو فابریکه د تجارت د وزارت لهخوا پرانستله شوه

د جوزا ۲۲ - د پلان وزیر ښاغلی عبدا لحی عزیز دلشکرگاه نوی پل پرانست .

دجوزا ۲۲ - افغانستان له اقتصادی مرستو څخه په زړه پوری ګټه اخیستی.

دافغانستان او بلغار یا تر منځ د تجارتی موافقت لیك سندو نو سره تبا د له وشوه .

دجوزا ۲۳ - ښاغلی سلطان محمود غازی دملکی هوائی ریاست د کفیل په حیث مقررشویدی .

دجوزا ۲٤ - داوه څلویښت زرو ټنو په شاو خوا کښی غنم له امریکا څخه افغانستان ته راوړل کیږی.

دجوزا ۲۵- دګران ټولواك په بلنه جلا لتمآب برژنیف د میزان په نو لسم افغانستان ته راځی :

دننګر هار په ۵٦ زره جریبه مځکه کښی د کرهنی د وزارت له خوا زراعتی فارمونه جوړیږی .

دجوزا ۲۵ - دافغانستان اوولسی چین د سرحدی مسا یلو د موضوع په باب دخبرو اترو له امله دچین یو هیئت کابل تهرا ورسید .

دجوزا ۲۸ - دحقوقی مسئلو دتنظیم او قانون جوړولو نوی اداره تا سیس شو ه.

دجوز ۲۹ - ښاغلی دکتور محمد یوسف صدراعظم دسرطان په اومه نیټه دکابل لورته را خوځیږی .

دامریکاخلکو دګران ټولواك او معظمی ملکی دتاوده او پهزړه پوری هرکلی لیوال دی.

دجوزا ۲۹ - دمبر منو دټولنی تربیوی کنفرانسونه دعلیاحضرتی معظمی ملکی په پیغام پرانستل شو .

والا حضرت مار شال شاولیخان غازی دجوزا په ۳۱ نیټه دعلاج لپاره پار یس ته ولاړ . دمګرومتو داطلاعاتو اداری او په افغانستان کښی دملګرو ملتو نما ینده ښاغلی هیلنګ دافغانستان دعرفانی او نشراتی موسسواودمهم اطلاعاتو داداری ترمنځ نژدی مرستی یی ونمانځل .

په واشنګټن کښی دښاغلی میوندوال د ماموریت دوره پای تهورسیده .

لهواشنګټن څخه درارسیدلی خبر سره سم ښاغلی جان کـنیدی امریکاته دګران ټولواك اومعظمی ملکی مسافرت ددواړو هیوادو ددوستانه روابطو د پراختیا پهبرخه کښی اغیزه ناکه و باله .

دجوزا ۳۰- دکابل او پراګ ترمنځ د هوایی سرویس دښاغلی ګلبهار د ملکی هوایی ریاست مرستیال او دهوایی قوا او د ارکانو رئیس جنرال محمد آصف او دچکوسلواکیا سفیر ښاغلی جان چلک په واسطه پرانستل شو.

دجوزا ۳۱ - دنویو مدرنو طباعتی ماشینو د نصبولو و دانی چاری په یی راتلونکو د و کلو پوری بشپړی ی شی.

دفډی دروغتیا دموسسی نماینده دکتور تولی دمطبوعاتو له ښاغلی و زیر سره کتنه اودمطبوعاتو له خپر و نو څخه خوشی وکړه

د نساجی دعمومی ریاست د پلو رلو آمر ښاغلی محمد صالح حنیفی وو یل چه د دنساجی د فابریکو په تولید اتو کښی زیاتوالی راغلی دی.

د۱۳۴۲ کال دسرطان لومړی: والاحضرت د کابل قاتح دعلاج دپاره فرانسی ته وخوځید.

داساسی قانون دکتنی په دولسمه غونډه کی ځینی مهم موضوعات ترکتنې لاندی ونیول شول. دملی شوری دقوانینو دتدوین دداخله چارو دشکایاتو اودعریضواو ریدلو کمیسیون وټاکل شو.

دسرطان ۲-دامریکی دمتحد ایالتونو حکومت په بلنه دافغانستان یو پارلمانی هیئت په دامریکا متحد ایالتونه وګوری.

دعربی متحد جمهوریت لوی سفیر ښاغلی احمد فرید احمد ابو شادی دملی شوری له ښاغلی رئیس سره کتنه وکړه

دشوروی جماهیر واتحاد دښځودټولنی په بلنه دمیرمنو دټولنی له خوا دافغانستان دښځو په نمایندګی دنړی په کانګرس کښې دګډون دپاره مسکو ته یو هیئت وخوځید.

دملکی هوائی ریاست کفیل ښاغلی سلطان محمود غازی دځینو چار و له کتلو وروسته له میمنی څخه هرات ته وخوځید.

دسرطان ۳- دمیرمنو دټولنی دشیدوخښلو، پخلی او دکور دتدبیر کورس د والاحضرتی شاهدخت بلقیس په واسطه پرانستل شو.

دافغانی سری میاشتی ټولنی دختیز پاکستان مصیبت ځپلو ته لس ز ره پاکستانی رو پۍ ورکړی.

پهواشنګتن کښې دافغانستان دلوی سفیر په حیث دد کتور عبد المجید چه په توکیو کښې دهمایونی معظم اعلیحضرت پخوانی لوی سفیر ؤ اګریمان را رسیدلی دی.

دسرطان ٤: ګران ټولواك اوعلیا حضرت ته ملکه دهغی اعلامیی په اساس چه د ۱۹۶۲ کال داکتوبر په لومړی نیټه دهغی بلنی په باب چه دالمان دفدرالی دولت دجلالتمآب جمهور رئیس له خوا دافغانستان معظم ټولواك او علیا حضرتی ملکی

دفراه‌رود دسیند پل چه دلویدیز لین دپروژی په اساس ۳۷۵ متره اوږد جوړ شوی دی.

دکندهار ــ هرات اوتورغوندی دسرک یوه برخه هغه پلچه سنگی رباط ته څرمه نوی جوړ شویدی.

دادرسکن په برخه کښې دکندهار ، فراه او هرات نوی سړک چه دلویدیز لېن له خوا جوړ شوی دی

دهرات نوی هوټل چه دجوړولی کارنه ئی زر په زره بشپړ شي

نه رسمي بلنه ورکړې شوې وه د اسد په څوارلسمه نېټه اتحادي المان
جمهوريت ته ځي.

د برتانيې لوی سفير ښاغلی ارتر جميز د ګران ټولواك حضورته خپله اعتماد نامه
وړاندې کړه .

د سرطان ٥: د فغاني سرې مياشتې دټولنې عالي رئيس په غزني کښې د سرې
مياشتې دودانۍ د ځای له ټاکلو وروسته بېرته کابل ته راستون شو .

ميرمن رقيه ابوبكر دسرې مياشتې دټولنې دتبليغاتو دآمريت دكفيلې په حيث مقرره
شوې ده. داجرستان د شوونځي دودانۍ د بنسټ ډبره د هغه ځای د حاكم ښاغلي سليمان خيل
په واسطه کېښودله شوه .

د سرطان ٦ :

په واشنګټن کښې دافغانستان پخوانی لوی سفير ښاغلی ميوندوال کابل ته راورسيد .

والاحضرت شهزاده محمد نادر داستقلال دليسې د فارغ التحصيلانو ډيپلومونه
او انعامونه ورکړل.

ښاغلی پوهاند صديق الله رشتين د ادبياتو د پوهنځي استاد د پښتو ټولنې
د رئيس په حيث مقرر شو.

ښاغلی عبدالخالق واسعي د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې مدير د پښتو ټولنې
د مرستيال په حيث مقرر شوی دی .

دعيد العلم مدال چه دعربي متحد جمهوريت د رئيس ښاغلي جمال عبدالناصر له
خوا د پوليسو د ليسانسې دامنيه قوماندانۍ د ګوتې د نشان د څانګې آمر ښاغلي
عبدالستار سابې ليپاره پخوا منظور شوی ؤ هغه ته وروسپارل شو .

د سرطان ٧: په ملي شورى کښې دمطبوعاتو، روغتيا او معارف د چارو له پاره يو
کميسيون ټاکل شوی دی .

د کابل ښاروالۍ په اقدام بهژر د ښځو له خوا د واوي دښځو په ځينو جوماتو کښې
واخيستلی شي .

د ننګرهار دولايت دتجارت داتاقو دغړو په تصميم دانفرادي سوداګرو د پاره
د سوداګرۍ د پراختيار په باب لازم تجويزونه ونيول شو .

د سرطان ٨: ګران ټولواك دريشخور عسکرۍ قشله په مفصله توګه وکتله .

دافغانستان د پاچاهۍ دولت او د بلغاريا د ولسي جمهوريت ترمنځ دفرهنګي
همکارۍ يو موافقه ليك د پوهنې دوزارت دتدريسي معين ښاغلي دكتور محمد انس او
په کابل کښې د بلغاريې د دولت د لوی سفير ښاغلي لز ارتشکف له خوا لاس ليك شو.

د دولتي مطابعو رئيس ښاغلي کندهاري د طباعتي ماشينونو په بين المللي
نندارتون کښې د ګډون په غرض اروپا ته لاړ.

داساسی قانون دکتنی جرګې پهمقننه قوه پوری مربوطفصل ترڅیړنی لاندیونیو.
دسرطان ۹ :- ښاغلی دکتور محمد یوسف صدراعظم چهدجوزا په ۱٤ نیټه دمعالجې دپاره ویانا ته تللی ؤ له بشپړی روغتیا سره بیرته کابل ته راغی.
ښاغلی صدراعظم دګران ټولواك حضورته ورغی.
دیونان لوی سفیر خپله اعتماد نامه دګران ټولواك حضورته وړاندی کړه.
دافغانستان دشاهی حکومت او دامریکی ترمنځ دتخنیکی مرستو دتړون په اساس یو فرعی تړون لاسلیك شو.
دسرطان ۱۰ :- دپکتیا داقتصادی او اجتماعی اوضاع دښه والی په منظور به سودمن پلانونه دپلان وزارت له خوا تطبیق شی.
دجرم دنجونو دښوونځی دودانۍ دبنسټ ډبره دجرم دحاکم په واسطه کیښودله شوه.

دسرطان ۱۱ دکانو او صنایعو دوزارت له خوا ډول ډول سامانونه اوماشینونه کابل ته راسیدلی دی.

دآریانا دهوایی شرکت رئیس ښاغلی فیض محمد احمدزی دمرکی پهترڅ کښی وویل چه ژر دآریانا الوتکی بیا فرانکفورت ته خپلی الوتنې شروع کوی.
دسرطان۱۲:- دګران ټولواك له حضوره استاد خلیلی ته دوزارت القاب اومعاش منظور شویدی.
دافغانستان دتر لاس لاندی پروژو په باب دخبرو اترو لپاره دشوروی اتحاد یو هئیت کابل ته راغی.
دپکتیا دخلکو دژوندانه دسطحی دلوړولو په منظور سودمن پلانونه دکرهڼی پلان او دکانو او صنایعو دوزارتونو له خوا تر لاس لاندی دی.
دجغتو دترکان کلی دښوونځی دودانۍ دبنسټ ډبره دغزنی دا علی حکومت دپوهنی دوزارت پهواسطه کیښودل شوه.
دسرطان ۱۳ :- په کراچی کښی دلوی سفیر په حیث دجلالتمآب میوند وال اګریمان، په پیښور کښی د افغانی قونسل پهحیث دخارجه چارو دوزارت دآرشیف د لوی مدیر ښاغلی سید تاج الدین او په کویټه کښی د افغانی قونسل په حیث د خارجه چارو دوزارت دویزی دڅانګی دمدیر ښاغلی محمد ایوب عزیز اګواتور راسیدلی دی او ټاکل شویده چه ژر به په کابل او کراچی کښی د دواړو خواؤ سفارت خانی اوپه پیښور اوکویټهکښی افغانی قونسلګری او په چمن او پیښور کښیافغانی وکالت التجاریه تأسیس اوبهکار شروع وکړی.
دګران ټولواك لهارادی سره سم بهپه پکتیا کښی ګڅوری پروژی دکرهڼی، پلان اودکانو او صنایعو وزارتو لهخواتر تطبیق لاندې ونیول شی.

دسرطان ۱٤: له هغې پخوانۍ موافقې سره سم چه دافغانستان دمطبوعاتو دوزارت او په کابل کښې دعربي متحد جمهوریت دثقافتي مرکز ترمنځ لاسلیك شویده ژر به دافغانستان اوعربي متحد جمهوریت ددوستۍ ټولنې پر انیستل شي .

دسرطان ۱۵: ښاغلي ملکیار په ملي شورى کښې د٤۲ کال بودجه وړاندې کړه .

هغه هیئت چه پکتیا ته تللی و له ژور وکتنو وروسته بیرته کابل ته را ستون شو .

دسرطان ۱٦: ددولت د٤۲ کال پنځه ملیارده اوددرې دیرش ملیونه افغانۍ بودجه دملي شورى له خوا تصویب شوه .

دسرطان ۱۷: دګران ټولواك له حضوره دالمغرب دپاچا په عنوان د مبارکۍ تلګرام مخابره شو .

دقبایلو دمستقل رئیس ښاغلي ګل پاچا الفت د مخه بنې او دپښتو ټولنې دټولې رئیس ښاغلي رښتین دمقررۍ په مناسبت دهغه شپه په اتو بجو دپوهنې دوزارت دادارې معین ښاغلي الکوزي له خوا دهغه دوزارت په کلوپ کښې میلمستیا شوې وه چه په هغې کښې د پوهنې دوزارت اراکینو اودپښتو ټولنې منسوبینو ګډون کړی و .

دسرطان ۱۸: دملي شورا دقوانینو دتدوین دڅلور و دکمیسیون په پرونۍ غونډه کښې دملي دفاع دځوابونو په هغه برخه باندې غور او کتنه وکړه چه کمیسیون ته داحتیاط دضا بطانو داصولنامې دپروژې په باب رالیږل شوي دي، غونډه دښاغلي رحماني تر اثر لاندې شوې وه .

دپکتیا دولایت اوسنی انکشافي اواقتصادي پر مختګو نه دګران ټولواك دارشاداتو او دخلکو دزیار ایستلو په اثر دستایني وړدي .

په دوهم پنځه کلن پلان کښې دشوروي اتحاد دمرستې په باب خبرې اترې شروع شوې .

دمیدان مالد اروته دمصنوعي القاح فني لازمي چارې وروښودلې شوې .

دسرطان ۱۹: ګران ټولواك دقرغې عسکري قشله وکتله .

ـ ټاکل شویده چه دملي شوراد رئیس دوکتور عبدالظاهر په مشرۍ دافغانستان یو پارلماني هیئت نن د غرمې نه ورو سته په یوه بجه د امریکا دحکومت په بلنه هغه هیواد ته لاړ شي :

دسرطان ۲۰: دافغانستان پارلماني هیئت پرون امریکا ته و خوځید .

دالمان دااتحادي جمهوریت لوی سفیر ښاغلي ګیرهارد مولت من پرون خپله اعتماد نامه د معمو لو تشریفاتو سره سم دمعظم ټولواك همایوني اعلیحضرت حضور ته وړاندې کړه .

دسرطان ۲۱: د هرات او غزنی مخور دګران ټولواك د شرفیابۍ له امله کابل ته راغلل .

تراوسه پورې دشوروي اتحاد ۲۲ زره ټنه غنم افغانستان ته رارسیدلي دي .

دکتور محمود حبیبی دکابل راډیو د نشراتی ریاست د کفیل په حیث مقرر شو.

دسرطان ۲۲: دګران ځولواك لهحضوره دعراق اوفرانسی دملی ورځی پهمناسبت دمبارکی تلګرا مونه مخا بره شویدی.

دغزنی دښاراو شاوخوا سیمو مخورو دد لکشا پهماڼی کښی دګران ځولواك حضورته ورغلی ؤ.

ـښاغلی صدراعظم لهلوړی او بیسوادۍ سره دمجادلې په باره کښیدغزنی دخلکو مرستهوغوښتنه.

دهرات مخورو له ښاغلی ملکیارسره وکتل اوورو ستهلهغه یی مسلخ او سیلو وکتل.

دسرطان۲۳: دګران ځولواك حضورته دورتګ پهترخ کیدهرات مخورو له حکومت سره دهرډول مرستی وعده ورکړه.

ـدمطبوعاتو دقانون جرګی تهدفرعی جرګه ګی رپوت وړاندی شو.

ـدفرانسی دملی ورځی پهمناسبت دکابل پهدربار کښی دهغه هیواد دلوی سفیرله خوا پیرون دماز دیګر پهپنځو بجو دسفیر پهکور کښی یوهمیلمستیا شویوهچهغهته ښاغلی دوکتور محمد یوسف صدراعظم، دسلطنتی دربا وزیر ښاغلی علیمحمد، دکابینی غړی عالی رتبه عسکری او ملکیمامورین او پهکابل کښی دکورد یپلوماتیك ورغلیؤ.

دعراق دملیورځې پهمناسبت دهغههیواد په سفارت کښیمیلمستیا شوی وه.

دسرطان ۲٤: د افغانی پارلمانی هیئت به دامریکا بیلې بیلې سیمی او دم.م. مؤسسه وګوری.

افغانستان بانك سریمیاشتیته یوملیون اودری لکهپنځهځلو یښتزره نهه‌سوه‌او‌اتیا افغانی او۴۲ پوله بسپنه ورکړی ده.

ـدغزنیمخور اوعالمان بیرتهغزنی ته ستانهشول.

دسرطان۲۵: داسپانیی دملیاختربه مناسبت دګرانځولواك لهحضوره دمبارکی تلګرام مخابرهشویدی.

دافغانستان اومتحد عربیجمهوریت ددوستیځولنهپرانیستله شوه.

دهو اپیژند نی نوی دستګاه پهکار واچول شوه.

دشوروی اتحاد داقتصادی هیئت په ویاړو دپلان دوزیر ښاغلی عزیز لهخوا میلمستیا شوی وه.

دسرطان ۲٦: دافغانستان پارلمانی هیئت پهنن دامریکا له جمهور رئیس جان کنیډی سره وګوری.

دمطبوعاتو وزیر پرون ددو لتیمطبعی نوی په کاراچول‌شوی ماشینونه وکتل.

دکابل په‌دربار کښی دالمان داتحادی جمهوریت نوی لوی‌سفیر دکتور هار د مولتمین له‌صدراعظم ښاغلی دوکتور محمد یوسف سره دپیژندګلوی کتنه وکړه.

دسرطان ۲۷: ښاغلی صدراعظم دقرغی عسکری قشله وکتله.

دښاردا صلاحاتو پروژه دعاشقانو اوعارفانو په‌سیمه کښی شروع شوه.

دسرطان ۲۸، دملی شوری رئیس دوکتور عبد الظاهر له ښاغلی جان کنیډی سره وکتل.

دسرطان ۲۹: ښاغلی جان کنیډی په‌ډیره مینه دافغانستان دګران ټولواك او معظمی علیاحضرتی ملکی نژدی‌سفرته سترګی په‌لاری دی.

دفراه مخور داعلیحضرت‌شهید سعید په‌مقبره دګلو ګیډی کیښودل.

دښاغلی صدراعظم په‌مشری دهیرمند درياست عالی شوری غونډه وکړه.

دسرطان ۳۰: دپولیند دملی ورځی په‌مناسبت دګران ټولواك له‌حضوره دمبارکی مخابره شوی‌دی.

دښاغلی صدراعظم په‌مشری‌دهیرمند درياست عالی شوری غونډه وکړه.

دکابینی ددوه‌تنو غړو په‌ګډون هزارجات‌ته‌تللی هیأت په‌خپلو کتنو پیل وکړ.

دپوهنتون دکتابونو پلورنځی پرانستل‌شو.

دسرطان ۳۰: دولایاتو دپوهنی دمدیرانو اتمه‌کالنی غونډه پرون د ښاغلی دکتور پوپل په‌وینا پرانیستله شوه.

دسرطان ۳۱: دګران ټولواك له‌حضوره دجلالتمآب جمال عبدالناصر په‌عنوان مبارکی تلګرام مخابره شوی‌دی.

دوزیرانو دمجلس له‌خوا دجزایی محاکماتو دقانون پروژه تصویب شوه.

داسد لومړی - ښاغلی صدر اعظم دکتور محمد یوسف په‌داسی حال کښی چه دملی دفاع وزیر ډګر جنرال خان محمد ورسره ؤ دریشخور عسکری چونی وکتله.

دکابل‌دښار داصلاحاتو دپلان دپرمخ بیولو په برخه‌کښی‌دامریکا دبین المللی‌همکاری اداره او م،م مرسته کوی.

د پښتنی تجارتی بانك عالی شوری په‌داسی حال کښی چه دمالیی وزیر او دصدارت عظمی لومړی مرستیال ښاغلی عبدالله ملکیار او دعدلیی وزیر ښاغلی مجروح اودشوری نورغړی حاضرؤ غونډه وکړه.

داسد ۲ داد بیاتو دپوهنځی دژورنالیزم دڅانګی ددوهمو او دریمو ټولګیو شاګردانو دورځی په‌دوه نیمو بجو دپوهنځی درئیس ښاغلی مجروح په ملګر تیا دمطبوعاتو دوزارت په‌ماڼۍ کښی‌دمطبوعاتو له وزیر ښاغلی رښتیا سره وکتل. ښاغلی رښتیا دوینا په ترڅ کښی فارغ التحصیل شوو ژورنالستانوته دمملکت څرګندونه یاده کړه اوویی‌ویل چه ددغی څانګی منسوبین دی دمطبوعاتو له وزارت سره دهمدا اوس خپله مرسته شروع کړی.

داسد ٤ـ دگران قولواك له حضوره اود ښاغلی صدر اعظم له خوا د مسکو دخبرو دبر یالیتوب به نسبت مبارکی و یلی شویده ښاغلی صدر اعظم د دری گونو اویدیزو او ختیزو هیوادو موافقه چه دآزمو یښتی چاودنو د بندولو به باب ئی سره کـړیده دنړی دښخړو دکمیدو به لاره کښی یوگړندی گام گڼی .

د ملی شوری د بودجی او مالی چارو کمیسیون به خپله غونډه کښی د۳۸ـ۳۹ مالی کال دقطعیه حسابو موضوع ترغور لاندی و نیوله .

داسد٥ـ دگران قولـواك له حضوره دیوگـو سلاویی د وروستی زلزلی له امله د همدردی تیلـگرام مخابره شویدی .

ښاغلی دکـتور محمد یوسف صدر اعظم د فراه له مخورو سره د پیژند گـلوی به وخت کښی و ویل: حکومت هیله لری چه د ناوړو استفادو مخه و نیوله شی .

دمتحد عربی جمهوریت دلوی سفیر ښاغلی ابوشادی په ویاړ دافغانستان اومتحد عربی جمهوریت ددوستی دټولنی درئیس ښاغلی رښتیا له خوا دمطبوعاتو به کمپ کښی دعدای به امانی میلمستیا شوی وه .

داسد ٦ـ ښاغلی صدر اعظم دمعارف دشاگردانو د اوبدی هنری ننندار تـون د نجات به لیسه کی برانیست .

د افغانستـان دشمـالی سیمو دانجنیره دښپړی سروی اودکوکچی به نـاوی یاشبرغان کښی ددوولسزره هکتاره د مځکی دآبادولو اودپروژی جوړ ولو سروی تـړون د افغانستان او د شوروی جمهوریتو داتحاد د هیئتو له خوا د فواید عامی بهوزارت کښی لاسلیك شو .

داسد۷ ـ والاحضرتی شهزادی بلقیس درابعه بلخی د لیسی به چوکاټ کښی یو نوی ودکـتون پرانیسته

داسد۷ ـ دفراه داعلی حکومت مخورو په داسی حال کښی چه دفراه اعلی حاکم ښاغلی عبدالعزیز هم حاضر ؤ دافغانی سری میاشتی د ټولنی له عالی رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاه سره دهغه ریاست به سالون کښی وکتل .

داسد ۸ ـ دمعظم قولواك همایونی اعلیحضرت له حضور څخه دسویس دملی جشن به منـاسبت دسویس د کـنفدراسیون د رئیس په عنوان برن ته د مبارکی تلـگرام مخابره شویدی .

دأسد ۸ـ له ښاغلی صدر اعظم سره دجریدو اوورځپاڼو دمدیرانو مرکه وشوه .

دملی شورا دقوانینود تدوین دچارو کمیسیون بخپله غونډه کښی چه دښاغلی رحمانی به مشریه ئی وکړه د بودجی او محاسبی اصولنامه یی ترغور او څیړنی لاندی و نیوله .

داسد۹ـ همایونی معظم اعلیحضرت دهغی خاصی مهربانی له مخی چه له خپلی رعیت سره یی لری

د مرکزولایتونو او اعلی حکومتونو د یو شمیر معاد ی بند یا نو د بند یا تی موده د میلادالنبی شریف په مناسبت بښلې ده .

داسد ۱۰ - د حضرت سرور کائنات محمد مصطفی صلعم د نیکمرغې زیږید نې کالیزه په نهو بجو د مطبوعاتو د وزارت د لارښودنې د لوی مدیریت له پروګرام سره سم د سلامخانې په ما ڼۍ کښې تجلیل شوه .

د شرعیاتو د پوهنځی علمی کنفرانسونه ورمه ورځ مازیګر په پنځو بجو د پوهنتون د رئیس پوهاند دکتور انوری په وینا پرانستل شول .

داسد ۱۱ - د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د ۱۹۶۱م کال په موافقه لیك باندې د بیا کتنې په خبرو کښې د شوروی اتحاد د هیئت رئیس ښاغلی او بر یانوف او غړو ئې ، د پلان د وزارت معین ښاغلي یفتلي او په نوموړو خبرو کښې افغانی هیئت د نورو غړیو په ملګرتیا له صدر اعظم ښاغلی دکتور محمد یوسف سره وکتل .

## د ګلو پولو د تحدید په باب د افغانستان او ولسی چین د هیئتو د خبر و په باره کښې ګډه اعلامیه

د هغې مطبوعاتی ګډې اعلامیې متن چه د افغانستان او د ولسی چین جمهوریت ترمنځ د سرحدی خبرو په باره کښې خپره شوه .

اعلامیه وایی چه .

دافغانستان شاهی حکومت او د ولسی چین جمهوریت د حکومت د ۱۹۶۳ کال د مارچ په دوهمې نیټې د مطبوعاتو ګډې اعلامیې په تعقیب د سرحدی خبرو د باره د دواړو هیوادو هیئتونو د ۱۹۶۳ کال د جون د ۱۷ نیټې نه د اګست تر اوله پورې د دواړو هیوادو ترمنځ د اوسنی سرحد د رسمی تحدید په باب کښې خبرې وکړې .

هغه کسان چه په خبرو کښې یې ګډون وکړ دافغانستان له خوا د خارجه چارو د وزارت د ملګرو ملتو او بین المللی روابطو مدیر ښاغلی زلمی محمود غازی د هیئت د مشر په حیث ، د ملکی هوانوردی رئیس ښاغلی سلطان محمود غازی ، د کارتوګرافی رئیس ښاغلی امیر احمد ، ښاغلی غلام رسول ، ښاغلی محمد رفیق آصفی او ښاغلی غوث وزیری د هیئت د غړو په حیث و .

او د ولسی چین د جمهوریت له خوا په افغانستان کښې د ولسی چین د جمهوریت لوی سفیر ښاغلی هاوتینګ د هیئت د مشر په حیث ، د چین د خارجه چارو په وزارت کښې د آسیا یی چارو د لومړې څانګې د مدیر مرستیال ښاغلی چنګ چی ینګ د هیئت د غړې په حیث او ما هسو شنګ ، لیوهای سنګ او یاجنګ آن د مشاورینو په حیث و .

د خبرو په وخت کښې لومړی د دواړو هیئتو د کار د ترتیب په باره کښې موافقه سره وکړه او وروسته ترهغه یې هغه نقشې چه سرحدی کرښه څرګندوی او پخوا ود و اړو

**ښاغلی زلمی محمود غازی د خارجه وزارت د بین المللی روابطو او د ملگرو ملتو لوی مدیر او په کابل کښې د ولسي چین د جمهوریت لوی سفیر ښاغلی ها او تنگ او د ولسي چین د هیئت مشر په داسې حال کښې چه د گډو پولو د تحدید مسوده په نښه کوی**

خواوو ترمنځ مبادله شوې وی یو له بله سره مقابله کړې او د دواړو هیوادو ترمنځ د سرحد کرښې د ځای او لار په باب کښې یې مفاهمه او خبرې وکړې او وروسته ترهغه دا بو په اتفاق د سرحدي تړون او معاهدې د مسودې په باره کښې موافقې ته سره ورسیدل او تصمیم یې ونیو چه د دواړو خواوو نه هر یو جلا جلا دغه مسوده د هغې د کتلو او لاسلیک کولو په غرض د مختارو نمایندگانو د ټاکلو د پاره خپلو متبوعو حکومتونو ته وړاندې کړی. د خبرو په وخت کښې ډېره دوستانه او صمیمانه فضا موجوده وه د دواړو خواوو د کار د چټک پرمختگ او د دوستانه مشورې د لارې د سرحدي خبرو په زړه پورې نتیجو څخه خوښی او ممنونیت وکړ، په افغانستان کښې د ولسي چین د جمهوریت د هیئت د استوگنې په موده کښې د چین لوی سفیر او د خپل هیواد د هیئت مشر ښاغلی ها و تینگ و د هیئت غړی ښاغلی چنگ چی پنگ د معظم قولواک همایونی اعلیحضرت حضور ته هم ورغلی دی.

د افغانستان صدراعظم ښاغلی دکتور محمد یوسف هم د دوی سره وکتل د چین هیئت د هیواد ځینې په زړه پوری ځایونه هم ولیدل.

(پاتې په ۴۱۵ مخ کښې)

# نهصدمین سالگره وفات پیرهرات

برگزاری نهصدمین سال وفات خواجه درواقع احیاًمفاخرادبی وعرفانی وتمجید ازاینگونه شخصیت های علمی وادبی است که عمری را درراه عرفانی مجاهدت نموده اند و مصدر خدمات قابل قدری گردیده اند.

بنابر همین منظورمطبوعات برآن شد تاسالگرهٔ این عارف بزرگ (خواجه عبد الله انصاری هروی)را (که اندیشه های عرفانی اودرواقع هادی اهل طریقت است) برگزارنماید روی این مفکوره از بعضی مستشرقان و دانشمندان خارجیکه باً ثاوافکار پیرهرات آشنایی داشتند دعوت بعمل آمدتا بتاریخ ٤میزان ٤١ باین مناسبت درکابل حضور بهم رسانند. مدعوین عبارت بودند از:

١ـ استاد نورالدین شریبه ازجمهوریت متحد عرب
٢ـ استاد احمدآتش ازترکیه
٣ـ دکتور رضازاده شفق ازایران
٤ـ استاد بدیع الزمان فروز نفرازایران
٣ـ استادمدرس رضوی ازایران
٦ـ بناغلی رهی معیری ازایران
٧ـ راهب دوبورکوی ازفرانسه
٨ـ پروفیسرپترایوری ازانگلستان
٩ـ دکتور تاراچند ازهندوستان
١٠ـ استادعبدالغنی میرزایف ازاتحادشوروی
١١ـ استادلویی دویری ازامریکا
١٢ـ استاد مسینیون از فرانسه
١٣ـ استادتوچی ازایتالیا

سه نفراخیر الذکر بنابرمعاذیری آمده نتوانستند واستاد مسینیون مکتوبی باین مناسبت ارسال نمود که روح مطلب آن این است (من بحیث عضو پښتو ټولنه بغایت سروردعوت حکومت افغانستانرا برای اشتراك درمحفل یادبود نهصدمین سال وفات خواجه عبدالله انصاری پذیرفتم وخودم درماه می ١٩٤٥ بمزاراو درگازرگاه واقع هرات آمده بودم ازنخستین ... بتربت روحانی شیخ بزرگ ... سال میگذرد وآن وقتی بود که درمذاهب فلسفی اسلامی کاوش میکردم ودرآن روزگار فصلی از تصوف درمقدمه عبدالرحمان ابن خلدون مطالعه میکردم و درآن سخنان صوفیانه یافتم و بعدازطبقات الصوفیه انصاری ابیاتی را خوانده ام که منسوب بحسین

بن‌منصور حلاج بوده‌ووی کسیست که‌درراه تصوف اسلامی بدارآویخته‌شده است. مقصد اینکه‌خواجه عبدالله انصاری‌هروی از پیروان مذهب‌حنبلی بود وحلاج درآستان‌قبرامام (حنبل رح) در بغداد تهجد میگذارد .

اعضای کنگره دانشمندان داخلی قرار ذیل اند

بناغلی استاد سلجوقی، بناغلی عبدالهادی داوی‌بناغلی فیض‌محمدذکریا، بناغلی استاد خلیل‌الله خلیلی، بناغلی سیدشمش‌الدین مجروح، بناغلی دوکتورمیرنجم‌الدین انصاری،

مزارحضرت خواجه عبدالله انصاری «رح» درگازرگاه هرات

ښاغلی دکتور انوری، ملک الشعرا استاد بیتاب، ښاغلی میرسید قاسم، ښاغلی دکتور محمد انس ښاغلی عبدالکریم حقانی، ښاغلی احمدعلی کهزاد، ښاغلی محمد ابراهیم صفا، ښاغلی دکتور عبدالحکیم ضیایی، ښاغلی میرغلام محمد غبار، ښاغلی گل پاچا الفت، ښاغلی محمد خالد روښان، ښاغلی عبدالغفور برښنا، ښاغلی گویا اعتمادی، ښاغلی عبدالحمید مخمور، ښاغلی عبدالوهاب طرزی، ښاغلی عبدالرؤف بینوا، ښاغلی عبدالرشید لطیفی، ښاغلی محمدعثمان صدقی، ښاغلی حافظ نورمحمد کهگدای، ښاغلی دکتور غلام فاروق اعتمادی، ښاغلی پروفیسر محمدعلی، ښاغلی عبدالحی حبیبی، ښاغلی محمد شاه ارشاد ښاغلی صدیق الله رښتین، ښاغلی غلام حسن مجددی، ښاغلی دکتور رحیم ضیایی، ښاغلی سید بها الدین مجروح، ښاغلی دکتور عبدالواحد سرابی، ښاغلی دکتور احمدجاوید ښاغلی دکتور محمد رسول تره کی، ښاغلی غلام جیلانی جلالی، ښاغلی محمد ابراهیم عباسی ښاغلی دکتور کرام الدین، ښاغلی دکتور حفیظ الله ناصری، ښاغلی دکتور محمود حبیبی میرمن دکتور محبوب سراج رفیق، ښاغلی غلام حضرت شایق جمال، ښاغلی میرامین الدین انصاری، ښاغلی محمد ابراهیم قندهاری، میرمن رقیه ابو بکر، میرمن صالحه اعتمادی، ښاغلی محمد ابراهیم خلیل، ښاغلی ضیاقاریزاده، ښاغلی محمدقاسم واجد، ښاغلی ښاغلی محمدعلی معتمدی، ښاغلی محمدصالح پروانتا.

مجلس احتفال خواجه بساعت ٤ بعد از ظهر مورخ ٤ میزان ۱۳٤۱ پس از قرائت چند آیه قرآن شریف با بیانیه ښاغلی سردارمحمد داؤد صدراعظم افتتاح شد. بیانیه ښاغلی صدراعظم محتوی این جملات است.

آثاروافکارعرفانی واخلاقی این عارف بزرگوارخودعامل بزرگی است که بیاد وبود وی میپردازیم وهموطنان اورا ازامثال این میراث بزرگ فرهنگی که نمودار مفاخرتاریخی وموید وحدت ملی آنهاست بااحترام و تقدیر یاد کنند.

من عقیده دارم جهان ما به اندازهٔ که به پیشرفت علوم مادی نیاز مندی دارد وارتقای بشریت مستلزم آنست بهمان اندازه به تزکیه نفس وپروردن روح عالی انسان محتاج است تاجهانی راکه برای سعادت حقیقی دنیای خودآرزو داریم میسر آید.

پیام اعلیحضرت معظم همایونی باین مناسبت توسط دکتورسهیل رئیس مستقل مطبوعات قراآت گردید.

(برخی ازنکات پیام اعلیحضرت معظم همایونی روی این موضوع درقسمت اول سالنامه طی بعض ارشادات ذات شاهانه توضیح داده شده است.) اعضای کنگره توسط ښاغلی عبدالهادی داوی رئیس مجلس معرفی وسپس پیام های که از طرف وزرات معارف، ریاست پوهنتون کابل وانجمن تاریخ باین مناسبت ترتیب گردیده بود، توسط ښاغلی محمد ابراهیم عباسی سکرتر مجلس قراآت شد متعاقبا

مقالات و بیاناتی ازطرف ښاغلو سید شمس الدین مجروح، راهب دوبور کوی فرانسوی، گویا اعتمادی، ښاغلی الفت، استاد فروزانفر ومنظومهٔ از استاد خلیلی در اطراف شخصیت و آثار پیر هرات که قبلا باین مناسبت ترتیب گردید بود قرائت گردید

درخلال مقالات وجیزه های از آثار خواجه بزبانهای فارسی و پښتو توسط میرمن نفیسه عباسی و پیغله فهیمه حمید و پیغله پروین مجروح قرائت گردید درختم محفل دکتور پوپل وزیر معارف دسته های گلرا بوکالت حلقه های عرفانی و کلتوری کشور دردحالیکه ښاغلی علی محمد معاون اول صدارت عظمی، دکتور عبدالظاهر رئیس شورای ملی، اعضای کابینه مامورین عالیرتبه لشکری و کشوری، مستشرقین واستادان بعض ازممالك دوست و سران کور دیپلوماتیك مقیم کابل وعدهٔ بزرگی از فضلا و ادبای کشور نیز حضور داشتند

ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم حینیکه درروز افتتاح مراسم نهصد مین سال وفات پیر هرات خطابه میدهند (۴میزان ۱۳۴۱)

دربای تصویرمزار خواجه انصار درکابل ننداری گذاشت در اخیر بعض از آثار شیخ الاسلام (الهی نامه، صدمیدان، طبقات الصوفیه) وکتاب گازرگاه وزندگی خواجه عبدالله انصاری که ازطرف مدیریت عمومی نشرات داخلی مطبوعات وانجمن تاریخ باین مناسبت نشر گردیده بود در تالار کابل ننداری به حاضران توزیع گردید

همین طور فوق العاده مجله ادب نیز که حاوی ترجمه منازل السایرین خواجه و بعض مطالب دیگر بود به حضار توزیع گردید.

جراید پایتخت و ولایات نیز باین مناسبت سر مقاله های راپیرامون شخصیت وافکار خواجه انتشار دادند.

۵ میزان: مقالات و بیانات ازطرف دانشمندان واستادان خارجی وداخلی ازقبیل دکتور رضازادهٔ شفق - دکتور محبوب سراج رفیق، ښاغلی عبدالحی حبیبی، دکتور تاراچند استاد احمد آتش ودکتورجاوید راجع به آثار وافکار خواجه ایراد گردید.

۷ میزان: مقالات و بیاناتی از طرف استادانی چون پوهاند رشتین، پروفیسور بترا یوری و ښاغلی محمد عثمان صدقی قرائت گردید و دکتور سهیل با بیانیه از دکتور انوری خواهش ختم جلسه‌را نمود که محفل با بیانیه پوهاند دکتور انوری رئیس پوهنتون خاتمه یافت. بعد از ظهر آنروز به مناسبت نهصدمین سال وفات خواجه عبدالله انصاری، کابل ښاروال یکی ازجاده های پایتخت را بنام آن عارف بزرگوار مسمی کرد این جاده که ازحصهٔ هوتل آریانا الی بی بی مهرو امتداد دارد بساعت ۵ عصر بامراسم خاصی توسط بیانیه ښاغلی محمد صادق کابل ښاروال افتتاح گردید بیانیهٔ کابل ښاروال قرار ذیل است.

ښاغلی عبدالهادی داوی رئیس کنگره خواجه عبدالله انصاری درحال بیانیه

**عدهٔ از اعضای کنگره مراسم نهصد مین سال وفات پیر هرات خواجه عبدالله انصاری که بتاریخ ۴ میزان ۱۳۴۱ در کابل ننداری باپیام اعلیحضرت معظم همایونی افتتاح شد.**

« در این ایام فرخنده که از مقام معرفت ودانش عارف بزرگوار شیخ الاسلام پیر هرات خواجه عبدالله انصاری (۹۰۰) سال پس از وفات وی در کشور خود او تجلیل بعمل آمده و هموطنان خواجه (رح) به تکریم این یاد وبود تاریخی پرداخته اند شاروالی کابل افتخار میکنند که درین مراسم خجسته که درحقیقت تجلیل ازمقام اندیشه ودانش بشریست سهم گرفته ودراین خاطرهٔ علمی وادبی اشتراك میورزد واین جاده رابنام آن عارف بزرگوارموسوم میگرداند اینست که به تأیید خدای بزرگ متعال در عصر اعلیحضرت معظم همایونی المتوکل علی الله محمد ظاهرشاه که روزگار فرخندهٔ سلطنت وی عصر اعتلا و نهضت مادی و معنوی کشور است و در عصر حکومت بناغلی سردار محمد داؤد که خدمات وی در جنبش های اجتماعی و علمی مملکت نقش روشن دارد پرده ازروی این لوح برمیداریم پس ازین نام این جاده (انصاری وات) خواهد بود. امید واریم این احتفال مزید بر اینکه تجلیل آن عارف بزرگوار در موطن و پرورش گاه اندیشهٔ اوست دراتصال حلقه های ذوقی وهنری دردنیای بشری نیز سودمند ومؤثر باشد و برکات آن افکار فرزندان این

سر زمین را بسوی آن مطالب عالی رهنمون گردد که سعادت شان در آن مضمر است .

«زنده باد علم ـ شاد باد روان خواجهٔ بزرگوار»

۸ میزان : عدهٔ ازاد باوفضلای کشور باعدهٔ ازمستشرقان جهت اشتراك در مراسم نهصدمین سال وفات خواجه انصارکه قرار بوددرهرات اجراء شود قبل ازظهر همانروز ذریعهٔ طیاره بدانصوب عزیمت نموده ودر محفلیکه باین مناسبت ترتیب گردیده بود اشتراك ورزیدند کتاب ( تاریخ گازرگاه ) تالیف استاد فکری سلجوقی که از طرف مدیریت عمومی نشرات داخلی مطبوعات باین مناسبت نشر گردیده بود به حاضران توزیع گردید، درین محفل جناب میر غلام حیدر میر گازرگاه، استاد فکری سلجوقی مدیر مجله ادبی هرات درکلوب انصاری دراطراف شخصیت پیرهرات بیانیه های ایراد کرده ودر اخیر بناغلی عبدالحسین توفیق شعری را که باین مناسبت سروده بود قرآت نمود. متعاقباً هیأت بامعیت آمران دوایر بناروالی وعدهٔ ازعلماء وفضلای هرات بزیارت خواجه رفته و بروح آن صوفی بزرگ درود فرستادند هیأت پس ازمشاهده آثار تاریخی و باستانی هرات روز ۹ میزان بکابل باز گشتند .

درخلال این چند روز دعوت های بافتخار مستشرقان ودانشمندانیکه درین محفل اشتراك نمودند ازطرف ریاست مستقل مطبوعات (وزارت مطبوعات فعلی) انجمن تاریخ ووزارت معارف در هوتل کابل ، قصر چهلستون ، وباغ تپهٔ بغمان دراوقات مختلف بعمل آمد که در آن علاوه بردانشمندان خارجی جم غفیری ازعلماء وفضلای کشور ، نمایندگان جراید وروزنامه ها وکور دیپلوماتیك مقیم کابل نیز اشتراك داشتند کنسرتی هم باین منظور توسط آرکسترای کابل رادیو درکابل ننداری اجراء گردید. سفارت های افغانی مقیم دهلی جدید، قاهره، لندن وبعضی ازکشورهای دوست نیز به مناسبت سالگره خواجه پروگرام های دلچسپی را انتشار دادند . «ختم»

# دپښتونستان مهمې پېښې

## د۱۳۴۱ دمیزان لومړی: دپېښور دهزاره ضلع په لویه او ستره جرگه کښې په کلکه دسیاسي بندیانو دخوشې کیدوغوښتنه:

دسنبلې په ۱۸ نیټه دښاغلي خان محمد ایوب خان په مشرۍ دهزارې په ضلع کښې یوه مهمه غونډه شوې وه، پدغه غونډه کښې دهزاره ضلع او دپېښور اومردان دسترو شخصیتونو نه علاوه دخان عبدالغفار خان زوی خان عبدالولي خان اودملي محاذ اعلی منتظم هم گډون کړی ؤ او جذابې وینا وې یې وکړې. غونډې د رایو په اتفاق دپاکستان له حکومت څخه وغوښتل چه دپښتونستان ټول سیاسي بندیان خوشې کړي او جایدادونه ئې بیرته ورکړي.

## په چترال کښې ملي مجاهدینو پاکستاني تأسیساتو ته زیانونه ورسول.

دسنبلې په ۲۶ نیټه یوې ډلې مجاهدینو د تکر په پاخه پله باندې لاسي بمونه استعمال کړل اودهغه په اثر دغه پله ته تاوان ورواوښت اودغه راز دملي مجاهدینو بل ټولگي دکومې او کورې د پلونو په ساتونکو ډزې وکړې او د کومې د پله یوساتونکې سخت ټپي شو.

## د میزان ۲: دچارسدې د تنگي ښاروالي وکیلانو په غونډه کښې غوښتنه وکړه چه ټول سیاسي بندیان دې خوشې کړل شي.

دپېښور دضلع دچارسدې دتحصیل مربوط دتنگي دښاروالي وکیلانو د سنبلې په شلمه نیټه غونډه کړې وه اود غونډې په آخر کښې ئې یوغوښتن لیك تصویب کړ چه باید ټول سیاسي بندیان بې له کوم قید اوشرط څخه خوشې شي اوجایداد ونه یې بیرته ورکړ شي.

## دمیزان ۳ - ښاغلی میرگل خان نصیر دپاکستان دحکومت له خوا بندي او ښاغلی میرجعفر جمالي له وطنه په شړنې محکوم شو

د پاکستان حکومت د سنبلې په ۲۱ نیټه د بلوڅو مشهور ادیب او شاعر ښاغلي میرگل خان نصیر په قلات کښې بندي کړه اوهغه ئې تر سختې شکنجې لاندې ونیو همدارنگه دپاکستان حکومت د بلوڅو یونامتو شخصیت ښاغلي میر جعفر جمالي ترنامعلومې مودې پورې دوطن څخه په شړنې محکوم کړه.

## دشمالي آزاد پښتونستان جرگو دپاکستان دحکومت تیری په مقابل کې د هر ډول سرښندنې چمتووالی څرگند کړ.

دسنبلې په ۲۹ نیټه دوه سترې قومي جرگې یوه دماموندو دقبیلې دتڼې اوعمری ترمنځ سیمه کښې او بله داتمانخیلو دقبیلې په چینگی کښې شوې وه دو الدو جرگو دقومي پخوانیو جرگو فیصلې تایید کړې اود پاکستان داستعماري حکومت دتیری په مقابل کښې یې دهرډول قرباني او سرښندنو دپاره خپل تیاری څرگند کړ.

## دمیزان ۴-د باړې باندې په لویه اوستره جرگه کښې د پاکستا ن له حکومت څخه وغوښتل شول چه ژر ټول سیاسي بندیان خوشي کړي

په باړه باندې کې د داکتر وارث شاه په مشرۍ ستره جرگه شوې وه چه په هغې کښې په زرگونو خلکو گډون کړی ؤ. ښاغلي غازي خان او میارضوان الله کاکاخیل د خپلو مفصلو وینا او په ضمن کښې د پښتونستان په ملت باندې د پاکستان د حکومت په ظلمونو او تیر یو سخت احتجاج وکړ او د پښتونستان خلك ئې د پاکستان د حکومت سیاست سره د مقابلې په غرض زیات یوالي او هم آهنگۍ ته راوبلل. جرگې په پای کښې د پاکستان له حکومت څخه وغوښتل چه د پښتونستان سیاسي بندیان بې له کوم قید او شرط څخه ژر خوشي کړي او د پښتونستان د خلکو اساسي حقوق محترم و گڼي.

## دمومندو ملي مجاهدینو په یوه خونړۍ حمله کښې د وه کسه پاکستاني عسکر بندیان ونیول

پدې وختو کښې د مومندو ملي مجاهدینو یوې سترې ډلې د خاورو کنډو په عسکري تهانه په حمله وکړه او سر بېره پدې چه تهانې ته ئې دېر زیان ورسود پاکستاني عسکرو له جملې نه ئې دوه کسه بندیان ونیول. خبر داهم وایي سره ددې چه د تانې سا تو نکو ته پاکستاني هوسا اونوي قواوې ورسیدې ملي مجاهدینو ته د نښتې په نتیجه کښې کوم زیان ندی رسیدلی او بریالي خپلو ځایونو ته بیرته لاړل.

## دمیزان ۵- په لویه جرگه کښې د پاکستان د حکومت نه د ټولو سیاسي بندیانو خوشي کیدل وغوښتل شول

پدې وختو کښې په توره دیره کښې د ښاغلي امیرزاده خان په مشرۍ غونډه شوې وه چه په هغې کښې له شلو زرو تنو نه زیاتو خلکو گډون کړی ؤ. جرگه د قرآن مجید د څو آیتو په تلاوت پرانستله شوه او وروسته ښاغلي فاروق اطهر ښاغلي جلال خټك ښاغلي شاد محمد میړی، ښاغلي اصغر نسیم او ښاغلي اسلم خان خپل حماسي شعرونه ولوستل ښاغلي امیرزاده خان د خپل وینا په ضمن کښې وویل: چه موږ خپل حقوق غواړو او د دغه مقصد له پاره مجاهده کوو چه زمونږ سیاسي مشران دی له بنده خوشي شي او یو یو نیټ دی هم ټنگ شي. ده وویل ترهغه وخته پورې چه خان عبدالغفار خان او نور پښتونستاني مشران، ادیبان، اورضا کاران په بندیخانو کښې وي د پښتونستان هیڅ یو سړی ځان له بنده نه خارج نه بولي. میارضوان الله کاکاخیل په یوه وینا کښې دانگلیسي استعمار له دورې سره د پاکستان د حکومت اوسنی سیاست مقایسه وکړه او وې ویل چه د انگلیس د تسلط په وخت کښې مونږ ته درایو دورکولو حق راکړی شوی ؤ خو پاکستان حکومت مونږ له دغه حق څخه هم محروم کړی یو. جرگې د رایو په اتفاق وغوښتل چه د پښتونستان ټول سیاسي بندیان دې بې له قید او شرط څخه خوشي شي د سیاسي بندیانو جایدادونه دې دې بیرته ورکړه شي او یو یونټ دی لغوه شي.

## دمیزان ٦ـ دپاکستان داستعماری حکومت له خوا ښاغلی جعفرخان اڅکزی او ښاغلی حاجی محمدصدیق خان مری بلوڅ بندیان شول

دپاکستان استعماری حکومت دهغې سیمې یو ستر شخصیت ښاغلی محمدجعفرخان اڅکزی دآزادی غوښتنې داحساساتو په گناه دجرایم سرحد دمادی له مخې دنیوا وزندان ته یې ولیږه .

دغه راز دپاکستان حکومت ښاغلی حاجی محمدصدیق خان مری بلوڅ چه دخپلې سیمې د تش په نامه بنیادی جمهوریت دجرگې رئیس هم د آزادی غوښتنې دفعالیت په الزام بندی کړ او په زندان کښې ئې ترسخت زجر اوشکنجې لاندې ونیو .

## دمیزان ۷ـ دشبقدر دینی عالمانو دپاکستان دحکومت له اسلامیه مخالف اقداماتو غندل

دپیښور دضلع په شبقدر کښې دنظام العلما ددینی موسسې په اهتمام ستره جرگه شوې وه او په هغې کښې گڼ شمیر خلکو گډون کړی ؤ . ددین عالمانو داسلام په خلاف هغه اقدامات سخت وغندل چه دپاکستان دحکومت له خوا شوی دی او کیږی او خلکو ته یې بلنه ورکړه چه داسلام په خلاف دپاکستان دحکومت ددغه ډول اقداماتو په مقابل کښې له پخوا نه زیات پوښې او دهرډول قربانۍ ورکولو دپاره تیاروی جرگې په پای کی درایو په اتفاق دپاکستان له حکومت نه وغوښتل چه ټول سیاسی بندیان بې له کوم قید او شرط نه خوشې کړی . جرگې دخان عبدالغفارخان او دهغه دنورو همکارانو شخصیت او فداکارۍ وستایلې .

## دمیزان ۸ـ دآزادی غوښتلو په گناه دپاکستان داستعماری حکومت له خوا داڅکزو څوتنه بند یان شول

دپاکستان حکومت دملی عوامی گوند ستر شخصیت ښاغلی محمد یوسف خان اڅکزی او دغه راز ښاغلی میر غوث بخش خان بلوڅ چه د ستر سیاسی شخصیتو نه دی دآزادی غوښتنې دفعالیت په گناه دجرایم سرحد تراستعماری مادی لاندې بندیان کړل او زندان ته ئې ولیږل . ښاغلی میر غوث بخش خان بنیر نجو په دی وختو کی ختیز بنگال ته تللی ؤ او دهغه دهای له مشرانو سره ئې خبری کړی وی . بل خبروائې چه دپاکستان حکومت د جنوبی محکوم پښتونستان دخلکو دملی مجاهدو په مقابل کی نوی د سیسه جوړه کړیده او خپل څو تنه ایجنټیان یې مؤظف کړیدی چه ددغې سیمې د بلوڅو او پښتنو په یووالی کی خنډواچوی او پخپلو کی دغه دوه طبقې دشخړې میدان ته راکاږی . خو دپاکستان داستعماری حکومت دغه دسیسه په لومړی مرحله کی کشفه شوې ده او د جنوبی محکوم پښتونستان خلك دهغه استعماری حکومت ددغو دسیسو په نسبت کرکه څرگنده وی .

## خدای بښلی خوشحال خان په استعماري زندانونو کې له سختيو ځغملو وروسته وفات شو.

دکوهاټ د ضلع د بهادرخيلو اوسيدونکی ښاغلی خوشحال خان چه په خوشحال بابا مشهوردی او د ملي عوامي ګوند يو سترغړی او د وطن د آزادۍ په لياره کې يې اوږدې مبارزې کړې او په استعماري زندانونو کې يې ډير کلونه تير کړي وو په د غو ورځو کې وفات شوی دی .

مرحوم خوشحال خان د پاکستان د نظامي حکومت په دوره کې هم په سخت بند محکوم شوی او د پاکستاني حاکمانو له خوا يې ډير ظلمونه ځغملي ؤ . د دغه مجاهد ميړه وفات د پښتونستان په ملي ټولنو کې د ډيرې خواشينۍ او خپګان موجب شوی دی.

## دميزان ۹- ملك مهر دل خان د آزادۍ غوښتنې په ګناه زندان ته ولېږل شو.

د ملکنډ د سيمې اوسيدونکی ښاغلی ملك مهردل خان د پاکستان د حکومت له خوا د آزادۍ غوښتنې د فعاليت په اثر بندي شو د مرکزي محکوم پښتونستان يو بل ستر شخصيت د ګل آباد اوسيدونکی ښاغلی يارمحمدخان د بنديخانې د سختۍ شکنجې په اثر په ډول ډول ناروغيو اخته شوی او ځرنګه چه د ده صحي حالت ډير خطرناك ؤ هغه يې له بنديخانې نه د پېښور عمومي شفاخانې ته وليږه .

## دميزان ۱۰- په جيکب آباد کې د پښتونستان په طرفدارۍ او د پاکستان د حکومت په خلاف مظاهرې وشوې.

د سنبلې په ۲۸ نيټه د محکوم پښتونستان د دو ولايتو ترمنځ په فاصل حد جيکب آباد کې ستره مظاهره وشوه چه د هغې سيمې د ښوونځيو شاګردانو او خلکو ګډون په کې کړی ؤ . د مظاهره کوونکو په لاسونو کې سره اوتور بيرغونه ؤ او نارې يې وهلې چه ژوندی دی وی پښتونستان ، مړ دی وی يو يونټ او د پښتنو او د بلو څو د ښمنان. مظاهره کوونکو غوښتل چه بايد ژرخان عبدالغفار خان او خان عبدالصمد خان آغا عبدالکريم احمدزی او د پښتونستان نور سياسي بنديان خوشي شي . د جيکب آباد بازارونه په دغه ورځ تړلي ؤ او مظاهره کوونکو په جيکب آباد کې او رګاډی ودراوه او په ډيرو ګې وويشت.

## دميزان ۱۱- دمير کنډې او مونډې په عسکري ځا يونو د سالارزيو ملي مجاهدينو حملې.

يو ټولګی ملي مجاهدينو د سنبلې په ۳۰ نيټه د مير کنډې په عسکري چوڼۍ ډزې وکړې . د باجوړ ربوټ وايي چه د ميزان په دريمه نيټه د سالارزيو يو ټولګي ملي مجاهدينو د ښاغلي پاچاخان او ښاغلي سيد افضل خان په مشرۍ د مونډې په عسکري ګيټ ډزې وکړې او د هغې نښتې په نتيجه کې چه د دواړو خواوو ترمنځ يې دوه ساعته دوام وکړ پاکستاني قواؤ ته دسر او مال تاوان ورواوښت.

## دمیزان ۱۳ـ د کوهاټ په لویه جرگی کی تاریخی او سودمنی فیصلی وشوی.

دمیزان په لومړی نیټه دحاجی پردل خان شنواری په مشری په کوهاټ کی ستره جرگه وشوه چه په هغې کی د کوهاټ دضلع په گڼ شمیر خلکو علاوه دپیښور او مردان دضلعو بو شمیر قومی مشرانو هم گډون کړی و. جرگه دقرآن مجید د څو آیتو په تلاوت د قاضی شفیع الدین له خوا پرانیستله شوه وروسته له هغه قومی مشرانو جذابی وینا وی وکړی دجرگی په پای کی دغه مواد درایو په اتفاق تصویب شول.

جرگی د پاکستان له حکومت نه وغوښتل چه د پښتونستان قول سیاسی بندیان بی له کوم قید او شرط نه خوشی شی او جایدادونه ئی بیرته ورکړل شی او جرگه هغه پروگرام نه تاییدوی چه د مرکزی محکوم پښتونستان دلویی جرگی له خوا د ملی محاذ د تنظیم د پاره تصویب شوی دی. جرگه د هغو کسانو قربانی او خدمتونه ستایلی او دهغوی پاکو ارواحو ته درود استوی چه په دی وروستیو وختو کی د پاکستان په جیلونو کی مړه شوی دی.

## دمیزان ۱۴ـ په محکوم پښتونستان کښی د پاکستان حکومت په خلاف احتجاجیه غونډی ورځ په ورځ پراخیږی

دمیزان په ۳ نیټه دښاغلی محمدالیاس پاچا په مشری په اتمانزو کی ستره جرگه وشوه چه په هغه کښی په زرگونو خلکو گډون کړی و او قومی مشرانو جذابی وینا وی وکړی. میا رضوان الله کاکاخیل دخپلی وینا په ضمن کی وویل چه د پښتونستان خلکو دخپلو سترو مشرانو لکه خان عبدالغفار خان په لارښوونه د انگلیس داستعمار په مقابل کښی ډیری سختی مبارزی وکړی خو د انگلیس داستعمار له ختمیدو څخه وروسته د پښتونستان خلك اوددوی سترمشران ترسخت فشار او شکنجی لاندی نیول شوی دی. ده وویل چه د پښتونستان خلکو د پاکستان دسلطی او د انگلیس داستعمار ترمنځ هیڅ تفاوت ندی احساس کړی. ده وویل د پاکستان د پنځلس کاله سلطی په دوره کی د پښتونستان خلك داقتصاد او دژوند دحالت په لحاظ له شلو پنځو کلو نه زیاته موده بیرته په شا تللی اوددوی حالت ورځ په ورځ خرابیږی.

## دمیزان ۱۵ـ دسالارزیو یوی قوی لوی جرگی یو ځل بیا د پاکستانی حکومت د تیریو په مقابل کی خپل چمتوالی ښکاره کړ

دمیزان په اتمه نیټه دسالارزیو د قبیلی مربوط دلر آمدك په سیمه کی د دری صاحب په زیارت کی ستره جرگه وشوه. پدغه جرگه کی دقوم مشرانو مهمی وینا وی وکړی او د پاکستان دحکومت استعماری پروگرام ئی بیان کړ. جرگی د رایو په اتفاق فیصله وکړه چه د پاکستان داستعماری حکومت د هرډول تیری مقابلی وکړی او هرڅه دخپلی خاوری د دفاع په لیاره کی قربان کړی. دغه جرگه په دی نارو

پای ته ورسیده چه ژوندی دې وی پښتونستان او نابود دې وی دد وی دښمنان او استعمار .

## دمیزان ۱۶- په پاکستانی نظامی تأسیساتو او کمپونو باندی دملی مجاهدینو ډزی

داتمانخیلو دشموزویو یوتولـګی ملی مجاهدینو دمیزان په۴ نیټه ، د مونډه په عسکری کمپ ډزی وکړی په مقابل ګی دکمپ دساتونـکو له خوا هم مقابله وشوه اوسخته جګړه ونښته. دغه شان د منځنی پښتونستان د کورمې دناوی رپوټ دی چه دهغه ځای یوی ډلی مجاهدینو دمیزان په ۵ نیټه د پاره چنار په سیمه کی د پاکستان په یوشمیر دولتی ملازمینو ډزی وکړی چه دهغوئ یو تن ټپی او یو دکرهنی ماشین ئی زیانمن او خراب کړ .

## دمیزان ۱۷-دپاکستان دملیشایی عسکر وشخه خوتنه ووژل شول

دمسعودو دملی مجاهدینو دیوی لوی ډلی او دپاکستان د ملیشائی قواؤ تر منځ دشامیر تنګی په‌سیمه‌کی سخته جګړه وشوه چه پر له پسی ئی څو ساعته دوام وکړ. بهد غه نښته‌کی یوشمیر پاکستانی ملیشائی عسکر مړه او ټپیان شول دملی مجاهدینو دټولنی قیادت ښاغلی خیرمحمدخان په غاړه درلود. دغه راز بل ټولـګی ملی‌مجاهدینو دټانـک په بازار کی دحکومتی‌مامورینو په‌کمپ لاسی بمب واچاوه او هغه ئی ته زیان ورساوه. یوشمیر ملی مجاهدینو دشامیرتنګی په سیمه‌کی دتلفون مزی اوستنی له منځه یوړی، بل دمسعودو یوشمیرملی‌مجاهدینو دښاغلی اورنګ زیب خان رمضانی په لارښوونه دمیزان په ۳ نیټه دچغملی په عسکری چوڼۍ ډزی وکړی او دچوڼۍ دساتونـکو له‌خوا هم متقابله ډزی‌وشوی.

یوشمیر نورومجاهدیـنو دجندولی اوسروکی دچونیو ترمینځ په زیاتـه مسافه عسکری سرك خراب کړی‌دی ، بل‌ټولګی ملی مجاهدینو دجندولی او سروکی په عسکری چوڼیو ډزی وکړی .

## دمیزان۱۹-ښاغلی‌میرسردارخان‌دوړدپاکستان‌له‌استعماری‌حکومت له‌خوا ونیول شو.

دپاکستان حکومت، په‌محکومه سیمه‌کی ښاغلی میرسردارخان‌دوړ‌ونیو، دی یوقومی آزادی غوښتونکی دی او دپاکستان په‌زندان کی ترسختی سکنجی او فشار لاندی ونیول شو .

دباجوړ په پالنګټ کی یوه لویه جرګه وشوه چه دپاکستان استعماری حکومت جټ الوتـکو دجرګی په‌وخت کی‌دهغه‌ځای په فضاکی الوتنی‌کولی .

دمیزان په ۱۱ نیټه په‌پالنګټ‌کی دماموندو او سالار زیودنمایندګانو، عالمانو مخورو ارد زرګو خلـکو په ګډون ستره‌قومی جرګه وشوی. جرګه دقرآن کریم

دخو آیتو په تلاوت پرانستله شوه ، وروسته قومی مشرانو دوطن دآزادی د سا تلو اوله پاکستانی استعمار سره دمقابل په باب مهمی وینناوی وکړی ور وسته بیا جرگی دراپو په اتفاق دوطن دآزادی اوقوم ددفاع په حقله مهم تجویز ونه تصو یب کړ ل او یو شمیر قومی مشران ئی دچارمنگ اواتمانخیلو دخلکو په گډون دد غه لوی جرگو دکیدو پهغرض انتخاب اوورټاکل شول. خبرداهم وائی چه دپاکستان استعماری حکومت الوتکو دجرگی ددوام پهموده کښی پرله پسی الوتنی کو لی او د پالنگټ دفضا دپاسه گرزیدلی .

## دمیزان ۲۰- دمسعودوقبیلی دپاکستان استعماری پروگرا مو نه اواقدامات وغندل

دمیزان په ۳ نیټه دآزاد منځنی پښتونستان دمسعودو قبیلی یوی ستری جرگی دپاکستان حکومت متجاوزانه اقدامات اوپروگرامونه سخت و غندل او پههغه جرگه کی ئی چه په مسکین کی وشوی عالمانو، روحانیونو،قومی مشرانواو زیاتو خلکو گډون کړی ؤ پهدغهجرگه کیدمسعودو خلکو یوځل بیا دپاکستان د استعمار پهضد دخپلو مبارزو دوام اعلان کړ. دکورمی دناوی یوخبردیچهیوشمیر ملی مجاهدینو د میزان په ۱۲ نیټه دتمبهخیلو پل پهچاودونکو موادو وران کړ .

## دمیزان ۲۱- ددریوسترو قبیلوپه تاریخی جرگی کی دپالنگټ دجرگی مهمی اوتاریخی فصیلی تایید شوی

دماموندو اوسالار زیو دستری جرگی په تعقیب دباجوړ نه را رسیدلی خبروایی چه دمیزان په ۱۵ نیټه دچارمنگ په کنړي کیددریوستروقبیلو ماموندو،سالارزو او چار منگوستره جرگه شوی وه چهپه هغی کیدچار منگ پهزرگونو خلکو اودباجوړ دنور سیمو مشرانو گډون کړی ؤ . پهدغه جرگی کی دهغو مهمو او جذا بو ویناؤ لهاوریدو څخه وروسته چه دقوی مشرانو له خوا وشوی دراپو په اتفاق دمیزان د۱۱ نیټی دپالنگټ دجرگی فیصلی تایید شوی او باجوړ دری وا ړو قبیلو د پاکستان دحکومت داستعماری تجاوزونو په مقابل کی دخپل پوره یو والی او ا تفا ق عهد نوی کړ. وروستنی خبر وایی چهدماموندو ، سالار زو له قبیلو سره د قومی جر گی دکولو دپاره هغیخواته لاړل.

## دمیزان ۲۶- دمرکزی محکوم پښتونستان پهدرنوجرگو کی دپاکستان سیاست وغندل شو .

دجنوبی محکوم پښتونستان یودری کسیز هیئت دپاکستان د پارلمان دغړی نواب خیر بخش مری په مشری دمیزان په ۱۵ نیټه پیښورتهورسید او د قومی مشرانو اونورو ډیرو خلکو له خوایی فوق العاده تود هرکلی او استقبال وشو .

په هغو سترو جرگو کی چه دمرکزی محکوم پښتونستان په بیلو بیلو سیمو کی ددوی په گډون وشوی دوی دجنوبی محکوم پښتونستان په سیمو کی د پا کستان

داستعماري حکومت تيري او ظلمونه بيا ن کړي او سخت يې وغندل او وي غو ښتل چه ژر ترژره دی يو يونټ له منځه لاړ شي او د پښتونستان ټول سياسي بنديان دې خوشي شي او دهغوی جايدادونه دی بيرته ورکړی شي . په دغو جرگو کی د پاکستا ن د پارلمان دغړي سردار عطاءالله خان منگل بندی کيدل په ديمو کراسي اصو لو باندی ښکاره تيري او تجاوز بلل شوی دی او سربيره په دی غوښتل شوی دی چه دغه شخص دی ژر په ژره له بنده خلاص شي .

## دپاکستان استعماري قواوو ته دسالارزو دملي مجاهدينو له خوا درانده تاوانونه وا وښتل .

دسالارزو دملي مجاهدينو يوی ستري ډلی دميزان په ۲۳ نيټه شينگس ته نژدی دپاکستان په عسکری قطعاتو حمله وکړه او ددواړو خوا و ترمنځ سخته جگړه شوی دی. دپاکستان قواوی چه توپونه او ځلور جټ الوتکی يې ملا تړي وی په دغه سخته سيمه کی ددواړو خواوو ترمنځ جگړه دهغی ورځی ترمازيگر پوری روانی‌و دمجاهدينو شمير سوونو تنوته رسيده .

## دميزان ۲۷ـ لس تنه پاکستاني‌عسکر مړه او څو تنه ملي مجاهدين شهيدان شول.

دهغی ښتی چه دپاکستانی عسکرو او دسالارزوملی مجاهدينو ترمنځ شوی وه ښاغلی ملك محمد اکرم خان سالارزی ،ښاغلی فيض‌الله خان سالار زی او ښاغلی شيرمحمد خان سالارزی شهيدان شوی او ښاغلی عبدالامين خان ټپي‌شوی دی تراوسه پوری دپاکستان عسکرو دقو او څخه لس تنه مړی معلوم‌شوی دی بل خبر دی چه دماموندو، چارمنگو او اتمانخيلو قومونو په خپلو سيموکی لازمه احضارات نيولی او هره گړی دملي‌مجاهدينو لښکرو ته نوی قواوی رسيږی خبر زياتوی چه دتلفا تو صحيح شمير ته آينده کی معلو م شي .

## دميزان ۲۷ ـ دپاکستان استعماري حکومت بيا يو شمير آزا دی غوښتونکی نيولی او بنديان کړی دی .

له آزاد شمالي پښتونستان خبروا ئی چه دپاکستان‌استعماری حکومت داتمانخيلو دقبيلی ښاغـلی محمد عمرخان ، ښاغلی سردار ،ښاغلی گل مير ، ښاغلی حبيب ا لحق ښاغلی خان دين ، ښاغلی بخت مير ، ښا غلی محمدسعيد اوښاغلی مددخان او دغه‌راز مومندو ښاغـلی لال مست په محکومه سيمه کی نيولی ا و زندان ته ئی ليږلی د ی ددغه اقدام علت چه په اساس کی دآزادی غوښتل دی دپاکستانی مربوط مامو رينو له خوا دبمب دچاودو او د دولتی و د انيو د ورانو لو دپيښو زياتوالی ښودل شوی دی اړ ددوی په ورسپتو پيښو کی دلاس در لودلو په الزام بنديان شوی دی.

## دچوك يادگار په تاريخي لويه غونډه کې په کلکه د يويونټ د ړنګيدو او دسياسي بنديانو دخوشې کيدوغوښتنه وشوي .

د پيښور په چوك يادګار کې دجنوبي محکوم پښتونستان دهيئت په ګډون چه په دغو ورځو کې پيښور ته راغلي دي دميزان په ۲۲ نيټه ستور جرګه شوي وه چه دمرکزي محکوم پښتونستان دپيلو بيلو سيمو په زرګو نو خلکو ګډون کړی ؤ .
ارباب سيف الرحمن ، ښاغلي محمد افضل بنګښ او نو اب خير بخش مری د خپلو مفصلو وينا وو په ترڅ کې د پاکستان داستعماري حکومت تيری او تجاوزونه بيا ن کړل اووی ويل چه د پښتونستان خلك ددغه ډول ظلمو نو څخه د خلا صو ن د پا ره مبارزې کوي اودهرډول قرباني ور کولو لپاره تيار دي .
پس له هغه دجنوبي محکوم پښتونستان ددری کسيزهيئت غړي ښاغلي شيرمحمدخان دجنوبي پښتونستان بحراني حالات بيان کړل اووی ويل چه په دغو وروستيو وختو کې دهغه ځای په سوونو ملي او نفوذلرونکي سترسترو کسان په محبسو نو کې اچول شوي او دجنوبي محکوم پښتونستان يو زيات شمير سترکسان په تبعيد محکوم شوي دي.ده وويل چه دهرډول غونډو او ټولنو کيدل که څه هم په جو ماتو نو کې وي دپاکستان دحکومت له خوا بيخي منع شويدي.جرګې دراپو په اتفاق دپاکستان د استعماري حکومت ظلمونه او تيری وغندل اووی غوښتل چه يو يو نټ دی ړنګ او سياسي بنديان دی خوشي شي او دهغوی جايدادونه دی بيرته ورکړل شي . خبر داهم وائي چه پاکستاني پوليسو دجرګې په پای کې دجنوبي محکوم پښتو نستا ن ددری کسيز هيئت غړی ښاغلي شيرمحمد خان و نيو اوبندي ئې کړ .

## دميزان ۲۹ـ دمتحدی جبهې دپاکستان ديويونټ دلغوکيدو اودسياسي بنديانو دخوشې کيدوغوښتنه وکړيده .

دپاکستان اوپښتونستان دګوندو متحدې جبهې چه په دغووروستيووختو کښې دپاکستان دحکومت داوسني نظام په ضددمجادلې دپاره جوړه شويده د يو يو نټ د لغو کيدو دموضوع اودپښتونستان دسياسي بنديانو دسمدستي خو شي کيد و د پاره يې مجاهده پخپل پروګرام کښې شامله کړی ده .
دپاکستان دپارلمان غړی ارباب سيف الرحمن خليل په دغو وختو کښې په پيښور کښې دخپر ليکو نکو سره دمرکې په ترڅ کښې دپاکستان د محبنو جر يد و د غه خپرونې چه ګو يا متحدې جبهې د يو يو نټ د لغو کيدو د پښتو نستان د سياسي بنديانو دبلا شرط خوشې کيدو دمادو دشاملولو دمنلو څخه انکار کړی دی ترديد کړی اووی ويل چه ددې جبهې مشرا نو په څر ګند ډول او بيله هيڅ ډول ترددنه دواړه مادې پخپل پروګرام کښې شا ملې کړې اودهغو دعملي کولو دپا ره په خپلو ټولو قوا وکوښښ وکړی سربيره پدې پههغه لويه جرګه کښې چه دميزان په ۱٤ نيټه دختيز

پاکستان په مرکز ډاکه کښې شوی وه دمتحدې جبهې مشر ښاغلی سهراوردی د یو یونټ سره مخالفت ښکاره کړې او وې ویل چه دمتحدې جبهې پیروان به دهغه د لغو کېدو په باب کښې په کلکه کوښښ وکړي.

د پاکستانی قواوو او دملی مجاهدینو په جګړه کښې ښاغلی ملك عبدالحلیم خان ټپی شوه.

دشنیګس په سیمه کښې دملی مجاهدینو او پاکستانی عسکرو په جګړه پسې دشمالی آزاد پښتونستان باجوړ خبروایی چه ښاغلی ملك عبدالحلیم خان هم په دغه جګړی کښې ټپی شوی دی او د پاکستاني قواو دتلفاتو په باب کښې تراوسه پورې دځلور تنو منصبدارانو او شل تنو افرادو وژول معلوم شوی دی.

## دمیزان ۳۰ ـ د یو یونټ دلغو کېدو او دپښتونستان خلکو ته دبشری حقوقو دور کړی غوښتنه.

په شیدو کښې د ښاغلی محمد افضل بنګښ په مشری یه ستره جرګې شوی وه چه په هغې کښې دزرګونو خلکو نه علاوه دمحکوم پښتونستان یو شمیر زیاتو سترو شخصیتونو ګډون کړی ؤ دخان عبدالغفارخان زوی خان عبدالولی خان او ارباب سیف الرحمن دمهمو وینا و په ضمن کښې د پاکستان دحکومت استعماری پروګرامونه بیان کړل په دغه وخت کښې دخلکو له خوا دژوندی دی وی پښتونستان ناری وهل کیدی دغه ډول غونډی په بابړه ، مومندو دتنګی ، چارصدې ، شوقدر ، مردان ، تخت بهائی او نوښار کښې هم شوی دی.

په ټولو غونډو کښې د پښتونستان دملت په مقابل کښې د پاکستان حکومت استعماری سیاست وغندل شو او دغو غونډی په فیصله لیکونو کښې د یو یونټ د لغو کېدو ، د پښتونستان دخلکو د بشری حقوقو ورکول دسیاسی بندیانو ژرخوشی کیدل او ددوی دجایدادونو د بیرته ور کولو غوښتنه او مطالبه شوېده.

## دعقرب اول ـ په پاکستانی تأسیساتو دمسعودو ملی مجاهدینو حملی.

دمسعودو ملی مجاهدینو ټولګیو دمیزان په ۱۹ تاریخ دښاغلی اورنګ زیب خان په مشری دسپلتوی جندولی اوسرو کښې په عسکری چونیو ډزی وکړې.

دجندولی دعسکری چونۍ دساتو نکو له خوا هم متقابلی ډزی وشوی خبرداهم وایی چه پاکستان حکومت جنګی الوتکی دملی مجاهدینو د فعالیتونو په اثر د خلکو ددیرولو د پاره دمنځنی پښتونستان په فضا کښې پرله پسې ګرځیدلی او به دغو ختو کښې استعماری حکومت دمسعودو ملك محمد امین خان دټانك په سیمه کښې د ملی مجاهدینو په فعالیت کښې دلاسی لرلو په الزام بندی کړی دی.

## دعقرب ۲ ـ دمرکزی محکوم پښتونستان په سترو جرګو کښې دپاکستان داستعماری حکومت سیاست وغندل شو.

دمیزان په ۲۳ او ۲۴ نیټه دبنو، کوهاټ ، او ددیره اسماعیل خان په ضغلو کښې

ستري جرگې شوې وې چه په هغو کښې د مرکزي محکوم پښتونستان په قومي مشرانو علاوه د جنوبي محکوم پښتونستان په زرگونو اوسیدونکو گډون کړی و په د غو جرگو کښې د پښتونستان د ملت په مقابل کښې د پاکستان د حکومت سیاست سخت وغندل شو او په هغو غوښتن لیکو نو کښې چه منظور شوي دي د یو یو نیج د لغو کیدو ، د سیاسي بندیانو د خوشې کیدو او د پښتونستان خلکو ته د بشري حقوقو د ور کولو غوښته شوې ده . د کویټې رپوټ وایي چه پاکستان استعماري حکومت د پاکستان د پارلمان غړی سردار عطاءالله منگل چه د پښتونستان د آزادۍ غوښتني د فعالیت په اثر بخوا بندي شوی ؤ په دې وختو کښې د قومي مشرۍ له امتیازاتو او حقوقو څخه محروم کړی دی :

د پیښور کابلي دروازې کښې یوه ستري چاودني پاکستاني پولیس یې ډیر مضطرب کړي دي د مرکزي محکوم پښتونستان پیښور خبر وایي چه د میزان په ۲۰ نیټه د پیښور د ښار په کابلي دروازه کښې یوه سخته چاودنه شوې ده او د سخت تاوان باعث شوې ده . پاکستاني پولیسو په دغه زمینه کښې په اوږدو تحقیقاتو پیل وکړ او د هغه ځای یو شمیر خلك يې تر تحقیق او مراقبت لاندې نیولي دي

بل خبر وايي چه پاکستاني پولیسو ته د پیښور د ښار د میچني دروازې د پولیسو په تهانه کښې پخوا له چاودني نه یو بم لاس ته ورغلی دی او یو تن چه عبدالرحمن نومیږي په دغه تهانه کښې د بمب د ایښودلو په الزام نیولي دي .

د ملکنډ رپوټ وايي چه د پاکستان استعماري حکومت ښاغلی فدالله خان چه د هغه ځای یو تعلیم یافته دی د ډیرو پوسترانو د ویشلو په الزام نیولي دي او د پولیسو د وینا له مخې په دغو پوسترانو کښې د پښتونستان د خلکو په مقابل کښې د پاکستان د استعماري حکومت سیاست سخت غندل شوي دي او د پښتونستان ملت ته بلنه ورکړې شوې ده چه د پاکستان استعماري حکومت په ضد خپله مبارزه زیاته قوي او سخته کړي .

## د عقرب ۷ - د پیښور د قصه خوانۍ په سیمې کې یوه ستري چاودنې پاکستاني مقامات ډیر وارخطا کړي دي

د میزان په ۲۸ نیټه د پیښور ښار په قصه خوانۍ کې سره چاودنه وشوه چه د سخت تاوان باعث او د حکومتي مقاماتو د تشویش موجب شویدی .

د پیښور د اخبار د خبر له مخې د پاکستان پولیس په دغه زمینه کښې په تحقیقاتو بوخت دي او د خلکو په گرزیدو باندې مراقبت سخت شویدی .

د پاکستاني استعمار د مظالمو په اثر یو مهم شخصیت مړ شو .

بل خبر وائي چه د خدائي خدمتگار د ملای گوند یو مهم شخصیت ښاغلی غلام جان د میزان په ۲۹ نیټه په اکبر پوره کښې مړ شويدي چه د ۱۳۴۰ کال له اول نه د سن کال

دمیزان تر ۲۶ نیټې پورې دملتان په بندیخانه کښې بندي وُ او له خلاصون نه دری ورځې وروسته مړ شو .

## دعقرب ۹ - دژوب ۱۸ تنه آزادیغوښتونکی دپاکستانی استعماری حکومت له خوا بندیان شول

د پاکستان حکومت د کاکړو د قبیلې مربوط دژوب ۱۸ تنه اوسیدونکي د آزادۍ غوښتنې په گناه نیولي او جیل ته یې لیږلي دي . دغه کسان دادي .

ښاغلي خان محمد ، ښاغلي میرداد، ښاغلي رحیم، ښاغلي محراب ، ښاغلي اله یار، ښاغلي کتواز ، ښاغلي رحم الدین ، ښاغلي ولهم ، ښاغلي نظر ، ښاغلي میر قلم ښاغلي حیدر ، ښاغلي محمد خان ، ښاغلي میرزا ، ښاغلي داروخان ، ښاغلي لشکر خان ښاغلي شیر خان ، او ښاغلي عبدالله .

## یو پاکستانی عسکر د ماموندو دملي مجاهدینو له خوا ووژل شو

په هغه نښته کښې چه دمیزان په ۲۹ نیټه د پاکستان د قواو او د ماموندو د ملي مجاهدینو ترمنځ وشوه د پاکستان له قواو څخه یو تن ووژل شو او د ملي مجاهدینو څخه یو تن ښاغلي غلام حضرت د پاکستان دقواو په لاس ورغی . دغه نښته هغه وخت وشوه چه ملي مجاهدینو د ښاغلي ملك اکبرسید خان په مشرۍ د ښاراوچار ترمنځ د پاکستان دعسکري قواو په یوه تانه حمله وکړه او دتانې الحاقیې ته ئې اور واچاوه . خبر زیاتوي چه په دغو نښتو کښې د پاکستان توپخانې هم د ښار له کمپ څخه په ملي مجاهدینو ډزې کولې .

## دعقرب ۱۰ - دچاودونکو موادو په اثر داور گاډی پټلی له منځه یوړل شوی

یوشمیر ملي مجاهدینو دمیزان په ۲۹ نیټه د کوهات دضلع مربوط د تل د درسمند په کلي کښې په زیاته مسافه دچاودونکو موادو په اثر داورگاډي پټلي له منځه وړې دي او له بلې خوا د درسمند په عسکري چونۍ هم ډزې کړې دي . بل خبر وایي چه د پاکستان استعماري حکومت یو تن دیني نامتو شخصیت چه په سوریري صاحب حق صاحب مشهور دی د دغې حکومت دا سلام د ښمنۍ د سیاست په ضد دفعالیت په گناه بندي کړی دی .

## دعقرب ۱۳ - د پاکستان استعماری حکومت حامدعباس د اجمل خټك سره د ارتباط ساتلو په الزام بندی کړ

د پاکستان حکومت د پېښور د حفظ الصحی د مدیریت معاون ښاغلي حامد عباس په دې الزام بندي کړی دی چه له یومشهور ښاعراو لیکوال ښاغلي اجمل خټك سره یې چه بندي دی ارتباط درلوداو خلك یې د پاکستان د استعماري حکومت سره د مخالفت په غرض تشویقول .

## دعقرب ۱٦ ـ دپاکستان پهعسکري تاڼهد مسعودو دملي‌مجاهدينو له خوا حملې

دمسعودو ملي‌مجاهدينو يوې ډلې دښاغلي اورنگ زيب‌خان په مشرۍ دسروکي پهعسکري تاڼه حملهوکړه اودملي مجاهدينو اودتاڼې دساتونکو ترمنځ سخته نښته وشوه چهڅوساعته يې دوام وکړ .

دغهراز بل ټولگي مجاهدينو دښاغلي اورنگ زيب خان په مشرۍ دپاکستان دحکومتي لاريو پهيوه قافله چهلهڅنډ ولي څخه وانۍتهرو انهوه ډزې وکړې اودغو لاريو تهئې تاوان ورسوه يوشمير نورو ملي مجاهدينو دښاغلي اورنگ زيب خان پهمشرۍ دتنگي سرك چه دسپيلتوي اوڅغملي دوه عسکري چوڼۍ سره نښلوي پهزياته مسافه وران کړيدي دپاکستان پهعسکري تأسيساتو باندې دملي مجاهدينو دزياتو حملوپه اثردغه حکومت جټالوتکو دمنځنۍآزاد پښتونستان پهبيلو بيلوسيمو باندې خپلې حملې زياتې کړې دي .

## دعقرب ۱۷ـدښاغلي علي‌محمد بيټني پهمشرۍملي‌مجاهدينو پهپاکستانۍ چوڼۍحملې وکړې

دبيټنيو يوټولگي ملي مجاهدينو دښاغلي علي‌محمدخان بيټني پهمشرۍ دجنډولي پهعسکري چوڼۍډزې وکړې چهدچوڼۍ دساتونکو لهخوا هم دملي مجاهدينو په ضد متقابله ډزې وشوې دغهراز دملي‌مجاهدينو بل ټولگي‌دسر وکي په عسکري تاڼه ډزې اوتانۍ تهيې تاوان تهور ورساوه بل ټولگي ملي‌مجاهدينو دسورداك په سيمه کښې يوبوخ پل په چاودونکو موادو وران کړ. بل ټولگي مجاهدينو دتاجوري په سيمه دتلفون لين اوسټنې پهزياته مسافه لهمنځه وړيدې .

## دعقرب ۱۸ ـدپاکستان داستعماري حکومت په ضد مظاهرې رواني دي

هغه مظاهرې چه دگنداب پهسيمه کښې دپاکستان داستعماري‌حکومت په ضدشوې دي‌ددغه استعماري حکومت وارخطائي زياته کړيده . خرنگهچه دپاکستان استعماري حکومت ددغو مظاهرو دغړو دنيولو پهلړ کښې پهدې وختو کښې ښاغلي ملك‌پا ياب دين‌خان حليم‌زائي پهشبقدراوښاغلي‌اعلان خان‌دامير لعل‌خان‌حليم‌زائي زوي‌پهگنداب کښې‌بند يان کړي‌دي .خبرزياتوي چهدپاکستان داستعماري حکومت مامورين‌ددغسې کسانو بندې کولوته دوام ورکوي .

## دعقرب ۲۱ دآزادۍغوښتنې دفعاليت پهگناه دپاکستان داستعماري حکومت لهخوادنيولواو بنديانولوسلسله روانهده.

دپاکستان حکومت دپېښور دښار پهسکندر پوركښې درنگ جوړولو دکارخانې خاوندښاغلي بې‌نظيرخان دآزادۍ غوښتنې‌دفعاليت اودهغه حکومت پهاستعماري سياست باندې دسختې‌غندنې پهالزام دعقرب په۱۳ نېټه نيولې‌دې اوجيل‌تهيې ليږلې‌دی.

دغه راز د باجوړ او سيمو نکي ښاغلی عبدالشکور او د مومندو ښاغلی دوست محمد خان په ملکندا او بټگرام کښې د بمونو د اچولو په الزام د پاکستان د استعماري حکومت له خوا بنديان شو يدي .

**د عقرب ۲۲ـ** د پاکستان استعماري حکومت له خوا د بهوه بيري په عسکري سيمه کښې د ټيلفون د مزي او ستنو د پرله پسې له منځه وړلو په اثر د احمدخيلو او بهادر کلي د کليوشمېر او سيدو نـکي بنديان او تر سختي شکنجې لاندې نيول شو يدي . پاکستاني حاکمان په هر ډول شکنجو دوی مجبوروی چه اقرار وکړي چه د ملي عوامي گوند د مشرانو په لمسون يې دغه اقدامات کړيدي .

## د عقرب ۲۳ـ د آزادۍ غوښتونکو بنديانول د پاکستان د استعماري حکومت له خوا دوام لري .

د ملي عوامي گوند غړي ښاغلی ظاهرخان ښاغلی غني خان، ښاغلی محمد يوسف خان د پاکستان د حکومت له خوا د آزادۍ غوښتني د فعاليت په گـناه بنديان شو يدي .

## د عقرب ۲٦ـ په محکوم پښتو نستان کښې د خلکو غونډې منع شو يدي .

د هغه عمومي هيجان له مخې چه په محکوم پښتو نستان کښې روان دی د پاکستان حکومت پرون له غرمې نه وروسته په پنځو بجو د نظامي قانون په اساس په ټول محکوم پښتو نستان کښې د خلـکو غونډې تولني او هر ډول ملي حرکت د امنيت ضد گڼلې دی او تر راتلونکو لسو ورځو پورې يې هغه منع کړ يدی .

## د عقرب ۳۰ـ د پېښور او مردان په بيلو بيلو ضلعو کښې د پاکستان د استعماري پلانونو په ضد سختې مظاهرې وشوې.

د پېښور او مردان د ضلع په بيلو سيمو کښې د عقرب په ۲۳ نېټه سختې مظاهرې وشوې او په داسې حال کښې چه د زرگونو خلکو په لاس کښې تور بيرغونه وو د استعمار او د يو نټ د استعماري پلان په ضد ناری وهلې مظاهره کو و نـکو د ټولو سياسي بنديانو د ژر خوشې کيد و غوښتنه کو له او د پاکستان له حکومت څخه ئې غوښتنه کوله چه د پښتو نستان د خلکو په حقوقو اعتراف وکړي د دغو مظاهرو په اثر د پېښور او مردان د ضلع مربوط يو شمير زيات خلك بنديان شو يدي، د دغو گرفتاريو سلسله روانه ده.

## د قوس ۴ ـ په کراچۍ او راولپنډۍ کښې سرله پرون نه تر دوو مياشتو پورې هر ډول ټولني او مظاهرې منع کړی شوې .

د کراچۍ راديو پرون مازديگر خبرورکړ چه په کراچۍ او راولپنډۍ کښې د خلکو ټولني د دوو مياشتو د پاره منع شو يدي . د دې اعلاميې په موجب هر ډو ټولنې مظاهرې او د پنځو تنو نه د زياتو کسانو ټولنه د دغو ښارونو په عمومي مرکزو کښې منع شو يدي .

ښاغلی میرعلم خان مومند دآزادۍ غوښتنې په گناه د پاکستان استعماري حکومت بندي کړی. له مرکزي محکوم پښتونستان پېښور خبروائي چه د پاکستان استعماري حکومت په ښوقدر کښې دمومندو ښاغلی میرعلم خان حلیمزی دآزادۍ غوښتنې دفعا لیتو په اثر بندي کړی .

## د قوس ٥- د باجوړ نامتومجاهد ملك نوکرخان سالارزی مړشو .

ملك نوکر خان سالارزی چه دسالارزو دقوم یو آزادي غوښتونکي مشراو د باجوړ معروف مجاهد وو دهغې مزمن ناروغی په وجه ٥ دقوس په ٢ نیټه مړشوچه د پاکستان له استعماري قواوو سره په جگړه کښې دیوه ټپ اخستلو نه وروسته ورته پیداشوی و نوموړی د باجوړ یو باعزم آزادغوښتونکی وو اودده د بی وخته مرگ د پښتونستان په ملی محافلو کښې دسخت تالم اوتأثر باعث شویدی .

## دقوس ٦ - په پېښور کښې د پاکستان استعماري حکومت په خلکو سخت بندیز و نه ایښې دی .

د پېښور په ښار اودهغه په شاوخوا کښې دملی مجاهدینو له خوا د بمونو داچو لو پېښې اونور حوادث برله پسې روان دي خو پاکستاني حاکمان په اخبارو نو کښې د هغو د خپریدو مخه نیسي لکه معلومه شویده چه ددغو پېښو په الزام یوشمیر زیات کسان د پاکستان دحکومت له خوا بندیان شوی او دخلکو په عادي ژوند باندې بندیزو نه زیات شویدی .

## دقوس ٧ - ښاغلی خان میر خان یې په دوامداره حبس محکوم کړ .

د پاکستان استعماري حکومت دمنځنی پښتونستان د دوړو دقام ښاغلی خان میرخان چه د پښتونستان دآزادۍ دلاری مشهور مجاهداود استعمار کلك دښمن ؤ د منځنی پښتونستان په محکومه سیمه کښې یې په دوامداره حبس محکوم کړیدی .

## دقوس٨- په کویټه کښې یوه ستره مظاهره وشوه او د پاکستان داستعماري حکومت دمطالعو په ضد ناری وهل کیدی .

په کویټه کښې ستره مظاهره وشوه او په هغې کښې د کویټې دښار په زر گونو خلکو گډون کړیؤ اومظاهره کوونکو دکویټې په کوڅو اوبازارو کښې د پاکستان دحکومت داستعماري دتیریو په ضد ناری وهلی اودتولو سیاسي بندیانو دسمد ستي خوشی کیدوغوښتنه ئې کوله خبرداهم وایي چه د پاکستان استعماري حکومت یوشمیرزیات مظاهره کوونکی بندیان کړیدي چه په هغې جمله کښې ښاغلی معصوم اڅکزی هم شامل دی .

## دقوس١٢-دمومندو دحلیمزو دقبیلې مشرانو پاکستاني حکامو ته اخطار ورکړ

دقوس په ٢ نیټه په کمالی کښې مهمه قومي جرگه شوی وه چه په هغې کښې دمومندو دحلیمزو دقبیلې مشرانو اوډیروخلکو گډون کړیؤ جرگې د پاکستان د حکو مت

ښاغلی سردارمحمدداؤد صدراعظم چه‌دڅرخی په‌پله کښي دوسلو ترمیمولو دفابریکي دبنسټ تیږه‌ږدي

د پلاستيك جوړولو د نوي فابريکې يوه برخه

داستعماري پروګرامو سخت وغندل اووې غوښتل چه د پاکستان حکومت دې ډېر ژر هغه پوشمېر ملـکان سمد ستي خوشي کړي چه په شبقدر او نورو محکوموځايو کښې ئې بنديان کړي دي او په مومندو باندې له تيري اومداخلې نه دې لا س وا خلي جرګې دپاکستان حکومت ته اخطار ورکړ چه که ددوي په چارو کښې خپلې مداخلې ته دوام ور کړي، عواقب به يې ډېر وخيم وي ځکه چه د مو مند و خلك په هيڅ صورت دهغه استعماري نقشو ته غاړه نه ږدي اود آزادۍ دساتلو په لياره کښې ځان له هيڅ ډول قرباني څخه نه سپموي .

## د قوس ۱۳ـ دپاکستان دمخصوصو اطلاعاتو داداري ماموراوځو تنه نور دمسعودو ديوې ډلې مجاهدينو له خوا نيول شول

راغلي خبر دي چه د مسعودو د يوې ډلې ملي مجاهدينو دپاکستان دمخصوصو اطلاعاتو داداري يو تن مامور او څلورتنه نور بنديان کړي دي. دمسعودو مجاهدينو د بسيته خان په مشرۍ د قوس په ۳ نيټه دمد يجوي او سروګي په سيمه کښې د نوموړي مامور په موټر حمله وکړه او موټر يې ودراوه د پښتونستان ملي مجاهدينو پنځه تنه بنديان کړي دي .

## دقوس ۱۴ـ دڅلوروتنو پاکستاني عسکر ووژل

دښاغلي علي محمد په مشرۍ يوډولـګې ملي مجاهدينو دخيروخيلو په عسکري ډانه حمله وکړه اود هغې نښتې په نتيجه کښې چه دملي مجاهدينو اود تاني دساتونـکو ترمنځ وشوه څلور تنه پاکستاني عسکر مړه او دوه تنه ټپيان شول دملي مجاهدينو نورو ډلو دبخملو، لميس خيلو، تجارۍ اوکجو رۍ په عسکري تانو باندې ډزې کړي دي.

دپاکستان استعماري حکومت دملي مجاهدينو داقداماتو دسختيدو په اثرد بيټنو دقبيلې دوه تنه مشران ښاغلي رضاخان اوښاغلي سيدحسن خان ددغې قبيلې د افرادو ډارولو په غرض په محکومه سيمه کښې بنديان کړي دي او د بنو جيلخانې ته يې لېږلي دي او همـدارنـګه دغې سيمې ته يې دخوراکي مـوادو ولېږلو مخه بنده کړي دي .

## دقوس ۱۵ ـ دپاکستان استعماري حکومت بياد خان عبدالغفارخان د بند موده اوږده کړه.

دپاکستان استعماري حکومت دروان کال دقوس په ۷ نيټه بياد پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان د بند موده اوږده کړې ده . داڅلورم ځل دی چه د دغه ستر مشر د بند موده اوږديږي. خان عبدالغفارخان د بنو دضلع او ډيره اسماعيل خان تر منځ په سرحد کښې هغه وخت چه دی دخپل هيواد دجنوبي سيمو په کتنه بوخت ؤ د پاکستاني حکامو له خوا ونيول شو اود پاکستان دحکومت دغه اقدام د پښتو نستان د خلکو دسختې پارسيدنې باعث شو اود پاکستان دملکي قوانينو : نه اطاعت حرکت دپښتو نستان

دخلکو لهخوا شروع‌شو اودسیاسی حربی، ادبی‌ورځپاڼه لیکونکو‌اود ینی شخصیتونو په‌ګډون دزرګونو تنه دپاکستان جیلخانوته لاړل اوددوی یوزیات شمیر دپاکستان په‌بند یخانو کښی مړه شوی‌دی. خبرځر ګندوی چه‌د خان‌عبدالغفارخان‌اود پښتونستان داکثرو سیاسی بندیانو صحی حالت دپاکستانی حکامو دخرابی اودښمنانه روش په اثر سخت خراب شویدی خوسره لهدی‌هم دپښتونستان دخلکو احتجاج ر و ان دی او تراوسه لاهم دپاکستانی حکامو پهواسطه د پښتو نستان له خلکو څخه نو ی ځهر ی چیلخانوته معرفی کیږی .

## دقوس ۱٦ - څورتنه آزادی غوښتونکی دپاکستان داستعماری‌حکومت لهخوابندیان شول

دپښتونستان دکور می دناوی دتو ریو دقبیلی د وه تنه آ زادی غو ښتو نکی دپاکستان داستعماری حکومت لهخوا دآزادی غوښتنی په‌ګناه په عمر ی بند محکوم شوی اودویرهٔ اسمعیل‌خان عمومی زندان ته استو ل شو ی د ی . له آز ا د منځنی پښتونستان څخه راغلی خبروایی چه‌د کورمی د ناوی د تو ر یو د قبیلی آ ز ا د ی غوښتونکی ښاغلی عبدل جان اوښاغلی شونهی خان دآزا د ی غو ښتنی په ګناه په عمری بند محکوم شوی‌دی .

## دقوس ۱۸ - دمومندو دملی‌مجاهدینو لهخوا د قوس په ۱۵ نیټه‌یو پاکستانی‌اجیر ووژل شو

یو پاکستانی اجیرد یکه‌غونهی پهټانه کښی دمومندو دملی مجاهدینو لهخوادقوس په ۱۵ نیټه ووژل‌شو دآزاد شمالی پښتونستان دمومندو خبروایی چه دپښتونستان دمومندو مجاهدینو پاکستانی اجیر محمدیعقوب چه پهخان مشهور ؤ اود علاقه دا ری د نماینده پهحیث ئی دیکه‌غونهی دژاندارم پهټانه کښی وظیفه درلوده وواژه‌دپاکستان استعماری حکومت ددغه قتل لهکبله دغی سیمی‌ته دلری او نژدی کلیو خلك ترسخت فشار اوشکنجی لاندی نیولی دی .

## دقوس ۲۲ - دمونهی پهعسکری کمپ پرله پسی ډزی وشوی

دلرسدین دسالار زویوشمیر ملی مجاهدینو دمونهی‌په‌پاکستا نی عسکر ی کمپ ډزی وکړی . دغو پرله پسی ډزو څوساعته دوام درلود خبرداهم وایی چه‌دپاکستان استعماری حکومت د عسکرو اود ملی مجاهدینو دتلفا تو احصا ییه تر اوسه پو ری نده رارسیدلی .

## دقوس ۲۷ - دپیښورپهصدرکی دپاکستانی ژاندارمو دقرارګاه په خواکی‌یوه ستره‌چاودنه‌وشوه

دپیښور پهصدرکی دپاکستانی ژاندارمو قرآرګاه تهنژدی سختی چاو دنه شوی ده اودپاکستانی پولیس ددغه کار کوونکو دپیدا کولو په لټه کی دی خبر داهم

وائي چه ښاغلی عزيز او ښاغلی اکبر علي د پاکستان دحکومت لهخوا په هغې چاو د نه کې د لاس لرلو په ګناه نيول شوي او نا معلومې بنديخانې ته ليږل شوي دي چه څو ورځو پخوا د پېښور دسرکې دروازې پهشاوخوا کې شوي وُ.

## دقوس۲۸-ددوړ يو شمير ملي مجاهدينو دهرمز د کلي پهخواکې دبرېښنا ستنې له منځه وړيدې .

ددوړ و يو شمېر ملي مجاهدينو دهرمز د کلي په شاوخواکې دبريښنا ډېرې ستنې له منځهوړيدې دپاکستان استعماري حکومت دهرمز د کلي خلك داوو زرو کلدارو نقدي جريمې په ورکولو محکوم کړيدې .

## دقوس ۲۹-په لندن کې دبين المللي مصئونيت ټولنې غوښتې دي چه ژردې خان عبدالغفارخان خوشي شي.

په لندن کې يوې ټولنې دخان عبدالغفار خا ن سمدلاسه خوشې کيدل غوښتي د ي د غې ټو لنې چه د بين المللي مصو نيت په نامه ياد يږي اعلا ن کړ يد ي چه خا ن عبدا لغفار خان دعدم تشدد نه قربان دی دغې تو لنې خان عبدا لغفارخان د کال بندی بللي او اعلان ئي کړيدی چه ددی بندتوب دهغو مصايبو يوه نښهده چهپه نړۍ کې يو مليون بنديانو ته پيښ ني تو لنې ويلي دي‌چه د۱۹٤۷کال نهوروسته خان عبدا لغفارخان دخدا يي‌خدمتګارانو دتحريك دمشرۍ‌په ګناه چهمقصد يې د پښتنو دحقو قولاس ته راوړل دي تقريباً په پرله پسې تو ګه په زندان کې پروت دی.
او دډيروغوښتنو سره سره ندی خوشې شوی .

ټولنې د دسمبرپه لسم چه دبشر دحقوقو بين المللي ورځ مراسم په ځای کړ ی او په هغې ورځ يې دهغو بنديانو په باره کښې چه دځپل وجدان دغږ پر اساس رفتا رکوی ددی دپاره چه له دوی سره انسانيت کارانه پيش آمدوشی يوه دستو ر نامهخپره کړ يده چه دهغې په اساس سياسی بنديانوته چه له دوی سره دعادی مجرمينو نه ډيربد سلوك کيږی تأمينات حاصل شي په دغې دستورنامه‌کښې خان عبدا لغفارخان دسږ کال بندی بلل شويدی .

## دقوس ۳۰-ملي مجاهدينو په پاکستاني نظامي تأسيساتو پرله پسې ډزې وکړې

دسالارزو يو ټو لګی ملي مجاهدينو دملك جانخان اوملك حميدالله خان په مشرۍ دمو ندې په عسکری کمپ ډزې وکړی چه دملی مجاهدينو په ضدهم دکمپ دساتونکو له خوامتقابله ډزی وشوی .
دغه ر از داتمانخيلو يو بل ټوالګی ملي مجاهدينو دعليزو په عسکری کلا ډ زی وکړی اوداتمانخيلو يو شمېرنورو ملي مجاهدينو دښارد بيټنی په عسکر ی تا ڼه ډ زی وکړی .

## د جدی اول - د مومندو بیلو بیلو قبیلو د پاکستان استعماری حکومت ته اخطار ورکړ

د قوس په شلمه نیټه د عیسی خیلو، برهان خیلو، او د گنداو د حلیمزو د قبیلو په گډون ستره قومی جرگه شوی ده او د غه راز د قوس په ۲۵ نیټه د ملك گلاداد او ملك حکم سید په مشری د ناقی په کلی کښی یوه بله ملی ستره جرگه شوی وه چه په دواړو جرگو کښی گڼ شمیر خلکو او قومی مشرانو گډون درلود په دغو جرگو کښی قومی مشرانو د پاکستان استعماری او تیری کوونکی پروگرامونه بیان کړل او قوم ته یی اخطار ورکړ چه که د پاکستان استعماری حکومت د تیری په مقابل کښی په پوره یووالی او صمیمیت ونه دریږی د دوی د قوم او وطن آزادی ته به سخت خطر وړاندی پیښ شی . د قومی مشرانو د غه وینا وی د جرگی د شاملینو د سخت شور او هیجان باعث شوی او له هری خوا آواز راپورته شو چه مونږ حاضر یو د خپلی خاوری او د قوم د آزادی د ساتنی په لیاره کښی خپل سرونه او مال قربان کړو .

خبره هم وایی چه په دغو دواړو جرگو کښی فیصله وشوه چه ټول خلك خپل ذات لبینی اختلافونه هیر کړی او په گډه او متحد صورت د خپل آزادی د ساتلو په لیار کښی د خپل ژوند تر وروستی سلگی پوری مبارزی وکړی . خبر زیاتوی چه د دغی فیصلی جریان د قوم د مشرانو له خوا پاکستانی حاکمانو ته ابلاغ شو .

## د جدی ۲ - د پاکستان د استعماری حکومت له خوا د نیولو او بندیانو او سلسله روانه ده

د پاکستان استعماری حکومت په شوقدر کښی ښاغلی یعقوب خان، ښاغلی غلام محمد خان، ښاغلی سید احمد خان او د دوی دوه تنه ملگری نیولی دی . د دوی د نیولو علت د پاکستان د پولیسو له خوا په دی سیمه کښی د بمونو د چاودونکو په وروستیو پیښو کښی د دوی گډون ښودلی دی . د غه راز د پاکستان استعماری حکومت د مردان او سیدونکی ښاغلی غواص خان د آزادی غوښتنی د فعالیت په گناه بندی کړی دی .

## د جدی ۳ - د پاکستان د استعماری حکومت د استعماری پلانو نو د غندنی په ترڅ کښی یی د خپلو مجاهدو دوام تصویب کړ

د قوس په ۲۸ نیټه د موسی خیلو د قبیلی د سیمی مربوط د غنم شاکی ستره جرگه شوی وه چه په هغی کښی د موسی خیلو د قبیلی مشرانو او گڼ شمیر خلکو گډون درلود ملك مدار خان، ملك تاج محمد خان او ښاغلی میران گل خان جدا جدا بی وینا وی وکړی او د پاکستان د استعماری حکومت هغه پروگرامونه یی بیان کړل چه د مومندو د آزادی او خاوری په ضد د تیری په باب کښی ؤ او تاکید یی وکړ چه باید د مومندو قبیله تل د خپلی خاوری په ساتلو کښی کوښښ وکړی او د هر ډول قربانی د پاره تیاروی . جرگی د رایو په اتفاق تصویب وکړ چه د مومندو قبیله به د استعمار په ضد خپلو مجاهدو ته دوام

ورکړې او د پاکستان د حکومت استعماري پروګرامونه په شند کړي .

## د جدی ۵ - ملي مجاهدینو د پاکستان دری عسکری تاڼوته اوروا چاوه

د ملي مجاهدینو قولګي د خیسارې په سیمه کښې دریو عسکری تاڼو ته اوروا چاوه د پاکستان استعماري حکومت له دغه کبله د دغې سیمې په لس زره کلدارو نقدی جریمې محکوم کړیدی .

## جدی ۶ - د مومندو مشرانو په درنو جرګو کښې د پاکستاني استعماري دغندنې په ترڅ کښې د هغه استعماري حکومت ته اخطارورکړ

د قوس په دیرشمه نیټه د عیسی خیلو په ناوه کښې ستره ملي جرګه او یوه بله ستره مهمه جرګه د جدی په ۲ نیټه د حاجي صاحب په مشرۍ د شیخ ذکریا بابا په زیارت کښې شوي وه چه دواړو جرګو کښې د مومندو د قبیلې قومي مشرانو او عالمانو او زیات شمیر خلکو ګډون کړي ؤ په دواړو جرګو کښې د پاکستان په استعماري سیاست سخت احتجاج شوی دی او د پاکستان حکومت ته اخطار ورکړی شو چه د مومندو د قبیلې د خاورې د نیولو هوس و نه کړی ځکه د مومندو خلك قطعي تصمیم لري چه د خپل قول موجودیت په قربانۍ سره د خپلې خاورې او قام د آزادۍ دفاع وکړي . جرګو دخوراکي موادو د صادریدلو بندولو اقدام چه په دې وختو کښې د مومندو په خاوره کښې د پاکستان د حکومت له خوا نیول شویدي یوه استعماري حربه ګڼلې ده او اعلام یې وکړ چه د خوراکي موادو د صادریدو بندیدل او اقتصادي محاصره نشي کولی چه مونږ له خپل تصمیم څخه واړوي دواړو جرګو خپلو حلیمزو او ترکزو وروڼو ته ډاډورکړ چه د دوی د خاورې په هره برخه کښې د دفاع په باب کښې د مومندو قول خلك له دې سره څنګ په څنګ قرباني ورکوي او د پاکستاني حکومت د تیری په ضد د مبارزې په میدان کښې د دوی یوازې نه پریږدي .

## د جدی ۷ - که چیری د خان عبدالغفارخان ژوند له خطر سره مخامخ شي نو به سختي ویني توی شي

د پېښور په چوك یادګار کښې د ښاغلي محمد افضل بنګښ په مشرۍ یوه لویه غونډه شوې وه چه د مشرانو، عالمانو د ایالتي اسامبلي او پارلمان د نمایندګانو ادیبانو او شاعرانو په ګډون له پنځوس زرو څخه زیاتو کسانو په کښې ګډون کړی ؤ ښاغلي محمد افضل بنګښ پخپله وینا کښې وویل دا رسیدلي خبرونه وایي چه د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفارجان د بهوډې په ناروغۍ او د سږو په کمزوري اخته شوی او په دې اندازه ضعیف شویدی چه خو ځیده ی نشی ده داهم وویل سر لدې چه دی سخت ناروغ دی د پاکستان استعماري حکومت د ده علاج لپاره کوم اقدام نه دی کړی که چیری خدای دی نه کړی د دغه د ملي ستر مشر ژوند له خطر سره مخامخ شي سختي وینې به توی شي او د هغو مسولیت به د پاکستا ن

دحکومت په غاړه دي ددي غونډي شاملینو ناري وهلي چه زمونږ ستر مشر او نور سیاسي بند یان خوشي شي زمونږ په ملي حقوقو اقرار وکړي او په یوه یونټ کي زمونږ دخاوري دداخلولو پروګرام فسخ کړي .

غونډي تصویب وکړ چه باید خان عبدالغفار خان او نور سیاسي بند یان دي ژر خوشي شي اوددوي جایدادونه دي بیرته ورکړل شي همدغه راز هغې بلې غونډي چه دمسلم لیګ دګوند په اهتمام دقوس په ۲۸ نیټه په پیښور کي شوي وه د خان عبدالغفار خان دناروغۍ په نسبت ئي اندیښنه څرګنده کړه او دپاکستان له حکومت څخه ئي وغوښتل چه دی ژر خوشي کړي .

## دجدی ۸- څوتنه آزادي غوښتونکي دآزادۍ غوښتنې په ګناه د پاکستاني استعماري حکومت له خوا بندیان شویدي

د پاکستان حکومت دکورمي دناوي اوسیدونکي ښاغلي ګل افضل خان او ښاغلي شیندي خان دآزادۍ غوښتني دفعالیت په ګناه په دوامدار بند محکوم کړیدي .

## د جدی ۹- د بارام خیلو مومندو یو ستري جرګې د پاکستان استعماري حکومت ته اخطار ورکړ .

دقوس په ۲۰ نیټه په پنډ یالۍ کي د برام خیلو دمشرانو عالمانو اونورو خلکو یوه ستره قوي جرګه شوي وه په دغې جرګه کي ملك محمد اکبرخان ، ملك میاجانخان ملك باورخان ، ملك حمزه خان اونورو مشرانو جذابي وینا وي وکړي او دمومندو دخاوري دنیولو په باره کي ئي دپاکستان دحکومت استعماري پروګرامونه بیان کړل ، جرګې دپاکستان داستعماري حکومت سیاست وغانده او دهغه حکومت ته ئي اخطار ورکړ چه که دخپلو متجاوزانه پروګرامونو څخه لاس وانخلي ناوړي نتیجې به ورکړي .

## دجدی ۱۰- دکوډاخیلواودګنداوپه ستروجرګوکي دپاکستان داستعماري سیاست دغندنې په ترځ کي دخپلي خاوري ددفاع دپاره هرډول چمتوالي څرګند کړ

دجدی په دوهمه نیټه د ملك حمدالله خان په مشرۍ په ګنداو کي ستره جرګه شوي وه چه په هغې کي یوزیات شمیر خلکو ګډون کړي ؤ دغه راز دجدی په ٤ نیټه یوه بله ملي او ستره جرګه دکوډاخیلو دملك امین خان په مشرۍ دکوډاخیلو دخار بندۍ په کلي کي شوي وه چه په هغې کي دګډا خیلو ،خوایزو، حلیمزو او بابازو دقبیلو مشرانو ،عالمانو ، نماینده ګانو اویو زیات شمیر خلکو ګډون کړي ؤ په دغو جرګو کي د پاکستان د استعماري حکومت تیري کوونکي سیاست سخت غندل شوي دي او دمومندو دبیلو بیلو قبیلو مشرانو په خپلو وینا وکي دخپلي خاوري ددفاع په لیاره کي دمومندو دقوم تیاري څرګند کړي اوتصویب یي وکړ چه دمومندو په هره برخه

د تیری په صورت کی مدافعه وکړی او تر آخری سری اود ژوند تر وروستی سلګی پوری د خپلی آزادۍ او وطن د فاع وکړی .

دجدی ۱۱ ـ د پاکستان استعماری حکومت ته د مومندو د باباړو قبیلی اخطار ورکړ.

له آزاد شمالی پښتونستان خبر وائی چه دجدی په ۳ نیټه د باباړو د قبیلو د مشرانو مخورو، نمایندګانو او زیاتو خلکو په ګډون د مومندو په شمشاکی ستره جرګه شوی وه پدغه جرګه کی ملك محمد اسلم خان ، ملك تجول خان ، ملك مجاهد خان ، ملك مصاحب خان او ملك محمد ایوب خان د پاکستان د حکومت د هغو استعماری پروګرامونه په شاو خوا کی مهمی وینااوی وکړی چه تل ئی د مومند و د خاوری د نیولو د پاره جوړ کړی او جوړوی ئی هغه حکومت ته اخطار ورکړ چه هیڅکله به په خپلو دغو هیلو بریالی نشی ځکه د مومندو خلك به د خپلو ښئو ناتو د وطن د آزادۍ او د قوم د ساتلو د پاره د هر ډول قربانی له ورکولو ځخه ځانونه و نه ژغوری جرګی تصویب وکړ چه د مومندو د خاوری په هره برخه باندی د تیری په صورت کی د مومندو خلك به سر او مال د خپلو حقوقو او خاوری دفاع کوی او هم ئی خپلو د ګـندااو ورونو ته ډاډ ورکړ چه له دوی سره به له هر ډول مرستی او همکاری ځخه و نه سپموی .

## د جدی ۱۴ ـ د مومندو د کوډا خیلو د قبیلی په ستره جرګه کی د پاکستانی حکومت سیاست و غندل شو

د جدی په ٤ نیټه د کوډا خیلو د ملك محمد جعفر خان په مشرۍ د کوډا خیلو په زاړه کلی کی ملی ستره جرګه شوی وه چه په هغی کی د کوډاخیلو د قبیلی مشرانو مخورو او یو زیات شمیر خلـکو ګډون کړی و پدغه جرګه کی ملك جعفر خان ، ملك منور خان ، ملك حبیب او ځوتنو نور و مشرانو مهمی وینااوی وکړی او د پښتونستان د ملت په مقابل کی د پاکستان استعماری سیاست په تیره بیا د مومندو د قبیلی په ضد د هغه حکومت تیری ګوونکی رویه او اقتصا دی محاصره سخته و غندله او د پاکستان داستعماری حکومت د تیر یو په مقابل کی د هر ډول قربانی دورکولو په باب کی خپل تصمیم او ددغه رازد ګـند اود خپلو ورونو مرسته او ملاتړی یو ځل بیا تصویب کړ.

## د جدی ۱۵ ـ د مومندو ا تمر خیلو قبیلی په یوی ستری جرګی کی د پاکستان حکو مت ته اخطار ور کړ

دجدی په ۱۰ نیټه د شیـخ ذکریا بابا په زیارت کی مهمه قومی جرګه شوی وه چه په هغی کی داتمر خیلو د قبیلی عالمانو ، نمایندګانو ، مخورو او ګڼ شمیر خلـکو ګډون کړی ؤ او یو ځل بیا د قومی مشرانو دوینا او د جرګی د تصویب په ضمن کی د پاکستان استعماری حکومت ته اخطار ورکړی شو چه د مومندو د قوم په خاوره او آزادۍ باندی له تیری ځخه واوړی جرګی اعلام وکړ چه د مومندو قوم قطعی تصمیم نیولی چه له خپلو ښئو ناتو ځخه په هره بیه چه وی دفاع وکړی دغه راز په همدی نیټه بله ستره جرګه په ګات و رسك کی شوی وه چه په هغو کی د خوایزو د قبیلی سترو

شخصیتو او یو زیات شمیر افرادو گډون درلود . په دغه جرگه کی ملك علیم خان
ملك رحمت خان، ملك حیدر خان او شو تنو نورو قوی مشرانو . تدابی وینااوی وکړی
جرگی تصویب وکړ چه دخپلی خاوری او آزادی ددفاع دپاره دهر ډول قربانی ور
کولو ته تیار یوی او هیڅ کله به د پاکستان استعماری حکومت ته موقع ورنکړی شی
چه دمهمندو په خاوره کښی خپل استعماری پلانونه عملی کړی جرگی دگند اخیلو ورونو
ډاډ ورکړ چه دمومندو ټول خلك به د استعمار په ضد مبارزه کی په خپل ټول طاقت
او موجودیت به ددوی ملاتړ وکړی.

## دجدی ۱۸ ـ دپښتونستان دیو نامتو مجاهد له خوا ښینی ډ که مړینه

جناب صنوبر حسین مومند چه په کاکاجی مشهور ؤ او د انگلیسی او پاکستان
په استعماری دورو کی د پښتونستان دملت دآزادی غوښتنی د نهضت نامتو مجاهد او
او د پښتونستان یو مشهور ادیب ؤ دجدی په ۱۲ نیټه داوږدی ناروغی په اثر وفات
شو مرحوم صنوبر حسین دخپل عمر ډیر برخه په آزاد شما لی پښتونستان کی د خلکو
د ذهنونو د تنویر په لیاره کی تیر کړی او څو ځله د پاکستان د حکومت له خوا په شاقه
او اوږده بند محکوم شوی دی دده مرحوم په جنازه کی د مرکزی محکوم پښتونستان
دسیمو ادیبانو ، عالمانو ، سیاسی کسانو او په زرگونو خلکو گډون کړی ؤ او
عقیده یی څرگنده کړه چه د دغه نامتو مجاهد او لوی ادیب او لیکوال وفات د پښتونستان
ملی قوا لنی ډیری غمجنی کړی دی .

## دجدی ۲۰ ـ د یو یونټ په خلاف دیو متحده محاذ د جوړولو کار بلکل پای ته رسیدلی دی

دسند یو ولسی جرگه د محکو پښتونستان د ولسی او مشرانو سره د یو یونټ په خلاف
د متحده محاذ د جوړولو او سلا مشوری کولو د پاره پیښور ته رارسید لی او په مفاهمه
بو ختده ده . دا جرگه به د محکوم پښتونستان دوره کوی په لو یو قومی جلسو کی به گډون
کوی او د لو یو ملی مشرانو سره به گوری . د غسی دوری او جرگی په محکوم جنوبی
پښتونستان محکوم مرکزی پښتونستان او سند کښی پخوا الدی هم شوی دی او لکه چه د سند
مشهور ولسی مشر ښاغلی محمد ایوب خان کورو ویلی دی د یو یونټ په خلاف د یو متحد
محاذ جوړولو کار بلکل آخر ته رسیدلی دی او ډیر ژر به اعلان شی . ښاغلی کورو وویل ټول
هغه حز بونه چه د دیموکراسی ژوندی کولو دمبارزی د پاره په جوړیدو نکی متحده محاذ
کښی شریکیږی د یو یونټ خلاف به د سند او محکوم پښتونستان د خلکو
دجذباتو احترام وساتی او د یو یونټ د ماتولو په کار کښی به ور سره مرسته
وکړی.

دجدی په ۱٤ نیټه دسالارزو یوی مضبوطی ډلی ملی مجاهدینو دملك مطول خان
په مشری د مونډی په عسکری کمپ حمله وکړه او ددوا ډو خواؤ ترمنځ یو اوږده جگړه
وشوه چه په نتیجه کښی د پاکستان دعسکرو نه دری تنه مړه شوی او هم یوڅه وسله د ملی

مجاهدینو لاس ته ورغلي دي. د ملي مجاهدینو له ډلې نه ښاغلی کثر خان شهید او ښاغلی عبدالغفار خان زخمي شوي دي. د آزادمنځي پښتونستان ربوټ وايي چه د کورمي د خلکو يوې ډلې ملي مجاهدینو د پاره چنار په توتکي د ملیشه ؤ په چوڼۍ د ډوډۍ پکو باڅونه چلولي دي.

د جدي ۲۲ ـ د پاکستان حکومت د خدایي خدمتگارو یو مشر ښاغلی عستم خان د مردان د ضلعې د خوانۍ د تحصیل او سیدونکی د آزادۍ غوښتنې په گناه بندي کړی دی. دغه شان د پاکستان حکومت د چارسدې یو زلمي شاعر ښاغلی غلام قادر وریت په یوه ملي جلسه کښې د یو قومي شعر د ویلو په گناه نیولی دی.

بل خبر وايي چه څو ورځې پخوا د بټگرام د پولیس تاڼې په تانه دارو په شپه قدر کښې ډزې شوې وې او یو تن پاکستاني سپاهي په گناه زخمي شوی ؤ. د پاکستان حکومت د دغې پېښې په اثر د دغې علاقې اته تنه بېگناه او ناخبره کسان گرفتار کړي دي.

د جدي ۲٤ ـ د جدي په ۹ نېټه د اتمانخېلو په اياتي کلي کښې يوه لويه ملي جرگه وشوه. همدغه شان د جدي په ١٤ ورځ د ملك غلام سرورخان په مشرۍ يوه لويه جرگه په متشه کښې وشوه په دغو دواړو لويو جرگو کښې قومي مشرانو د پاکستان د استعماري حکومت د تجاوزونو خلاف د خپل نفرت او کرکې اظهار وکړ. جرگو د خپل وطن د حفاظت د پاره د هر قسم قربانۍ ورکولو عهده بیا تازه کړ.

د جدي ۲٥ ـ د جدي په ۱۳ ورځ په ښېرنه سته کښې چه د اتمانخېلو په علاقه کښې د جرگې یو مشهور ځای دی یوه لویه قومي جرگه وشوه چه ورته د قام مشران او په ډېر لوی شار کښې ولسي خلك راغلي ؤ. جرگې د پاکستان د حکومت د تجاوزونو او استعماري سیاست خلاف ډېر نفرت ښکاره کړ او بو ځلې بیا يې د پاکستان استعماري حکومت ته خبر داری ورکړ چه د پلچوړ قومونه به د خپل وطن د آزادۍ د ساتلو په لیاره کښې د هیڅ قسم قربانۍ څخه ځنگ و نه کړي او د پاکستان استعماري حکومت ته به موقع ورنکړي چه خپل استعماري پروگرام د باجوړ په خاوره کښې سرته ورسوي. د آزاد منځي پښتونستان ربوټ دی چه د وزیرو د محمودخېلو د قبیلې ملي مجاهدینو ځوانانو د جدي په ۱۰ نېټه او ۱۲ نېټه د خجورۍ په تنگي صبرلي او میرامشاه کې د تیلفون ستنې اوهزی په اوږده مزله له منځه وړې دي.

د جدي ۲٦ ـ د خدای خدمتگارو د ملي گوند ستر شخصیت ښاغلی نامدار خان په دې وختو کښې د پاکستان په جېل کښې مړ شوی دی. دی له دوو کلونو راپه دې خوا د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په گناه د پاکستان په جېل خانه کښې تر سخت عذاب او شکنجې لاندې نیول شوی ؤ او د دغو شکنجو په اثر بالاخره مړ شو. د دغه نامتو مېړه شهادت د پښتونستان په ملي ډلې کښې د فوق العاده پاریدنې موجب شوی دی او د دغې پېښې په ضد د خلکو له خوا اجتماعي غونډې روانې دي.

**دجدی ۲۷ -** پدی ورځو کښې دملی عوامی ګوند مشرانو او لارښو ونکو دپېښور په تاکال کښې دپارلمان دغړی ارباب سیف الرحمن ترر یاست لاندی مهمه غونډه کړې وه په دی غونډه کښې هغه مشوش کوونکی خبرونه ترغور لاندی و نیول شول چه پدی ورځو کښې دخان عبدالغفار . ښاغلی اجمل خټك ، خان عبدالصمد خان اڅکزی او یو شمیر نورو ملی مشرانو دناروغۍ دسختیدو په باره کښې خپاره شو یده غونډه دمحکوم پښتونستان او سندیو حالاتو هم غور وکړاو په پای کښې د پاکستان حکومت څخه غوښتنه وشوه چه د پښتونستان ټول سیاسی بندیان پرته له کوم قید او شرط څخه ډیر ژرخوشی کړی. همدغه راز دمحکوم مرکزی پښتونستان یو شمیر نامتو کسانو یوه ګډه، وینا نشر کړ ی او په هغی کښې ئې دپښتونستان د خلکو په مقابل کښې دپاکستان دحکومت ددښمنۍ اودا نسانیت خلاف پیش آمد سخت غندلی دی په دو وینا کښې داهم و یل شو یدی چه دپاکستان په محبسونو کښې دښاغلی نامدارخان او د یو شمیر نورو مهمو قومی کسانو شهادت یو ځل بیاښکاره کړه چه دپاکستان په محبسونو کښې دپښتونستان د سیاسی بندیان له هر ډول انسانی حقوقو محروم ساتل کیږ ی.

**دجدی ۲۸ -** د جد ی په ۱٤ نیټه د پا کستا ن حکو مت ښا غلی امیر نوا ب او ښاغلی حبیب ګل دمردان دضلعې دصوابۍ دتحصیل او سیدونکی د آزادی غوښتلو په جرم بند یان کړ ی د ی پل خبر دی چه دمحکو م پښتو نستا ن د و لا یت په بیلو بیلو سیمو کښې په ښر ګند و او مشهو ر وځا یو نمو د یو نټ په خلا ف او د پښتو نستا ن په مر سته ا علا نو نه ا و ا شتـها ر و نه لیـګـږ ی او دپا کستا ن دحکومت پولیسو پدغه سلسله کښې ګڼ کسا ن د تحقیق او پو ښتنې لاندی نیو لی دی.

**د جد ی ۳۰ -** د شمن خیلو او مسعو د و یو ی ډلی ملی مجا هد ینو دښا غلی او ر نګ ز یب خان اوصو به دار شهزا ده په مشر ی د جد ی په د یا رلسمـه نیټـه دسرو کی په عسکری تا ڼه ډز ی و کړ ی او د دوا ړو خوا وتر منځ دجګړ ی په نتیجه کی دپاکستان دعسکرونه یوتن مړ او یو بل ز خمی شو د همد غی قبیلی یو ی بلی ډلی ملی مجاهدینو دسپیلتوی اولدی دسیمو په منځ کی دپاکستان په یوه ډله ملازمانو حمله وکړه او له هغوی نه یې دری تنه ووژل او څلور ئې تری زخمیان کړل. دوی یو څو سرکاری لاریو ته هم سخت نقصان ورساوه .

یوی بلی ډلی مجاهدینو دمشهورتنګی پل په لاسی بم والوزاوه . یوی بلی ډ لی ملی مجاهدینو دسپین اغزی په عسکری تاڼه ډزی وکړی او دوه تنه پاکستا نی عسکر ئی زخمیان کړل .

**دډلوی لومړیه:** دجدی په ۲۳ نیټه دملك موسم خان په مشری دمومندو دموسی خیلو دقوم په سوران دره کی مهمه جرګه شوی وه په جرګه کی قومی مشرانو جذا بی و ینا وی

د جنګلک په فابریکه کښې د ترانسفارمر جوړولو څانګه

وکړی او یو محل بیائی دخپلی خاوری دساتلو په لیاره کی د هر ډول قربانۍ دور کولو په باب کی خپل تصمیم ښکاره کړ اودغه راز دګنداو او پنډ یالي ورونو ته ئی دمرستی ډاډ بیاور کړ.

دجدی په شلمه نیټه په پالنګتې کی دمامو ندو د ټولو قبیلو په ګډون ستره جرګه شوی وه اودغه راز دجدی په ۲٤ دسالار زودملکانو، نمایندګانو اودنورو قبیلو په ګډون په طوفانشاه کی مهمه جرګه شوی وه چه په هغی کی دقومی مشرانو له خوا سودمندی وینا وی وشوی او په نتیجه کی د پاکستان حکومت ته اخطار ورکړی شو چه که د پښتونستان په خاوره په تیره بیا د باجوړ په سیمه باندی له تیری نه وا نه وړی د هغه عواقب به و خیم وی دغه راز دغو جرګو دمومندو په خاوره کی د پاکستان داستعماری حکومت دلاس وهلو په موضوع باندی ددوی دفیصلو په ضمن کی سخت تشویش ښکاره کړ او دمومندو قوم ته ئی ډاډ ورکړ چه د باجوړ خلك به دخپلی آزادۍ د دفاع په باب کی له خپلی مرستی او مساعدت څخه ځان و نه سپموی.

**ددلوی ۲**: دجدی په ۲۷ نیټه زیارت غاښی کی دمومندو دټولو قبیلو نمایندګانو عالمانو، ملکانو او په زړګو نو خلکو یوه ستره جرګه کړی وه. دغه ستره او تاریخی جرګه د حلیمزو د اوسیدو نکی مولوی محمدافضل خان له خوا دقرآن کریم دځو آیتو په تلاوت پرانستل شوه او ورو سته د حلیمزو ملك حسن خان، د ګنداو ښاغلی میاعمر خان، حاجی ګل خان خویزی، د بابازو ملك محمداسلم، داتمرخیلو ملك لعل محمد خان د ترکزو ښاغلی باچاخان، داتمانزو ملك معشوق، ددویزو ملك سعدالدین خان، د خوګا خیلو ملك میر آقاجان، دخویزو ملك فیض طلب خان، ملك صادق خان او ملك صدالله او د جناب پاچا ګل صاحب زوی ښاغلی فضل الرحمن جدا بیوینا وی وکړی. دغی تاریخی جرګی د پخوا نیو محلی جرګو فیصلی چه په تیرو دوو میاشتو کی د پاکستان دحکومت داحتمالی تیریو په باب کی ئی کړی وی تائید کړی او ښکاره ئی کړه چه که د مومندو د خاوری په هره برخه تیری وشی سمدستی به دمومندو ټول قام دمبارزی میدان ته ووزی او دخپلو ژوند ترورو ستۍ سلګۍ پوری به قربانۍ ور کړی او مبارزه به و کړی، جرګی د ګنداو کمالی او پنډیالي خلکو ته ډاډو رکړ چه دمومندو ټول خلك پخپل ټول موجودیت ددوی او ددوی دخاوری دفاع وکړی.

**ددلو ۳**: دامریکا د کالیفورنیا په ساکرا منتو کی د آزاد پښتونستان دټولنی منشی ښاغلی امین خان وفات شویدی. د هغه مرحوم دجنازی په وړلو کی په امریکا کی د آزاد پښتونستان دټولنی رئیس ښاغلی ډاکتر اورنګ شاه او په کالیفورنیا ګی او سیدو نکو افغانانو ګډون کړی وو.

د کالیفورنیا پښتنو په دی غونډه کی د ښاغلی خان عبدالغفارخان د ناروغۍ د خبر په نسبت تأثر اوخواشینی ښکاره کړه او ددهٔ د پوره روغتیاله پاره ئی دعا وکړه. ښاغلی

امین جان له۱۹۱٦ کال نه د کالیفورنیا دپښتنو ټولنی فعال غړی او منشی ؤ او د آزاد پښتونستان د ټولنی په جوړولو کی ئی لویه برخه اخیستې وه . په واشنګټن کی افغانی لوی سفیر دهغه مرحوم دمړینی په نسبت د ښاغلی داکتر اورنګ شاه په نامه د تعزیت او همدردۍ پیغام مخابره کړیدی.

**دجدی په۲۸نیټه**: د نامتو ملی لارښوونکی او ادیب ماستر عبدالکریم په مزار بانډی دغه مرحوم د کالیزی په عنوان ستره جرګه شوی وه چه په هغی کی په ادبی او سیاسی سترو شخصیتو علاوه د پیښور د مردان د ضلع په زرګونو خلکو ګډون کړی ؤ، ملی مشرانو د پښتونستان دملت او سنی حالت په دغه غونډه کی بیان کړاو د پښتونستان په مقابل کی ئی د پاکستان داستعماری حکومت روپه سخته وغندله او د پاکستان د استعماری حکومت څخه ئی وغوښتل چه ژر د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی او د پښتونستان د خلکو په حقوقو اعتراف وکړی .

**ددلو ۴** : د پاکستان حکومت ښاغلی سعدالله خان او ښاغلی زېره ور خان د آزادۍ غوښتنی د فعالیت په ګناه بندیان کړیدی. دلوار ګی ر پوټ وائی چه پدی وختو کی داوم کښی په سیمه کی په زیات واټن د سړك یوه برخه دملی مجاهدینو له خوا ورانه شوی ده. د آزاد منځنی پښتونستان خبروائی چه دوزیرو د توریخیلو یو ټولګی ملی مجاهدینو دمیرلی د عسکری تاڼی په سیمه کی په زیات واټن د تلفون مزی او ستنی له منځه وړیدی .

**ددلو۵:** دجدی په ۲۵ ورځ دمسیدو د بلولزیو د قام یوه ټولګی علمیانو دملاشیرعلی جنګی په مشری د جندولی چوڼی دځینداك داو بو په پیره دارانو لاسی بم ور وغورځاوه چه د هغه په اثر دری تنه پیره داران سخت ژوبل شول .

**ددلو۷**: د بنو د ضلع او سیدونکی ښاغلی غلام قادر د دلوی په لومړی نیټی د پاکستان د حکومت له خوا د آزادی غوښتنی د فعالیت په ګناه بندی شوی دی د نیول کیدو نه څو ورځی پخوا ، د پاکستان په بندیخانه کی د یوه کال په تیرولو نه ور وسته خوشی شوی ؤ.

**ددلو۱۰** . دملی عوامی ګوند ایالتی سرمنشی ښاغلی محمد افضل بنګښ په یوه مطبوعاتی مرکه کی وویل چه تقریبا په تیر یوه کال کی پنځه تنه نامتو او ملی شخصیتونه د پاکستان په جیلونو کی شهیدان شویدی . ده وویل څلورتنه سیاسی بندیان لیوانه شوی او دوه تنو نورو ته ئی دماغی خلل ور پیښ شویدی . ده وویل دغه غمناکی پیښی ددی خبری ښکاره دلیل دی چه د پاکستان حکومت د پښتونستان له سیاسی بندیانو سره له تشدد او سخت وحشت نه کار اخیستل او دوی له هر ډول انسانی حقوقو څخه محروم دی، ښاغلی محمد افضل بنګښ وویل چه دعسکری حکومت په دریم کال کی پښتونستان په زرګونو تنه مشران ، ادیبان ، عالمان او ملی

رضاکاران د پاکستان دحکومت له خوا بنديان شول او د بند په اوږ دو مودو چه دځينو ئې تر ۲٤ کلو پورې قاکل شوی و محکوم شو يدی

ښاغلی محمد افضل بنګښ د پاکستان له حکومت نه و غوښتل چه بايد د ښاغلی نامدار خان دمرګ دواقعې چه په دی وختو کی پېښه شوی وه هدلی تحقيقات و شي ښاغلی بنګښ د پښتو نستاق له ټولو سياسی مشرانو او کار کارنکو څخه که د پاکستان د حکو مت سره مخا لف او يا موا فق دی غو ښتنه کړ يوه چه هغه ورځ راتلو نکی د ه چه په دوی هم د غسی ظلمو نه و شی نو له د ی ا مله با يد ټو ل د پا کستان د حکومت د دغه سلوك په ضد چه د پښتو نستان له سياسی بند يانو سره کيږی خپل غږ پو ر ته کړ ی ا و پر ی ئی نږ د ی چه پا کستا ن د حکو مت د پښتو نستا ن لـه آزادی غوښتونکو سره دخپل دغه ډول ظلمو نو او غير انسانی و حشی کر يو ته دوام ورکړی :

**د دلو ۱۱** : دجدی په ۲۸ نېټه لو يه ملی جرګه دکوهی په کلی ګی شوی وه چه په هغی کی عالمانو ، مشرانو ، نمايـندګسانو او دشيـنوارو ، سـاپو او د مو مـندو دخانزاد ګانو د قبيلو يو زيات شمير خلکو ګډون کړیو ۰ پدغه جرګه کی ملك محصل خان ، ملك رضا خان او ملك اصلت خان مهمی وينا وی وکړی او دپښتو نستان دخلکو په مقابل کی ئی د پا کستا ن د حکو مت ر و يه و غند له او خپل چمتوا لی ئی دهرراز قربانی ورکولو ته ښکاره کړ . جرګی فيصله وکړه چه که د مو مند و دخاو ری په هر ه بر خه تيری و شی ټو ل قو م به د پا کستا ن له سره د مقا بلی ميدان ته راوزی او دخپلی آزادی او قوم څخه به په سر ا و مال د فا ع و کړی . داتما نخيلو خبروائی چه په دی ورځو کی يوه لومه جرګه په ښوونه سته کی شوی وه چه په هغی کی مشرانو اوروحانيو نو نمايندګانو او داتمانخيلو ډيرو خلکو ګډو ن کړی ؤ . دجرګی شا ملينو وروسته له هغه چه دقومی مشرانو جذا بی و ينا و ی بی واو ر يد لی تصو يب ئې و کړ چه د پا کستا ن د حکو مت د تير يو په مقا بل کی دهيڅ ډول قربانی ورکـولـو نـه ځان و نه سپموی ا و د پا کستا ن حکو مت ته به موقع ورنکړی چه ددوی په خاوره کی خپل د پـرو ګـرامو نـه تطبيق کـړی

**د دلو ۱۲**- دآزادی منځنی پښتو نستان خبردی چه د پښتو نستان يو شمير ملی مجاهدينو دډيری په سيمه کی دپاکستان په يو شميرددولتی لاريو حمله وکړه او دهغی نښتی په اثر چه ددغو لاريو دساتو نـکو او دملی مجاهدينو ترمنځ و شو ه يو تن پاکستانی عسکر مړاو د وه تنه ټپيان شول .

را ر سيد لی خبر وائی چه دپا کستا ن حکو مت د دغو پېښو په ا ثر په د ی ځو ورځو کی ددوړو دقبيلې شپيته تنه نامتو کسان چه ښاغلی آدم خان ، ښاغلی شاه ميرخان ، ملك لعل خان ، ملك شهزاده خان، خليفه نعيم خان ، ملك شيرمحمدخان ملك سعدالله خان ، ملك عليخان ، ملك رويدار خان ، ملك آزاد خان ، ملك سدی خان

شاغلی ستارخان او شاغلی شیر نوازخان هم په دغه جمله کی شامل دی بندیان کړیدی او داسماعیل خان دد یری جیل ته ئی لیږلی دی .

**د دلو ۱۳ـ** دپاکستان دحکومت دپولیسو یوتن مامور چه فقیر محمد نومیږی دمتری په سیمه کی دیوشمیر مسلحو کسانو له خوا وربا ندی حمله شوی او وژل شویدی . دپاکستان پولیس تر اوسه پوری دقاتلینو داصلی هویت په کشفو لو بریالی شوی ندی . دپیښور داردو ژبو اخبارو دخبر اه مخی په دی و ختو کې د غه ځول پیښې زیاتې شوی او دهغی سیمې امنیت بیخې خراب شوی دی .

**د دلو ۱۴ـ** دسرحد دجمعیت العلما دگوند عمومي منتظم جناب صاحبزاده عبدالباری دپاکستان دحکومت څخه غوښتنی دیچه ژر د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان له بند نه خوشی کړی صاحبزاده عبدالباری په خپل غو ښتن لیك کی ویلی دی چه ددغه خان ناروغی دپښتونستان ټول خلك اندیښمن کړیدی او دپښتونستان خلك دخپل سپین ږیری مشر په بند ډیر پریشانه او مشوش دی . ده وویل د خان عبدالغفار خان مجاهدی اولار ښوونی انگلیس داستعماری طرد باعث شویدی او که دپاکستان حکومت له دوی سره هماغه انگلیس او ته تکراروی نه یوازی دخپل حکومت ددیمو کراسی واای په باب کی خپله دعوی باطلوی بلکه ثابتوی چه دخان عبدالغفار خان داستعماری مبارزی سلسله تر اوسه لاهم پای ته نده رسیدلی ده وویل دپاکستان حکومت ددی په ځای چه له خان عبدالغفار خان سره له تشدد څخه کار واخلی باید ده مطلبونه ترغور لاندی ونیسی او دمشکلاتو دحل دلیاری لټه وکړی .

دمنځنی پښتونستان دمسمودو دبلولزو دملی مجاهدینو دیوه ټولگی له خوا شپږ تنه پاکستانی عسکر او یوتن منصبدار وژل شویدی . له آزادمنځنی پښتو نښتان نه رارسیدلی خبردی چه دمسمودو دبلو لزو یو ټولگی ملی مجاهدینو دجدی ۲۸ نیټه دشاغلی خیرمحمدخان په مشری دصابربابا په سیمه کی دپاکستان په یوی عسکری تانړی حمله وکړه اودغه تانړه ئی په چاودونکو موادو زیانمنه کړه او دهغه لاسی بم داچولو په اثر چه په دغه تانړه کی دملی مجاهدینو له خواغورځول شوی وو شپږ تنه پاکستانی افراد او یوتن منصبدار وژل شویدی :

**د دلو ۱۵ـ** یو مهمه ملی جرگه په شاگی جوړکی دملك موسم خان په اهتمام د دلوی په لومړی نیټه شوی وه چه په هغی عالمانو ، مشرانو ، ملکانو او د شینوارو ، سا پو خانزادگانو اوافرادو گډون په کی کړی وو جرگی دپښتونستان په خاوره باندی دپاکستان داستعماری حکومت تیری سخت وغندل او نوموړی حکومت ته ئی اخطار ورکړچه که د پښتونستان په خاوری باندی له خپلو تیریو نه لاس وانه خلی عواقب به ئی دپاکستان دحکومت دپاره ډیر وخیم وی . جرگی دخپلی خاوری څخه دفاع په باره کی دمومندو دخلکو دپخوانیو جرگو تصویبو نه تائید کړل اواعلام ئی وکړه چه دپاکستان له استعمار سره دمبارزی په لیاره کی به دوی مجاهدی دپخوانه زیاتی دوام ولری .

د دلو ۱۶ - دمرکزي محکوم پښتونستان دولايت دقانون پوهانو ټولنې د پاکستان د جمهور رئيس شخه هغه وخت چه دې دمرکزي محکوم پښتونستان ولايت ته راغلی وُغوښتي وُ چه د پښتونستان سياسي بنديان په تيره دمرکزي محکوم پښتونستان د ولايت د سيمې د باره دملي عوامي گوند رئيس ارباب سکندرخان خليل چه يو مشهور قانون پوهاند هم دی خوشي کړي شي دغه غوښتن ليك په ماځکې شريف کې د ښاغلي فدامحمد خان له خوا دقانون پوهانو دټولني په نمايندگي د پاکستان جمهور رئيس ته وسپارل شو .

د دلوی ۱۷ - د پاکستان حکومت ښاغلي محمد خان د پښتو رضلع اوسيدونکی او دده يوملگري د آزادۍ غوښتلو د فعاليت په گناه د دلوي په ۱۰ نيټه بنديان کړيدي. همدغه راز ښاغلي سيف الملوك او ښاغلي تاج ملوك دخويشکو د کلي اوسيدونکي د دلوې په ۹ نيټه د پاکستان د حکومت له خوا د آزادۍ غوښتلو د فعاليت په گناه بنديان شويدي .

د دلو ۲۳ - دمارننگ نيوز ورځپاڼې چه په کراچۍ کې خپرېږي د جنوري دشلمې نيټې په خپله گڼه کې خبر ورکړ چه د لويديز پاکستان د يو يونټ د ضد ټولنې رئيس قاضي فيض محمد په مطبوعاتي کنفرانس کې څرگنده کړه چه د اپريل دمياشتې په لومړۍ هفته کې به په کويټه يا پېښور کې د يو يونټ يو لويه جرگه وشي چه په هغې کې به د سند بلوچستان او د پښتونستان نمايندگان دغه يونټ دمحوه کولو د پاره خپل غږ اوچت کړي پخوا د سند دمشرانو يو هيئت دمحکوم پښتونستان سيموته تللې وُ او ديو يونټ په خلاف دگړو اقداماتو په باره کې ئې د هغه ځای له ټولنو سره خبرې کړې وې .

❀ ● ●

د پېښور دمتني کلي د پېغه پېرې هو ائی ډگر ته نږدې د عسکري الوتکو اومو ټرو د پرزو تحويلخانه دوسله لرونکو افرادو په واسطه لوټ کړي شوه. دخلکو په منځ کې ددغې پېښې انعکاس د پاکستان حکومتي مقامات وارخطا کړيدي څرگنده شويده چه په پښتونستان اولويديز پاکستان کې د پاکستان د استعماري مقاماتو پوليسې او جاسوسي ټولنې ټولې ددغې پېښې داصلي فاعلانو دکشفولو لپاره په کار اچول شوې او بوختې دي خوتراوسه پورې کومه نتيجه لاس ته نده ورغلې .

د دلو ۲۵ - د دلوی په ۲۰ نيټه د پېښور په ښار کې د پښتونستان دملي جبهې دمشرانو اولارشوونکو په گډون مهمه غونډه شوې وه او په هغې کې دسياسي بنديانو د خوشې کولو په موضوع د يو يونټ په مسئله او دمحکوم پښتونستان په سياسي حالاتو غور وشو غونډې د پاکستان د استعماري حکومت نه وغوښتل چه ژر ټول سياسي بنديان خوشې کړي، جايدادونه يې بېرته ور کړي او د پښتونستان د خلکو ملي مطالبې ومني .

د دلو ۲۶ - د پاکستان استعماري حکومت په دې ورځو کې ميرگوهرخان زرك زې چه د بلوڅو يو با نفوذ او ملي شخصيت دی د آزادۍ غوښتلو د فعاليت په گناه بندي کړ.

**ددلو۲۷-** دپیښور داردوژبې مطبوعاتو پخپلو نوبوگڼوکې خبرورکړی دی چه پەدی وختوکې پەمرکزی محکوم پښتونستان کې خوراکی مواد ډیر کم شویدی او بیەئې ډیر پورته شویده.

**ددلو۲۸-** دپاکستان استعماری حکومت دنوښار پروفیسر عبدالروف د پیښور دپوهنتون استاذ دملی تمایلاتو ددرلودلو اودپښتونستان دآزادۍ غوښتلو له نهضت سره دعلاقی ښکاره کولو په گناه برطرف اود پولیسو تر سخت مراقبت لاندی ئې نیولی دی.

**ددلو۳۰-** دپاکستان استعماری حکومت دخدائی خدمتگارانو دگوند شپږ تنه غړی دسربند پەکلی کې نیولی دی. ددغه کار علت دپاکستان دپولیسو لەخوا دپیښور پەپیلو پیلو سیموکې دبمونو پەغورځولوکې د لا س لرلو الزام څرگند شویدی همدغەراز دآدم خیلو ددری دوی تنه اوسیدونکی دمتنی پەکلی کې دبهیږی دهوائی میدان مربوط دالیږ نکو اوموټرو دپرزو ددپیو پەچورکولوکې دلاس لرلو په الزام بندیان شوی دی.

**دحوت۱۰-** پەدی نژدی وختوکې دپاکستان استعماری حکومت جگړن حق نواز عسکری منصبدار دکیمبل پور اوسیدونکی چەدسیالکوټ په ۱۵ نمبرقطعه کې ئې وظیفه اجراکوله پەدی الزام چەدپښتونستان دآزادی غوښتنی پەلیارەکې ئې فعالیت کاوه لەکاره برطرف او بندی کړیدی.

همدغەراز ډگرمن تورگل ځان دمردان دضلع مربوط دشیرگرد دکلی اوسیدونکی چەدراولپنډی پەمرکزی قواوکې ئې دعسکری منصبدار وظیفه اجراکوله د پاکستان د استعماری حکومت لەخوا د آزادی غوښتنی دفعالیت پەجرم له کاره برطرف او بندی شویدی.

**دحوت۱۳-** پەکراچۍ کې یوشمیر زیاتو مظاهره کوونکو باندی د پاکستانی پولیسو دځزوپه اثر وړمەشپه دری تنه مړه او یوشمیر نور ټپیان شویدی په دغی پیښی پسی دپاکستان حکومت ټولی تولنی منع کړی دی اوهرڅوك چه اوامرته اطاعت ونکړی بندی بەشی پەدغو مظاهروکی له۸زروتنونه زیاتوکسانو گډون کړی ؤ پولیسو سربیره پەدی چه دمظاهره کوونکو دتیت او پرك کولو لپاره داوبښکی بیو نکی گاز څخه کاروا خیست پەدوی ئې ډزی هم وکړی. دخبرر سولو آژانسونه وایی چه لەځوهفتو راپدی خوا پەکراچۍ کې نښتی کیږی اودهغو پەاثر بوازی پەدی نژدی وختوکې ۲۰۰ تنه ټپیان شویدی.

**د دلو ۱۳-** د پنجاب په رجمنټ لسم ډولي مربوط شل پښتانه عسکري افراد او همدغه راز نوموړي رجمنټ د نهم ډولي مربوط ۴۰ تنه عسکري افراد د آزادۍ دوستۍ او قوم دوستۍ د احساساتو د لرلو په گناه د پاکستان د استعماري حکومت له خوا بنديان شوي او د نوموړو ډولیو په سل گونو کسه عسکري افراد د ملازمت نه ایستل شوي دي. بل خبر وايي چې د محکوم مرکزي پښتونستان د نوښار مربوط د اسمعيل کوټ د نساجۍ په فابريکه کې چې دلال پور د اوسيدونکي میا نصرالدين ملکيت د پښتنو او پاکستانو کارگرانو ترمنځ نښته وشوه چې د هغې په نتيجه کې شل تنه پاکستاني افراد او لس تنه پښتانه کارگران ژوبل شوي دي. ښرگنده شوي دي چې د پاکستاني حکامو پښتانه کارگران اړ د دوی مشران تر سخت فشار لاندې نیولي او یو شمېر ئې له دوی ښخه بنديان کړي دي.

**د حوت ۱۴-** د ډيلي د راډيو خبر دی چې پښتونستان ملي مشر خان عبدالغفار خان چې د لاهور په یوه بندیخانه کې بندي دی د حوت له نیمې ښخه د خوراك نه کولو په غیر محدود اعتصاب لاس پور کړی دی. د ده د غه تصمیم له هغې رو ئې ښخه پیدا شوي دي چې د زندان حاکمانو په تیره بیا د کو چنی اختر په ورځ له ده سره کړي او ده ته ئې اجازه نده ور کړې چې له نورو بندیانو سره په زندان کې د اختر په لمانځه او مراسمو کې گډون وکړي:

د پاکستاني حاکمانو بخوا هم خان عبدالغفان خان او د پښتونستان او یو سیاسي کسانو ته اجازه نه ده ور کړې چې په زندان کې له نورو بندیانو سره د جمعې په لمانځه کې گډون وکړي.

په خوا هم ځو تنو سیاسي بندیانو د بندي خانو د حاکمانو د روئې په ضد د خوراك نه کولو په اعتصاب لاس پورې کړي ؤ خو پاکستاني حاکمانو په زور او جبر دوی دي ته مجبور کړل چې خپل اعتصاب بس کړي.

ښرگنده شوي ده چې دا لومړی ځل دی چې خان عبدالغفان خان د پاکستان په استعماري دوره کې اعتصاب کړی دی او ور ښخه ښرگند یږي چې د پاکستان حکومت د پښتونستان له ملت او مشرانو سره له بل هر وخت زیات ته د دښمنۍ رویه چلوي.

**د حوت ۱۵-** په دې ورځو کې یو تو لگی ملي مجاهدینو د بنیاغلي علي محمد خان بیټني په مشرۍ د منځنی او ټانك تر منځ سیمه کې د دولتي لاریو په یوی قافلي باندې حمله کړې او په هغه نښته کې چې د لاریو د ساتونکو او ملي مجاهدینو ترمنځ وشوه د لاریو د ساتونکو ښلور تنه مړه او ۶ تنه ټپیان شول بل تو لگی مجاهدینو د جندولي او گريوم ترمنځ سیمه کې په زیاته مسافه د تلفون مزي او ستنی له منځه وړي دي. ورو ستی خبر وائي چې د پاکستان استعماري حکومت ملك، بنگی خان حسن خیل ملك دولت خان

احمد زائی ملك گلو خان ملك هیئت خان ملا خیل او ملك شریف خان عمر خیل ئی په وروستیو پیښوکی دلاس لرلو په الزام په محکومه سیمه کی نیو لی دی.

**د حوت ۱٦**ـ د دلوی په ۲۳ نیټه دورکزو دجنت گل خان په مشری په آیم څېړیه کی ستره جرگه شوی وه چه په هغی گی عالما نو مشرانو نمایند گانو او د ور کزو د مسوزو دقبیلی یوزیات شمیر خلکو گډون کړی ؤ پهدغهجرگه کی قومی مشرانو او عالمانو مهمی وینناوی وکړی او د پاکستان حکومت استعماری سیا ست ئی سخت وغانده جرگی د پا کستان داستعماری حکومت نه وغوښتل چه ژر د پښتو نستان ټو ل سیاسی بندیان خوشی کړی او د پښتو نستا ن دملت په حقوقو إعتراف وکړی جر گی د پښتو نستان دسیاسی بند یانو سره د پاکستان داستعماری حکو مت دد ښمنی او وحشت نه ډ که رویه چه د یو شمیر بند یانو دشهادت سبب شو یدی وغندله او د پا کستان د حکومت نه ئی وغوښتل چه ژر خپلی دغی رو یی ته چه د انسانیت له آدابو نه لری ده خاتمه ور کړ ی.

**د حوت ۱۷**ـ د پاکستان استعماری حکومت د یو نو دغو پر له پسی چاودنو په اثر چه د پېښور د پوهنتون پهخوا ؤ شاکی دفروری په ۲۳ نیټه او وروسته لههغهصورت نیو لی دریتنه د ا بدری دکلی او دوه تنه د نوی کلی اوسیدونکی نیو لی او بند یان کړی ئی دی.

یو بل خبردی چه دفروری د ۲۵ نیټی د درگی د بازار په نښتی کی چه د هغهځای داو سیدو نکو او د پاکستانی ژاندارمو ترمنځ وشوه ۱٤ تنهوژل شوی او ټپیان شو یدی د ټپیانو پهډله کی یو دوهم بر ید من هم شامل دی.

بل خبر زیاتو ی چه په دی ورځو کی دورسك په سیمه کی یو و سله والی ټولی یوه دولتی لاریه چهخوراکی شیان پکښې باروؤ لو ټه کړ یده.

**د حوت ۱۸**ـ د پاکستان داستعماری حکومت له خوا دخان عبدالغفار خان دزو ی خان عبدالو لی خان او د خدایی خدمتگارو دملی گوند فعال غړی مولانا اکرم خان ته امرور کړی شوی دی چه بی د پولیسو داجازی څخه له خپل کلی تهونه وزی دغه راز ښاغلی یار محمد خان ما یار ښاغلی سلطان محمد خان او ښاغلی محمد ایوب خان چه مهم اومخور کسان دی او نوی دملی عوامی گو ند سره یوځای شوی د پو لیسو تر نظارت لاندی نیول شو یدی.

**د حوت ۲۰** : د پا کستان حکومت دسپینی ډیری او سیدو نکی ښاغلی گلباز او ښاغلی اکرم د یو نو د پر لهپسی چاودنو په وروستیو پیښوکی دلاس لرلو پهالزام نیو لی او بندی کړی دی بل خبر وایی چه د حوت په ۱۲ نیټه د کوهاټ پهدره کی د پو لیسو د افرادو پهلوی ټولنی دملی مجاهدینو لهخوا سختی ډزیشوی دی او د پاکستان حکو مت د دغی ښتی پهاثر پهدغه سیمه کی یو شمیرافراد نیو لی دی .

**دحوت ۲۱** : دمرکزی محکوم پښتونستان څخه را غلی خبر ونو د پښتونستان دملی مشر خان عبدالغفار خان له خوا دغذا د نه خوړلو د اعتصاب د اضطراب نه ډك خبر تصدیق کړی او د پېښور اردو ژبو جریدو اعتراف کړیدی چه دغه خبر د برېښنا په شان په ټول محکوم پښتونستان کی خپور شوی او دسختو هیجاناتو باعث شویدی . دمحکوم پښتونستان ملی او اجتماعی ډلو دلاهور دمرکزی زندان دمدیر تر دیره په دروغ بللی او په دی ترڅ کی ئی دا هم ویلی چه دمحبس مدیر دخان عبدالغفار خان له خوا لی څخه داعتصاب نه ډکه د تردید وینا هم جوړه کړیده نور خبر ونه وایی چه دپېښور دمرکزی محبس دسیاسی محبوسینو یوشمیر سترو کسانو یوداحتجاج لیك پاکستانی حاکمانو ته سپارلی او په هغه کی ئی ویلی دی چه که د پاکستان حکومت د خان عبدالغفار خان او دپښتونستان دنورو سیاسی بندیانو په مقابل کی په خپله ظالمانه رویه پاندی نوی نظر ونکړی د پښتونستان په زرگونه سیاسی بندیان به دغه محدود دی لوږدی په اعتصاب لاس پوری کړی په احتجاج لیك کی دا هم ویل شویدی چه دپېښور دمرکزی زندان سیاسی محبوسینو هم داخطار په عنوان دیوی ورځی دغذا د نه خوړلو په اعتصاب لاس پوری کړیدی له بلی خوا دمحکوم پښتونستان په بېلو بېلو سیموکی احتجاجی غونډی شویدی او دپېښور دجریدو خبر وایی چه دغسی غونډی او مظاهری بهدجوړ شوی پروگرام سره سمی وشی .

**دحوت ۲۲** :- ښاغلی محمد افضل بنگښ د هغی مطبوعاتی وینا په ضمن کی چه دحوت په (۱۲) نیټه ئی وکړی وویل چه دلاهور په مرکزی زندان کی دخان عبدالغفار خان اوده دلسیزنو پیروانو دغذاد نه خوړلو له اعتصاب نه سخته اندیښنه او تشویش پیدا شویدی .

ده وویل چه د پښتونستان دمشرانو او رضاکارو بندیانو په مقابل کی د پاکستان دحکومت او په تشدد او خشونت انتهاته رسیدلی او دا خبر د تو چه ورده دغه ډول اقدامات تر جوړ شوی پروگرام لاندی اجرا کیږی . ده وویل خان عبدالغفار خان ډیر سخت ناروغ دی او دغه ناروغی دده دغذ اد نه خوړلو په اثر دوه چنده شوه او زیاتره د بیهوشی او کوما په حالات کی وی . ده وویل د پښتونستان خلك سخت احساس کوی چه خان عبدالغفار خان او نور سیاسی بندیان دد وی دملی نوامسیو دساتلو دپاره قربانی ور کوی او په هیڅ صورت د پاکستان دحکومت دغه ظالمانه رویه د هغوی په مقابل کی زغملی نشی د پېښور خپرونه وائی چه خان عبدالولی خان دخان عبدالغفار خان زوی هم دخپل پلار دضعف او دغذ اد نه خوړلو خبر تصدیق کړیدی او په دغه مناسبت په دی وختو کی لاهور ته هم تللی ، له بلی خوا د پاکستان حکومت جرایدو او اخبارونو ته اخطار ورکړیدی چه دخان عبدالغفار خان او دد وی دملگرو داعتصاب د مربوطو خبرونو له خپرولو او دغه رازد احتجاجیه غونډو د پېښو له خپرولو څخه په کلکه ډډه وکړی .

**دحوت ۲۵ـ** پدی ورځو کی دبنود سیمی دعوا می گوند اعلی نا ظم ښاغلی همزادخان په مشرته دبنو په کلی کی یوه ستره جرگه شوی وه چه په هغی کی سیاسی علمی او دینی سترو شخصیتو گډون کړی ؤ. جرگی دخان عبدالغفارخان او دده دملگرو له خوا دخوراك نه کولو داعتصاب په موضوع باندی سخت تشویش او اضطراب ښکاره کړی او دپښتونستان دملت په تیره بیا د سیاسی بندیانو په مقابل کی د پاکستان د استعماری حکومت د ښمنانه سیاست ئی وحشیانه وباله او دغه حکومت ته ئی اخطار ورکړچه که دپښتونستان دخلکو په مقابل کی پخپل سیاست نوی کتنه ونکړی خو نږی ی پیښی به وشی او د هغه مسئولیت به د پاکستان د حکومت په غاړه وی .

**دحوت ۲۹ ـ** دپاکستان حکومت پدی وختو کښی د دیر د ریاست دوه تنه اوسید ونکی چه دمردان دضلع په تخت بهائی کی ئی دبوری دجوړولو په فابریکه کی کارکاوه دآزادی غوښتنی په گناه نیولی او جیل ته ئی لیږلی دی

بل خبردی چه دپاکستان استعماری حکومت دخدائی خد متگارو دملی گوند څو تنه سترشخصیتونه په بیلو بیلو ځایو دسیاسی انتقام اخیستلو په غرض ترسخت فشار لاندی نیولی اودغه سلسله پخپل شدت روانه ده .

**د حوت ۳۰ ـ** د پاکستان حکومت سردارعطاءالله خان منگل چه دپاکستان دپارلمان غړی دی په ډاکه کی په‌ړوانه اجلا سیه دوره کی گډون ته ندی پری ایښی . سردارعطاءالله خان منگل د خپلی قبیلی مشردی او له څومیاشتو را پدی خوا دپاکستان حکومت ترسختی شکنجی او زجرلاندی نیولی دی پخوا دپاکستان حکومت دی دآزادی غوښتنی دفعالیت په اثر بندی کړی او ددهٔ قول حقوق اوقومی امتیازات ئی لغوکړی ؤ .

**د ۱۳۴۳ کال د حمل د وهم :-** دپاکستان حکومت د پاکستان اود پښتونستان ورځپاڼو اوجریدوته امرورکړیدی چه دپاکستان دپارلمان دغړی اود پښتونستان دملی عوامی گوند دلارښوونکی ارباب سیف الرحمن اود هغه گوند دیوه فعال غړی میا رضوان الله کاکاخیل د وینا ؤ له خپرولو او اقتباس څخه ډډه وکړی .

**دحمل ۳ـ** دپښتونستان ملی اووطن پرست شاعرښاغلی همیش خلیل او دخدائی خدمتگارو دملی گوند مشهورمشرحافظ جسیم الدین اودخدائی خدمتگارو دملی گوند یوغړی د بنو په محبس کی په سخته ناروغی اخته شویدی د محکوم پښتونستان ملی ځوانی لدغه کبله سخت تشویش او پریشانی ښکاره کوی دنو موړو کسانو خپلوانو چه هرڅومره دپاکستان داستعماری حکومت څخه وغوښتل چه ددغو کسانو معالجی ته پاملرنه وکړی او یا اجازه ورکړی چه دوی پخپل لگښت خپل علاج

وکړی خو د پاکستان حاکمانو دغې غوښتنې ته دمنفي ځواب ویلو نو لدې کبله د دغو دریو تنو وطن پرستو او سیاسي بندیانو ژوند تر سختې خطرې لاندې دی .

**د حمل ۵ -** دمرکزي محکوم پښتونستان پېښور خبر وائي چه دحوت په ۲۷ نېټه دمرکزي محکوم پښتونستان دکرك دعلاقې مربوط دنصرتي په کلي کښې دمولوي محمد علي په مشرۍ ملي مهمه غونډه شوې وه چه په هغې کې ستر و شخصیتو او ګڼ شمیر خلکو ګډون درلود . دغونډې شاملینو دپښتونستان دملت په مقابل کې دپاکستان داستعماري حکومت له دښمنانه رویې نه سخته ګرکه ښکاره کړې او دپښتونستان نوروخلکو ته ئې بلنه ورکړه چه په پوره یووالي دخپلو ملي حقوقو داخیستلو دمبارزې په لیاره کې له هیڅ ډول قربانۍ نه ځان ونه سپموي او دپاکستان استعماري حکومت مجبور کړي چه دپښتونستان دخلکو په ملي حقوقو اعتراف وکړي . دغونډې حاضرینو دپاکستان له استعماري حکومت نه وغوښتل چه ژر دپښتونستان ټول سیاسي بندیان بې له کوم قید او شرط نه له استعماري بندیخانو نه خوشې کړي .

**د حمل ۷ -** دپاکستان حکومت بدې وختو کې دتنګي اوسید و نکې مولانا محمد اکبر چه دخدای خدمتګارو دملي ګوندیو مشهور شخصیت دی دآزادۍ غوښتنې داحساساتو په ګناه بندي کړیدی .

**د حمل ۸ -** بدې ورځو کې داتمان خیلو دشمو زو دقبیلي دنمایندګانو او ملکانو په ګډون په ارلنګ کې قومي ستره جرګه وشوه . جرګې دباجوډ په خاوره دپاکستان داستعماري حکومت تیرې سخت وغندل او دهغه حکومت دتیریو په مقابل کښې ئې تصمیمونه ونیول . بل خبر دی چه د شموزو دقبیلي یوې ډلې ملي مجاهدینو مونډې ته نژدې دپاکستاني حکومت عسکري سرك په زیات واټن وران کړی اوله استفادې نه وتلی دی .

**د حمل ۹ -** دحوت په ۳۰ نیټه غازي آباد ته نژدې په لکړو کې ستره جرګه شوې وه چه په هغې کې عالمانو ، مخورو او دصافو دقبیلي زیات شمیر افرادو ګډون کړی ؤ . جرګه دقرآن کریم دځو آیتو په تلاوت د قاضي سمیع الله له خوا پرانستله شوه وروسته ښاغلي ملك غلام جان ګربز ښاغلي ملك دلاورخان ملك غني خان میا لعل خان ، ملك میا علي ، ملك آدم خان او یو شمیر نورو قومي مشرانو په وارسره جلا بې وینا وې وکړې چه دجرګې د شاملینو له خوا ئې تود هرکلي وشو . جرګې تصویب وکړ چه دپاکستان داستعماري حکومت دهر ډول تېري په مقابل کښې به په سر و مال مقابله وکړي او ترهغه وخته پورې چه د پاکستان له استعماري حکومت د پښتونستان دملت په حقه حقوقو اعتراف ونکړي دپاکستان داستعماري حکومت په ضد به د دوی مبارزې په کلکه روانې وي .

**د حمل ۱۰ -** دشیخ بابا د درې ، علینګار او چمرګنډ د خلکو لویه جرګه د عالمانو

ملکانو او نمایندګانو په شمول دحمل په ۳ نیټه دچمرکنډ په سیمه کښې شوې وه شیخ عبدالمجید ښاغلی مسعود میا او نورو یوشمیر قومي مشرانو دخپلو ورڅخه ددفاع او یووالي په باره کې جذابې وینا وې وکړې او د پاکستان حکومت ته ئې اخطار ورکړچه که دآزاد پښتونستان په خاوره دخپلو استعماري تیرو څخه لاس وانخلي عواقب به ئې ډیروخیم وي ، دجرګې شاملینو د قومي مشرانو د وینا تود هرکلی وکړ او په پای کې ئې د ډایو په اتفاق د پاکستان له حکومت څخه وغوښتل چه د پښتونستان ټول سیاسي بندیان ډیر ژر بې قیداوشرط خوشې کړي او د پښتونستان دخلکو په حقوقو اعتراف وکړي .

**دحمل ۱۲** د پېښور دضلع مربوط دقومي مشرانو غونډه دښاغلي محمد افضل بنګښ په ریاست دحمل په ۳۲ نیټه شوې وه چه په هغې کې دمرکزي محکوم پښتونستان اوسني بحراني حالات ترغور لاندې ونیول شول په دغه غونډه کښې د پښتونستان دستر مشر خان عبدالغفارخان په صحي حال او ددوی او دهغوی دملګرو سره د پاکستاني حاکمانو په رویه سخته ځواشیني او تشویش ښکاره کړی شو همدغه راز غونډې د پاکستان څخه وغوښتل چه دهغه قید ونړ ژر لرې کړي دمیا رضوان الله کاکا خیل په ګرڅید او اوو یناو اېښودل شوي دي. دغونډې شاملینو نه په ملي مشرانو ددغه ډول قیدونه ایښودل ددمو کراسي او بشري حقوقو په ضد یوعمل بللی او په هغه ئې اجتماع کړېدی غونډې دحافظ جسیم الدین دسختې ناروغۍ له کبله چه د ملي عوامي ګوند یو مشر دی او د پاکستان په محبس کښې نامناسبه رویه ورسره کیږي احتجاج وکړ او د پاکستان له حکومت څخه ئې وغوښتل چه ډیر ژر هغه له محبس څخه خوشې کړي غونډې د پاکستان له حکومت څخه غوښتي دي چه د پښتونستان ټولو سیاسي بندیان بې قید او شرط ډیر ژر خوشې کړي .

**دحمل ۱۳-** دشیخ بابا په زیارت کې د نمایندګانو مشرانو ایو شمیرزیاتو خان زادګانو او شینوارو په ګډون مهمه جرګه شوې وه دغه جرګه دقرآن کریم د څو آیتو په تلاوت دمولوي ګل منان خان له خوا پرانستله شوه بیاقومي مشرانو مهمې وینا وې وکړې او د پاکستان له استعماري حکومت څخه وغوښتل چه ډیر ژر د پښتونستان دملت په حقه حقوقو اعتراف وکړي او د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان او نور سیاسي بندیان راخوشې کړي د پاکستان حکومت په محبسونو کښې د بندیانو سره د ناوړه رویې نه وانه وړی او دهغوی د صحي حالت دخرابې مخه ونه نیسي نو بیا به ددغې سیمې دسخت بحران مسئول خپله د پاکستان حکومت وي او دهغه خطرناک عواقب په خپله ددوی په غاړه وي. جرګې په دغه ګوټ کې دخپلې آزادۍ دلاس ته راوړلو په لیاره دخپل قیام دوام بیا تائید او تصویب کړ .

**دحمل ۱۴-** دموسی خیلو په علاقې پورې مربوط په غنم شاه کې دحمل په ۳۲ نیټه

یوه مهمه جرګه شوې وه چه په هغې کې د موسی خیلو د قبیلې مشرانو، مخور او ډېرو وګړو ګډون کړی ؤ ښاغلي ملك تاج محمد خان او ملامیرام ګل د جذابو وینا و په ترڅ کې د پاکستان حکومت ته اخطار ورکړ چه د مومندو خلك به د خاورې د آزادۍ د ساتلو او د خپلو محکومو وروڼو د خلاصولو په لیاره کې هیڅ ډول قرباني ونه سپموي د جرګې شاملینو د پښتونستان له سیاسي بندیانو په تېره بیا د پښتونستان د لوی مشر خان عبدالغفار خان سره د پاکستان د حکومت د دښمنۍ له روی نه سخت تشویش ښکاره کړ او د نوموړي حکومت څخه ئې وغوښتل چه ډېر ژر د پښتونستان ټول سیاسي بندیان خوشې کړي جرګې یوځل بیا د اخبره تائید کړه چه د پاکستان د د اقداماتو په ضد به خپلې ملي مبارزې ته دوام ورکړي،

**دحمل ۱٦-** دحمل په اوومه نیټه د نوښار په سیمه کې د ټکستایل ملز د سرحد د کالوني د نساجۍ د کارخانې یوزیات شمېر کارګرو د هغې فابریکې د حکامو د ناوړې روئې په اثر په عمومي او غیرمحدود اعتصاب لاس پورې کړی دی او د دغه فابریکه د دغه اقدام په اثر بېخي له فعالیت نه پاتې شوې ده. خبر داهم وائې چه پاکستاني مامورینو د پښتونستان له اجیرانو سره ډېر د دښمنۍ رویه غوره کړې او هغوی ئې له ټولو حقوقو څخه محروم کړي دي. د غه راز له څو میاشتو را په دې خوا یوشمېر زیات پښتونستاني کارګرانو په بېلو بېلو پلمو له فابریکې نه ایستل شوي دي او د هغوی په ځای پاکستاني کارګران ګمارل شوي دي څو میاشتې پخوا د همدغه ډول اقداماتو په اثر د پاکستانیانو او پښتونستانو تر منځ په دغې فابریکه کې سخته نښته وشوه چه په نتیجه کې یو شمېر پښتونستانیان د پاکستاني حکامو له خوا بندیان شول خبر داهم وائي چه د پښتونستاني کارګرانو مشرانو له جملې څخه شپږو تنو د حمل له نیټې څخه د لوږې په اعتصاب لاس پورې کړیدی او د غه راز ئې په جیل کې هم د خپل اعتصاب ته دوام ورکړیدی. د اعتصاب کوونکو له جملې څخه د دوو تنو صحي حالت ډېر وخیم دی او د پاکستان حکومت د دغه حالت په اثر مخصوص او عسکري تحفظي ترتیبات نیولي دي.

**دحمل ۱۷-** د پاکستان حکومت په دې وختو کې د پښتونستان یو قومي مشر ښاغلي عجب خان د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په ګناه تر نامعلومې مودې پورې له وطن نه جلا کړی او د بنوله ضلع نه ئې ایستلی دی دغه راز د پاکستان حکومت ښاغلي عبدالله پاچا ته چه د محکوم پښتونستان یو سیاسي او روحاني شخصیت دی اخطار ورکړیدی چه په غونډو او مظاهرو کې له ګډون او په سیاسي او ملي مسئلو کې د رایو له ورکولو څخه ډډه وکړي. د مخالفت په صورت کې به سخته سزا ورکړه شي، بل خبر وائي چه د پاکستان حکومتي مقاماتو د مرکزي محکوم پښتونستان

د پولیسو اداری ته امر ورکړی شوی دی چه د ادیبانو او شاعرانو د نامونو یو فهرست د هغو د خطونو له نمونې سره ترتیب کړی او په راولپنډۍ کی ئې د غو مقاماتو ته وسپاری چه هغه اقدامات عملی شی چه د دوی په ضد د بندیز د حالت په باب په نظر کی دی .

**دحمل ۱۸** ــ ارباب سیف الرحمن د پاکستان د پارلمان غړی پــدی و رځو کی د پارلمان په یوه غونډه کی ویلی دی چه د پښتونستان ډیرزیات مشران د پاکستان په محبسونو کی په اسفناك حال سره ژوند کوی او د هغه تشدد په اثر چه له دوی سره د پاکستان د حکامو له خوا کیږی د ډیر وژوند له خطری سره مخامخ شویدی.

ارباب سیف الرحمن ویلی دی چه څو میاشتی پخوا د پارلمان ۱۰۰٦ غړو سپارښت لیك لاس لیك کړ چه غوښتنه کوی د پښتونستان سیاسی بندیان دی ډیرژر د محبسونو څخه خلاص کــړی شی او ضبط کــړی شوی جایداد و نه دی بیرته ورکــړ ی شی خو د پاکستان حکومت لاتر او سه پوری دغی غوښتنی ته مثبت ځواب ندی ویلی د غی رویی ثابته کړیده چه د پاکستان حکومت د پارلمان د اکثریت غوښتنی ته اعتنا نه لری او د پاکــستان پارلمان د هغه حــکومت په نظــر کــی څه اهمیت نلــری ارباب سیف الرحمــن د پښتونستان د خلــکو په مقابل کــی د پاکستان د حکومت له روی نه شکــایت وکړ او دیو یونت په پروگرام باندی یی د تبصری په ترځ کی وویل چه د پښتونستان خلك د یو یونټ سره سخت مخالف دی خو د پاکــتان حکومت د وی د تشدد په وسیله د یو یونټ منلو ته اړ کوی.

**دحمل ۲۰** ــ له مرکز محکوم پښتونستان پیښور خبر وائی چه د پاکستان حکومت د اوږند خوړ د کلی د خدایی خدمتگارانو د گوند ستر شخصیت ښاغلی محمداعظم خان بندی کړیدی بل خبر دی چه په دی و ختو کی د مومند و د باری په سیمه کی د ملی عوامی گوند رئیس ښاغلی محمد بشیر خان په داسی حال کی چه د واړه سترگی یی ړندی شویدی له بند نه خوشی شویدی.

**دحمل ۲۵** ــ په دووضلعو پیښور او مــردان کــی د پاکستان د تعزیراتو د قانون یوسل او څلورڅلو یښتمه ماده پدی وختو کی دیوی اوبدی مــودی د پاره د پاکــستان د حکومت له خوا نافذه شویده د دغی مادی په نافذیدو هیڅوك او تو لنه حق لری چه د حکومت د سیاست پرضد احتجاج غو نډه یا وینا او مظاهره وکړی که څوك تخلف وکــړی پولیس اختیار لری چه د اشخاصو نیو لو وهلو او حتی ډزوته اقدام وکړی د پیښور نه راغــلی خبرونه وائی چــه د د غه تصمیم د نیولو علت د هغی سیمی د سیاسی حــالاتو په اوسنی بحــران سربیره د هغه دری ورځنی سیاسی او ثقافتی پروگــرام د تطبیق کــیدو مخه نیول دی چه د پښتونستان د ملی محاذله خوا طرح شوی دی او د هغه د اجراکولو د پاره د پاکستان د سیاست پرضد د غونډه مظالم او وینا وکولو د پاره پراخه ترتیبات نیول شوی ؤ د دغه پروگرام د اجراکولو ځای د پیښور شاهی باغ او که د پاکستان حکومتی مقامات ئې منع کړی د مردان د پبلك بلوك تاکل

شوي و او په د غو مراسموکې د ګډون کوونکو د پاره د لو یه بز او ختیز پاکستان
یو شمیر ستر کسان لکه مولانا بها شا نی شیخ مجیب الرحمن ښاغلی محمود الحق
عثما نی ښاغلی محمود علی قصوری هم بلل شوي وو په دغه دری ورځنی ثقافتي پرو ګرام
کې چه د اپریل له ۲۱ نیټې څخه ئې تر ۲۳ نیټې پورې دوام کاوه دمشاعرو کول درام
ښودل ، موسیقی ملی اتڼ او د پښتونستان نورې ثقافتي جنبې هم په نظر کې وی عملی شي .

**د حمل ۲۷** ـ د حمل په ۲۳ نیټه د پاکستان اتو جتو الوتکو دمته شه او جان خان
ډېرې په کلیو باندې څو ساعته پرله پسې بمبا رۍ او ډزې و کړې د دغه خواشینې
تیرې د تلفاتو تفصیل لا تر اوسه پورې ندی راغلی .

بل خبر وائي چه ددغې اسفنا کې پیښې نه وروسته دسالارز و خلکو په ډلو
کې ئې مهمه قومي جرګه و کړه او تصویب ئې وکړ چه دخپلې آزادی او خاورې
د ساتنې د پاره ددغو تجاوز کارانه حرکاتو په مقابل کې مؤثر اقدامات
و کړي .

د پېښور او مردان په دوو ضلعو کې د پاکستان دتعزیراتو د ۱٤٤ مادې دتطبیق
په اثر دمحکوم پښتونستان دخلکو احتجاج روان دی .

د پاکستان پارلماني غړیو مولانا مفتي محمود او ارباب سیف الرحمن
د پارلمان غونډې ته چه په ډاکه کې روانه ده شکایت کړیدی او په ګډه سره ئې
پیشنهاد کړیدی چه باید ژر تر ژره د پاکستان حکومت مجبور کړی شي چه په دې
سیمه کې د نورې مادې له چلولو نه لاس واخلی په دغه پیشنهاد کې ویل شویدي
چه د پاکستان دحکومت دغه اقدام په ښکاره ډول سره ښئي چه د پاکستان حکومت
د دیموکراسۍ په ضد او د پښتونستان د خلکو دحقوقو دمنځه وړلو پروګرام په
دقت او کوښښ سره تراجرا او تطبیق لاندې نیولی دی .

**د حمل ۲۸** ـ د مردان او پېښور پې په دوو ضلعو کې د ۱٤٤ تعزیري مادې د انفاذ
په ضد دمحکوم پښتونستان دخلکو احتجاج په شدت سره دوام لري او ددغې سیمې
د بیلو بیلو ګوندو یو شمیر شخصیتو هم دغه اقدام سخت غندلی دی .

د پېښور رپوټ وایي چه د پاکستان حکومت دمرکزي محکوم پښتونستان په سیمه
کې دملي عوامي ګوند سر منشي او د پېښور دضلع په سیمه کې د دغه ګوند اعلی
ناظم ښاغلی محمد افضل بنګښ او دغه راز د کلي او سیدو نکې ښاغلی محمد احمد
ښاغلی حمیدالله کرنیل منان ، ښاغلی دلاور او ښاغلی هستم ته چه دسیاسي او ثقافتي
دری ورځنی ستر پرو ګرام په تر تیب کې یې کوشش کاوه سخت اخطار ور کړی
دی چه که له خپل فعالیت نه لاس وانه خلی بند یان به شي .

همدوخت چه د پاکستان عسکری قواؤ د حمل په ۲۵ نیټه په ګنګ غونډې نو می
کلي باندې تیری وکړ د دوی او د سالارزو د ملي مجاهدینو ترمنځ سخته نښته وشوه

او پاکستانی قواوی دڅو ساعتو نښتې په نتیجه کې شاتللو ته مجبوری شوی دباجوړ رپوټ وایې چه پاکستانی قواوی په ښارکې دپاکستان دتو پخوانی له خواتقویه شوی او پاکستانی جټ الو تکو دګنګ او جرګو په کلیو بمباری پیل وکړی.

دپاکستان حکومت داطلاعاتو او پولیسو اداری دهغو کسانو دنومونو دلست په ترتیب سخته بوختې دی چه په پښتونستان کی دپاکستان دحکومت د سیاست په خلاف په تیره بیا دپاکستان دتعزیراتو د ۱٤٤ مادی انفاذ په ضد فعالیت کوی د پېښور رپوټ وائی احتمال لری چه ژر به په محکوم پښتونستان کې پولې اوږدې ګرفتاری وشی.

**دحمل ۳۱-** دهغې تبعیضی رویې له مخې چه دپاکستان د حکومت له خوا د پښتونستان له خلکو سره کیږی له پنځلسوزروتنو نه زیات دپښتانه کارګران له کارګاو او فابریکو نه ایستل شوی دی او وروځ په ورځ د بیکارانو شمیر زیاتیږی.

☆ ☆ ☆

د خان عبدالغفار خان زوی او د مرکزی محکوم پښتونستان دملی محاذ مشر خان عبدالولی خان دوینا په ضمن کی ویلی دی چه دپېښور او مردان په دوو ضلعو کی د ۱٤٤ مادی انفاذ ښیئی چه دپاکستان حکومت غواړی زموږ ملی او سیاسی تنظیم له منځه یوسی او موږ له ټو او بشری حقوقو څخه محروم کړی. ده ویلی دی چه دحکومت له خوا دپښتونستان له خلکو سره له هر وخت نه زیاته بی عدالتی او تشدد کیږی دپېښور رپوټ وائی چه قوی احتمال شته چه دمحکوم پښتونستان په ټولو سیمو کی دپښتونستان دخلکو دپاریدنی په اثر دپاکستان دحکومت له خوا دغه ډول تعزیراتی قوانین نافذ شی.

**دثور لمړی :-** دمحکوم پښتونستان یوه ملی مهم شخصیت ښاغلی محمدافضل بنګښ ویلی دی چه دپاکستان حکومت تل دپښتونستان دملت مطالبوته په بې اعتنایی سره کتلی دی او غوږیې کوڼ نیولی دی. ده وویل په داسی حال کی چه دپاکستان په بندیخانو کښی دپښتونستان دیو شمیر سترو کسانو ژوند له خطرسره مخامخ دی او دپښتونستان خلك په مسلسل ډول دپاکستان له حکومت څخه غوښتنه کوی چه دغی حیاتی موضوع ته پاملرنه وکړی. دپاکستان حکومت برعکس دبندیانو په مقابل کی خپل تشدد زیاتوی. محمد افضل بنګښ دا هم وویل چه دډیره اسمعیل خان دمحبس رپوټونه وائی چه ښاغلی حسین بخش کوثر هم سخت ناروغ دی او په داسی حال کی چه دده ژوند له خطر سره مخامخ دی دپاکستان دحکومت له خوا د ده علاج ته پاملرنه نه کیږی او دغه راز دهغه خپلوانوته اجازه نه ورکوله کیږی چه په شخصی مصرف سره دده علاج ته اقدام وکړی.

په د هنهٔ غوری کښې د سمنټ د نوی فابریکې یوه منظره

دجنګلک په‌فابریکه کښې د نقشې ایستلو خانګه

**د ثور ۲ :-** د پاکستان حکومت د حمل په ۳۱ نیټه د بنو په ضلع کې د پاکستان د تعزیراتو ۱۴۴ ماده نافذه کړېده . د دغې مادې د انفاذ په موجب له پنځو تنو نه زیات خلك نشي سره را غونډېدی او وسله هر ډول چه وي در اودل ئې در نده گناه گڼل کېږي . د مرکزی محکوم پښتو نستان دا دریمه ضلع ده چه دغه تعزیراتی ماده په هغه کې نافذه شویده .

**د ثور ۳ :-** د پاکستان حکومت د پښتو ژبې مشهور شاعر او د ملي عوامي گوند ستر مشر ښاغلی شاد محمد میږی بندی کړېدی . د ښاغلی میږی د بندی کیدو علت په غونډوکې د حماسي شعرونو لوستل او د غه راز د ده ملی فعالیت ښودل شو یدی . خبر دا هم وایې چه د پښتو ژبې بلی شاعر حافظ زیارت خان چه د عوامي گوند فعال غړی دی هم په همدې علت د پاکستان د حکومت له خوا نیول شویدی .

**د ثور ۴ :-** د پاکستان حکو مت د مرکزی محکوم پښتو نستان د کوهاټ په ضلع کې هم ۱۴۴ تعزیراتی ماده نافذه کړېده ، د دغې مادې په موجب له پنځو تنو زیات نشي کولای چه سره یو ځای شي او د حکو مت د سیاست په ضد مظاهره او یا اجتماع وکړي . د پېښور ، مردان او بنو په ضلعو کې د دغې مادې د انفاذ خبر پخوا خپور شو یدی او دهغې په ضد د پښتو نستان د خلکو احتجاج رو ان دی . د سرحد د جمعیت العلماء رئیس مو لینا سید گل باد شاه د یوې وینا په ضمن کې د پاکستان د حکومت دغه اقدام سخت غندلی دی او غو ښتنې ئې دی چه دغه حا لت ته خاتمه ور کړه شي .

**د ثور ۵ :-** د خان عبد الغفار خان زوی خان عبد الولی خان چه له خپل پلار سره ئې د پاکستان په محبس کې کتلی دی د ثور په لمړی ورځ ئې په لا هور کې په یوه مطبو عا تو مرکه کې وویل چه زما پلار صحی حا لت د طبي پر ستا رئ او تدا وی د نشتوالي له کبله ډیر خراب د ی .

ده وویل چه د خان عبدالغفار خا ن پښې پړسیدلی او له هغه سخت درد چه په خپلو زنگنو کې ئې لري ډیر په تکلیف دی .

خان عبدالولی خان وویل چه زما د پلار د بند مو ده د حمل له ۲۰ نیټې نـه د ۶ میاشتو لپاره نوره هم اوږده شویده . خان عبد الولی په یوه لیکل شوی ابلاغیه کې چه په نو موړی مطبوعاتی مرکه ئې و ویل شوه ویلی دی چه زما پلار خان عبدالغفار خان ته د تیر کوچنی اختر په ورځو کې اجازه نه وه ور کړ شوی چه د اختر لمانځه په جما عت کې گډون وکړی نو له دې کبله ئې دری ورځې د نه خوړلو په اعتصاب لاس پورې کړ . خان عبدالولی خان په خپله مطبو عا تو مرکه کې دا هم وو یل چه خان عبدالغفار خان د آزادۍ د لارې یو ډیر پخوانی د خوکلو مجاهد دی ده ۲۸ کاله په بندی خا نه کې تیر کړ یدی چه له هغه نه ئې د هند د نیمې قارې له ویشلو نه وروسته نهه کاله د پاکستان په بند یخا نو کې تیر کړیدی .

خان عبدالولی خان وویل زما پلار دروحی قوت او نه منلو بیدونکی روحی له کبله ډیر شهرت لری ده دا هم وویل امکان لری چه دخان عبدالغفار خان جسم ضعیف او کمزوری کړی خو ددهٔروحیه او مفکوره له منځه نشی وړای، خان عبدالولی خان داهم وویل نو زه له ټولو هغه کسانو چه غواړی . زما د پلار جسم کمزوری او دده روحیه له منځه یوسی غواړم چه له خپلو کوښښو نو څخه لاس وا خلی باید له خان عبدالغفار خان سره داسی معامله او رویه ونه شی لکه دیوه هغه چا سره چه کیږی چه مقصدئی ورك وی . خان عبدالغفار خان هغه څوك دی چه د نظامی قانون په تیارو ورځو کی دده په زرگونو ملگری په رضا کارانه ډول بند یخانی ته لاړل ځینو ملگرو ئی خپله منقول او غیر منقول دارائی له لاسه ورکړی او ځینی نورئی په زندان کی مړه شول خو دوی له خپل تصمیم څخه ندی پیښما نه شوی او د ښیښنی غوښتنی ته ئی هڅه نه وه کړی .

**د ثور ۸:ـ** ښاغلی شیر محمد خان مری بلوڅ چه د پښتونستان یو آزادی غوښتونکی مجاهد دی د حمل د ۳۱ نیټه د سند مربوط په نواب شاه کی د پاکستان د حکومت له خوا نیول شوی او د پیښور عمومی بندیخانه ته لیږل شوی دی. دی تیر کال داگست په میاشت کی له جنوبی محکوم پښتونستان نه په شړنی محکوم شوی او څو ورځی وروسته بندی شو پداسی حال کی چه څو هفتی دده له خوشی کید ونه وی تیری دادی یو ځل بیا په سند کی د آزادی غوښتنی دفعا لیت او د پاکستان د حکومت په سیاست باندی د انتقادی و بنا ء په الزام بندی شو یدی، خبر وائی چه شیر محمد خان مری به خصوصی محکمی ته محول شی چه د هغه جریان پوره پټ دی . لکه چه معلومه شو یده تر اوسه پوری په زرگونو تنه پښتونستانی په دغسی خصوصی او پټو محکمو کی داوږدی مودی په بند او سختو مجازاتو محکوم شویدی او د پاکستان په بندی خانو کی تر سخت فشار اوشکنجو لاندی تیر وی .

**د ثور ۹ :ـ** د پاکستان حکومت د باجوړ په خاوره باندی د حمل د ۲۳ او ۲۵ نیټی دزړه درد ونکی بمباری نه وروسته باجوړ خاوری ته د هر ډول خوراکی او د اغوستلو دشیانو اوډو ندانه د نورو اړتیا و دشیانو صادر ول سخت منعه کړیدی او په دی ترتیب سره ئی باجوړ ، اقتصادی محاصره کړیدی . د باجوړ ر پوټ وائی چه همدغه راز د پاکستان حکومت د محکوم پښتونستان خاوری ته د باجوړ د خلکو په تیره بیا د سالارزو رو تگ منعه کړیدی او هغه څوك چه په محکوم پښتونستان کی ولیدل شی بندی او محبس ته استول کیږی دغه شان د مرکزی محکـوم پښتونستان پیښور یو خبر دی چه وائی د ثور په ۲ یعنی د اپریل په ۲۳ نیټه چه د قصه خوانی د شهیدانو له کالیزی سره مصادفه ده د پاکستان د حکومت له خوا خلکو ته اجازه ورنه کړی شوه چه په دغه ډول د شهیدانو په مزاراو یادگاردگلو ګیډۍ کیدی او ددوی په احترام ملی غونډه وکړی خبرداهم وایی چه خلك په انفرادی ډول د پښتونستان د ملت د آزادی

د لیارې د هغو د فداکارو مېړنو مزار او یادګار ته لاړل او د هغوی په یادګارۍ د ګلو ګېډۍ کېښودې چه په هغې کښې په جلې ډول ژوندي دي وي پښتونستان جمله لیکل شوي وه د پاکستان د حکومت پولیس په دغه نسبت د پاکستان د حاکمه مقاماتو له خوا تر سخت عتاب او تو بیخ لاندې نیول شوي دي. د پېښو ر ریوټ وائي چه د اپریل په ۲۱-۲۲ او ۲۳ نیټه د آدم خېلو په دره بهادر کلې او باسنې تهکال کښې په دولتي ود انیو د شپې له خوا حمله شوي وه او د پاکستان حکومت د دغو سیمو یو شمېر سترشخصیتونه په دغو پېښو کښې د لاس لرلو په الزام تر استنطاق لاندې نیو لي دي.

**د ثور ۱۰** ـ د حمل په ۲۵ نیټه د محمود خېلو د سیمې په نورې کلي کښې یوه لویه جرګه شوې وه چه په هغې کښې علما نو، مخو رو، ملکانو او په زرګو نو تنونو رو خلکو ګډون کړی وو.

جرګه د قرآن شریف د څو آیتونو په لوستلو پرانیستل شوه او وروسته له هغه ملك نعمت الله، ملك اسمعیل خان او مولوی حبیب الله د پښتونستان د خلکو د زیات یو والي د لزوم په باره کښې جذابې وینا وې وکړې مولانا دینداز د پاکستان په بندي خانو کښې د پښتونستان د لوی مشر خان عبدالغفار خان او په زرګو نو نورو سیاسي بندیانو اسفناك او د خواشینې وړ حالات بیان کړه د جرګې غړو دا یو په اتفاق تصویب وکړه چه د پښتونستان خاك خپلې ملي مقصد ته د رسیدو ترو خته پورې خپلې ملي مجاهدې تر پخوا زیاتې کړې او د پاکستان له حکومت څخه ئې وغوښتل چه د پښتونستان د ملت په مقابل کښې په خپل سیاست بیا کتنه وکړي او د پښتونستان ټول سیاسي بندیان بې کوم قید او شرط نه خوشې کړي.

**د ثور ۱۱** ـ د چارسدې د سیمې مربوط د جونګړې د کلي او سید ونکي ښاغلي مردان او د غه راز د اشنغر او سیدونکي ښاغلي عبدالغفور خان چه د واړه د پښتونستان ځلمي او حساس شاعران دي د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په ګناه د پاکستان حکومت له خوا بندیان شویدي.

**د ثور ۱۲** ـ د سردار عطاء الله مینګل او د ده د پلار میرر سول بخش په ګرفتارۍ پسې د بلوڅو څلور تنه نور ستر شخصیتونه ښاغلي عبد الکریم، ښاغلي محمد یعقوب ښاغلي حسن جان او ښاغلي حمزه خان هم د پاکستان د حکومت له خوا بندیان شویدي د کویټې ریوټ وائي چه د دغې سیمې حالات ډېر وخیم دي او د پاکستان حکومت د هغې د کنترول په غرض د کویټې امنیه قومانداني قلات ته لیږلې دي او نوې د بلوڅو یو زیات شمېر خلك تر استنطاق او تعقیب لاندې نیو لي دي.

**د ثور ۱۳** ـ په دې وختو کښې د یو شمېر سیاسي بندیانو صحت زښت ډېر خراب شوی او د پاکستان د محبسونو حاکمانو هم په دغه حقیقت اعتراف کړی او یو شمېر لوی ملي او ګوندی کسان ئې د ډیره اسمعیل خان او کمیبل پور له محبسو نو څخه

د پېښور د مرکزا ولا هور محبسو نو ته لېږدولې دی . خبر داهم وائي چه د پښتو معروف ادیب او د رهبر دمجلې مدیر ښاغلی میر مهدی شاه مهدی دزړه په ناروغی او ښاغلی حسین بخش کوثر دامعا په سخته ناروغي اخته دی او د پاکستان دمحبسو نو حاکمان ددوی دخپلوانو داغوښتنه ردکړېده چه ددوی ته اجازه ورکړه شي چه په خپل لګښت ددوی معالجه وکاندی .

**د ثور ۱۵** - د پاکستان حکومت د بلوڅو دمینګلو ښاغلی محمدعمرخان د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په اثر بندی کړیدی . خبرداهم وائي چه په جنوبی محکوم پښتونستان کی دا څکزو د بیلو بیلو قبیلو یوشمیر مخور د پاکستان دحکومت له خوا د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په ګناه بندیان شویدی .

**د ثور ۱۷** - هغه وخت چه د ثور په ۱۰ نیټه د پېښور او سیدونکی د پاکستان یوه عسکری ټولګی چه د ټورسلوپ په دښته کی په تمرین بوخت ؤ یوشمیر ملی مجاهدینو دهغه تلفون منزری دڅلور نیم سوومتر په مسافه له منځه وړیدی چه دهغه له مرکز سره ئی دعسکری ټولګی ارتباط ټینګ کړی ؤ . خبرداهم وائي چه دغه پیښه دعسکری مقاماتو داضطراب باعث شوی او دماشو دکلی یوشمیر کسان د پاکستان دحکومت له خوا په دغه ګناه بندیان کړیدی او یوشمیر نورئی تر نظارت او استنطاق لاندی نیولی شویدی .

**د ثور ۱۸** - په محکوم مرکزی پښتونستان کی د باجوړ په تیره بیا د سالارزو دخلکو دګرفتاری دپاره د پاکستانی پولیسو اقدامات په کلکه روان دی او تر اوسه پوری په پېښور کی د باجوړ او لس تنه افراد بندیان شویدی . خبرداهم وائي چه د پاکستان دحکومت له خوا د باجوړ د خلکو اقتصادی محاصره د پخوا په شان دوام لری او دهغې د تطبیق په غرض ئی دمومندو خاوری ته دحیاتی ضروریاتو صادر یدل هم منع کړیدی .

**د ثور ۱۹** - دهندو باغ دمربوطو سیمو اوسیدونکی ښاغلی ملک باتل خان ښاغلی ملک منډک خان ، ښاغلی ملک کاروخان ښاغلی میری خان او څلور تنه نور د پاکستان دحکومت له خوا په هندو باغ کښی د آزادۍ غوښتنې د تمایل په ګناه تر نظارت لاندی نیول شویدی دغه راز دکان مهترزئی اوسیدونکی ښاغلی ملک شیرجان کاکړ د پاکستان دحکومت له خوا د آزادۍ غوښتنې داحساساتو په ګناه بندی شویدی بل خبر وائي چه دلورلائی دجمعیت العلمأ رئیس ښاغلی مولوی عبدالکریم دملی جذابو خطابو په اثر لورلائی کښی د پاکستان دحکومت له خوا بندی شویدی .

**د ثور ۲۰** - د پېښور داخبارو د رپوټ سره سم د پښتونستان د پښتو ژبی ستر ادیب او سیاسی نامتو شخصیت ښاغلی محمداجمل خټک په دی وختو کښی د پاکستان په بندیخانه کښی دقلج په ناروغی اخته شوی . دی پخوا د پاکستان په جیل کښی د دماغ دخلل د ناروغی او دسږی په تکلیف اخته شوی ؤ

په دې سلسله بل خبر دې وائي چه په کوټه کې دعوامې گوند دوتنه پخوانې غړي د پاکستانې مقاماتو له خوا نیول شوي دي او دزیاتو تحقیقاتو دپاره لاهور ته لیږل شوي دي . دکوټه سیاسي ډولنو دسیاسي شخصیتو د بندي کېدو په باب کې دحکومت سیاست سخت غندلي دي .

**دثور ۲۳** :- خان عبدالولي خان دپښتونستان دستر مشر اومللي لارښود ونسکي خان عبدالغفار خان زوی د ثور په ۱۷ نیټه په لوی مطبوعاتي ویناکې وویل د خان عبدالغفار خان علالت پهخبر پسې خبر راورسید چهدپښتونستان یوشمېر نور سیاسي شخصیتونه هم دپاکستان پهجېلونو کښې سخت ناروغ دي څرنگه چه خان عبدالولیخان ویلي دي دگل آباد ښاغلی یارمحمدخان اودهوتي ښاغلی مهردلخان دسختې ناروغۍ پهاثر دپېښور له بندنه دلاهور بندیخانې ته لیږل شوي دي . ښاغلی اجمل خټک چهدخطر ناکې ناروغۍ پهحالت د دیره اسمعیل خان له بنده نهد پېښور بندیخانې تهلیږل شوي دي پهگوزن اخته دي . دغه راز ښاغلی غلام رسول خان او څو تنه نور بندیان د ناروغۍ د سختۍ په وجه پېښور ته بیول شوي دي . ارباب عطاءالله خان، محمدزرین خان اوښاغلی محمد اسرار خانلهیوې اوږدې مودې راپدې خوا دناروغۍ پهبستر و کې پراتهدي . دهوویل ددیرة اسمعیل خان په جېل کې دسیاسي بندیانو صحي حالت دپښتونستان دډولوخلکو دتشویش باعث شوي دي او پهتیره بیا دپاکستان پهبیلو بیلو جېلونو کې دشپږو تنو سیاسي بندیانو له وفات نهوروسته دغه تشویش زیات شوي دي . خان عبدالولیخان ویلي دي چه د خان عبدالصمدخان اڅکزي پهباب کې هم دغه ډول اطلاعات رارسیدلي دي. دهد پښتونستان دمشرانو اوخلکو پهمقابل کې دپاکستان دحکومت رویه دخواشینۍ وړ بلله او وې ویل چهدپښتونستان دخلکو گناه دادهچه دپاکستان لهحکومتځخه غواړي دملي مسئلو پهباره کې دوی ته درایو ورکولو حق ورکړی شي . دهدپاکستان له حکومت څخه غوښتنې دي چهباید دپښتونستان ډول سیاسي بندیان بې له کوم قید اوشرط څخه لهبندنه خوشې شي اودوی جایدادونه بیرته ورکړی شي .

**دثور ۲۴** :- پهدې وروستنیو وختو کې دپېښور دضلع او تحصیل مربوط و مومندو پهسیمه کې سخت بحران پیدا شوی اودپاکستان حکومت تراوسه پورې ددغهسیمې شپیته تنهستر کسان بندیان کړي دي . ښاغلی احمدجان، حاجي خان محمدخان، ښاغلی طلا محمدجان، ښاغلی عبدالرحیم ، ښاغلی اکرم الله . ښاغلی ملك عمران ، ښاغلی سلیمان ،ښاغلی محمد، ښاغلی سیدحیدرشاه اوارباب محمداسمعیل خان په دغه جمله کې شامل دي . خبردا هم وایي چهتراوسه لاهم پهدغه سیمه کې دگرفتاریو سلسله روانهده .

**دثور ۲۵** :- دپاکستان حکومت پهدې وختو کښې دبچکی دکلي اودهغه دخوا وشا دکلیو څهدپاسه پنځوس تنهپهدې گناه نیولي چه ددولتي ودانیو دسپیڅلو او پر

پولیسو باندی دحملی په پیښو کی پېلاس درلود . بلخبر دیچه د پښتونستان د کملی دجومات امام او ښاغلی دوست محمدخان چه دخدایي خدمتګارو دملی ګوند یو فعال غړیو د پاکستان حکومت دخپلوا کی غوښتلو په ګناه بندیان کړيدی .

**دثور ۲۶ :** ـ پهدی ورځو کی دملا کیڼر د په زیارت کی د ښاغلی خونجا نعمان پهریاست او د ښاغلی خان صاحب پهاهتمام یوه لویه جرګه هوی وه چه پههغی کی د وزیرو دمحمود خیلو دقبیلی مشرانو اوو ګړو لوی ګډون کړیو ، جرګه د قرآن کریم دځو آیتو پهتلاوت دمولوی میرصاحب خان له خوا پرانستله شوه او ور وسته لههغه یو شمیر شاعرانو او لیکوالو خپل اشعار او مقالی و اورولی چه د حاضرینو د توجه او استقبال وړ وګرځیدی جرګی د پاکستان لهحکومت نه وغوښتل چه د پښتونستان دملت پهحقوقو باندی اعتراف وکړی او د نړیوالو ګوټ بحران پای ته ورسوی . همدغه راز جرګی د پاکستان لهحکومت څخه وغوښتل چه ډیر ژر د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی . دجرګی شاملینو تایید کړه چه ترڅوچه د پاکستان حکومت د پښتونستان دخلکو پهحقوقو اعتراف و نهکړی خپلی ملی مبارزی ته به دوام ورکړی .

**دثور ۲۷ :** ـ پهدی وختو کی د پاکستان حکومت دمردان او سیدو نسکی مولانا غلام قادر او دچار سدی دبابړو او سیدو نسکی ښاغلی سیداحمد خان او دهغه حکومت لهسیاست سره دمخالفت په ګناه بندیان کړیدی . دکویټی خبروایی چهدغه راز ښاغلی محمدعثمان کانسی او ښاغلی عبدالله جمال الدین د آزادی غوښتنی دفعالیت په ګناه د پاکستان دحکومت لهخوا بندیان شوی دی .

**دثور ۲۹ :** ـ دمرکزی محکوم پښتونستان پېښور د بیلو بیلو سیمو څخه د پاکستان دحکومت وا کمنو ته احتجاجیه لیکونه لیږل شوی دی او په هغو کښی د پښتونستان دخلکو پهمقابل کی دحکومت رویه غندل شویده پهاجتماعی لیکونو کی د پاکستان لهحکومت څخه غوښتل شویدی چه د پښتونستان دملت پهمقابل کی خپل سیاست باندی نوی نظر وکړی او بی له کومقید او شرط څخهژر د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی پهدغو لیکونو کی دخان عبدالغفار خان او د پښتونستان د نورو سیاسی بندیانو صحی حالت د خرابی په باره کی سخت تشویش ښکاره کړی شویدی د پېښور دشهبازداردو ورځپاڼی خبردی چه د ثور تر ۲۲ نیټی پوری د د غو احتجاجیه لیکونو شمیر لسزرو ته رسیدلی او دغه سلسله اوس هم روانه ده .

**دثور ۳۰ :** ـ د پښتونستان دملی محاذ مترمشر ارباب سیفالرحمن به خپله هغه مطبوعاتی وینا کی چه د ثور په ۱۸ نیټه ئی اخبارو ته لیږلی ده . د پاکستان لهحکومت څخه ئی غوښتی دی چهژر د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی . ارباب سیفالرحمن پهخپله مطبوعاتی وینا کی د پښتونستان سیاسی بندیانو ناوړه حالت

بیان کړی او ویلی ئې دی چه د پښتونستان له یوزرو دوو سوو تنو نه زیات مخور شخصیتونه د پاکستان په جیلونو کښې په ناوړه حالت ژوند کوی چه د هغوی یو شمیر د جیلونو د حکامو د ناوړه رویې په اثر مړه شوی ده او یو زیات شمیر ئې د ناروغۍ په بستر کې پراته دی. ارباب سیف الرحمن ویلی: ی تازه راورسیدلی خبرونه وایی چه د خان عبدالغفار خان صحی حالت تر اوسه لا هم وخیم دی او د دغه ملی مشر د ژوند د وقایې د پاره د پاکستان د حکومت له خوا هیڅ پاملرنه نه ده شوی.

**د ثور ۳۱ —** د مرکزی محکوم پښتونستان ستراد یب او لیکوال ښاغلی فارغ بخاری چه د ملی عوامی گوند غړی هم دی په هغې و ینا کی چه د ثور په ۲۶ نیټه ئې وکړه د ښاغلی اجمل خټك د صحی حالت په سخت اختلال ئې تشویش ښکاره کړ ښاغلی فارغ بخاری په خپل وینا کی ویلی دی چه د ښاغلی اجمل خټك صحت بیخی خراب دی او د هغه ژوند په خطره کی دی څرنگه چه د هغه علاج ته هیڅ تو جه نه کیږی د د ه صحی حالت پر له پسې خرابیږ ی ښاغلی فارغ بخاری د غه راز ویلی چه اجمل خټك د دغې سیمې د خلکو یو نامتو او گران شخصیت دی او د هغه د صحت د خرابی خبر و نو په ټول خلکو کی ډیر سخت تاثیر کړی ده ، ور یل ز ه د پاکستان له حکومت څخه غو اړم چه ژر ښاغلی اجمل خټك له بندنه خوشی کړی او د خلکو زیات تشویش لر ی کړ ی. فارغ بخاری په پای کی ویلی دی چه که ښاغلی اجمل خټك د پاکستان د حکومت د بی پروایی په اثر تلف شی د هغه نتیجی به ډیری وخیمې وی ،

د سرطان ۴ :— په دی وختو کښې د پېښور د ښار د کو هدامن او سیدونکی ښاغلی حیات نور ښاغلی محمد چراغ او ښاغلی شیوه دین د آزادۍ غوښتنې د احساساتو په اثر بندیان شوی دی.

د سرطان ۵ :— له آزاد منځنی پښتونستان نه راغلی خبردی چه په دی وختو کی د پښتونستانیانو د آزادۍ غوښتونکو او د میرعلی د عسکری چوڼۍ د ساتونکو قواؤ ترمنځ نښته و شوه او د دواړو خواؤ ترمنځ څو ساعته ډزو پکوا و ماشینگڼو ډزی ردو بدل شوی دی. لکه چه معلومه شوی ده د آزادۍ غوښتونکو مشر ښاغلی شیرغلام په دغه پېښه کی سخت ټپی او د عسکری قشلی د ساتونکو لاس ته ورغلی دی، د دواړو خواو د سرتلفاتو اندازه معلومه نده خو ویل شوی دی چه د دغو قواؤ تاسیساتو او مواصلاتی وسایلو ته ډیر زیان رسیدلی دی.

د سرطان ۸ :— د مرکزی محکوم پښتونستان یو مخور ښاغلی مفتی محمود د پاکستان له حکومت نه غوښتی دی چه ژر خان عبدالغفار خان له بند نه خوشې شی د ه ویلی دی چه خان د و رستیو شپاړسو کلونو زیاته برخه په بند کې تیره کړیده د ه دا هم ویلی دی چه خان عبدالغفار خان چه خپل ټول عمر یې د آزادۍ د مجادلې په لیاره کښې تیر کړیدی او س په داسې حال کې چه صحت ئې خراب دی په بند کې دی.

دسرطان۹:- دسرطان په لومړۍ نیټه د محکوم مرکزي پښتونستان داد بې ټولنو او اتحادیې لهخوا یوه ستره ادبي ټولنه دساهو لیکوالو مرکز نومېږي جوړه شوه ددغې ټولنې مقصد دپښتونستان دملي ادب او ثقافت څخه دفاع او دپښتو ژبې او داد بیاتو دترقۍ په لیاره کښې مجاهده ده دمحکوم پښتونستان پهټولو سیمو کښې ددغې ټولنې دجوړېدلو تر دهر کلي شوېدی دغهځای یو نامتو ادیب ښاغلی عبدالخالق خلیق درئیس پهحیث او پروفیسر قلندرمومند دټولنې دعمومي منشي پهحیث انتخاب شوېدی خبر داهم وایې چهد ټولنې پهلومړۍغونډه کې چه په پېښور کې وشوه دلوزوسیمو داد بې ټولنو او داتحادیو نمایند ګانو او دمحکوم پښتونستان ادبي او اجتماعي سترو شخصیتو ګډون کړی ؤ.

دسرطان ۱۰- له آزاد شمالي پښتونستان غازي آباد نه راغلي خبر وایي چهد جوزا په ۳۱ نیټه په لکړو کې قومي مهمه جرګه شوېوه چه پهغې کې دګربزو، مسعودو او دقندهاري ساپو دقبیلو عالمانو محورو مشرانو او زیاتو کسانو ګډون کړیؤ جرګه دقرآن عظیم الشان دځو آیتو پهتلاوت دمولوي رحمن الدین لهخوا پرانستله شوه پهدغه جرګه کې قومي مشرانو مهمې وینااوې وکړې دجرګې ګډون کوونکو یو محل بیا تایید وکړ چهد پښتونستان ملي هدف تهدرسیدو تروخته پورې خپلې مبارزې ته دوام ورکوي جاګې وغوښتل چهټېرژر سیاسي بندیان خوشي شي.

دسرطان ۱۱:- دپېښور دضلع دسیمې مربوط دسرحد دجمیعت العلما اعلی ناظم جناب مولوي حمدالله دغې وینا په ضمن کې چه دسرطان په ۴ نیټهئې وکړه دپاکستان لهحکومت څخه ئې غوښتې دي چه دپښتونستان ټول سیاسي بندیان بې له کوم قید او شرط نه خوشي کړي.

مولینا حمد الله دسیاسي بندیانو حالت دخواشینۍ وړ وباله اووې ویل چه ددغې سیمې خلک ددغه کار په وجه سخت مضطرب او پریشان دي.

۞ ۞ ۞

سردار بهادرخان دحکومت دمخالفو مسلم لګیانو دټولګې مشر دپاکستان دملي شورۍ دمجلس په غونډه کې وویل چه باید خان عبدالغفارخان ډېرژر محاکمه شي. دهوویل چه کهدی او نور سیاسي بندیان محاکمه کیږدای اوس بههیڅ یو په محبس کښې نه ؤ دکراچۍ دراډیو خبروائي چهد پاکستان داخلهوزیر ښاغلي حبیب الله خان دهغهمیواد دملي شورۍ دمجلس په وروستنۍ غونډه کې هغو الزامونو ته ځواب ورکړ چهد حکومت دمخالفو مسلم لګیانو دمشر سردار بهادر خان لهخوا دبلو څو په مقابل کې دحکومتي مقاماتو دناوړه روېې پهباره کې لګول شويوو اووې ویل چهد ۱۹۵۸ کال په پای کې اود ۱۹۵۹ کال پهلومړیو وختو کې د بلوڅو یوه سردار دحکومت په ضد بغاوت تهقیام کړیؤ او دکویټې دحکومتي مقاماتو یوشمیر افراد او پولیس ئې وژلي ؤ، دغهسړی چه

پوښتېر وکړې ئې دخان راغونه کړي ؤ.دېرو کلونه یې اورو اچاؤ اومحلي حکومت ته یې دخپلو غوښتنو دسرته رسولو دپاره اخطار هم ورکړی ؤ.دغو حرکاتو حکومت دې ته اړ کړ چه ددوی بغاوت پای ته ورسوي.

دسرطان ۱۲ـسردار بهادرخان دپاکستان دملي شورى دمجلس په ورمهو دغونډه کې وویل چه بايد دانسانيت نه لري هغې ډويې په باره کې څېړنه وشي چه د ۱۹۵۸ کال په پای او د ۱۹۵۹ کال په سرکې دکويټې دحکومتي مقاماتو له خوا دبلوڅو پر سو دتنو بلوڅانو سره شوي دي.

دسرطان ۱۵ـدملي عوامي ګوند مشر او د پاکستان داسامبلۍ غړي ارباب سیف الرحمن داسامبلۍ په وروستۍ غونډه کې په کلکه سره د پاکستان له حکومت نه غوښتني دي چه ژرخان عبدالغفار خان او د پښتونستان نور قول سیاسي بنديان خوشې کړي. ده ویلي دي چه دسیاسي بنديانو شمېر زرګونو تنو ته رسېږي او هغه وضع چه په جیلونو کې له هغوی سره کېږي دتاسف وړده او که په دغه ترتیب دوام وکړي دهغوی دپوشمېر ژ یاتو ژوندیه له خطر سره مخامخ شي.

دسرطان ۱٦ـد پاکستان داسوشیتد پرس دخبر رسو لو آژانس خبر ورکوي چه دمیرخیر بخش خان مري د پاکستان دپارلمان غړی په کویټه کې ونیول شو. نوموړی د سره دجرایمو دقانون دبلوڅو پښتنو مادي په اساس نیول شوی او هم کویټې ته نژدې د سختو عملیاتو او هلي ګولي او دکويټې سوي او دهغه دشاوخوا داوږو رسولو د مرکز د نیولو دپاره دیوه کلي د اوسېدونکو دراپارولو په ګناه ملزم دی.

دسرطان ۲۰ـدسرطان په ٦ نیټه دجندول او میدان دخلکو او انتظامي قواؤ ترمنځ نښته وشوه چه دهغې په اثر دواړو خواؤته دسرتاوان رسیدلی دی او په دغې پېښې پسې دسرطان په اوومه نیټه د پاکستان څلورو جنګي الوتکو په دغو سیمو باندې بمبارۍ کړې دي او په مالي تاوان سربېره ددغو سیمو ۱۷ تنه اوسېدونکي مړه شويدي، بل خبر وایي چه د سرطان دشپږمې ورځې د نښتې په اثر او ه تنه پاکستاني ژر اندام وژل شويدي او دژر اندام قرارګاه چه لال کلاه نومېږي د آزادۍ غوښتونکو لاس ته ورغلې ده، ورو سته دپوځ وايي چه د هغو سیمو بحران زیات خراب شویدی او دخلکو له خوا پر یسي مظاهرې شويدي.

دسرطان ۲٤ـدارباب سیف الرحمن ښاغلي محمدافضل بنګښ او ښاغلي جلال الدين اکبر په ګډون د پښتونستان دملي محاذ یو شمېر مشران چه دخان عبدالولي خان په مشرۍ دتنظیمي او تبلیغاتي پروګرام داجرا په غرض د بنو ضلعې ته روان ؤ دلستمبر په سیمه کې دسرطان په ۱٦ نیټه دپولیسو په واسطه مجبور شول چه بیا پېښور ته بېرته ستانه شي او خپل پروګرام فسخ کړي د پاکستان دحکومت دغه رویه دمحکوم پښتونستان په ټوله سیمه کې دملي ډولنو دپاریدني او هیجان باعث شويدي او دهغه په مقابل کې سخت عکس العمل څرګند شويدي. دهیئت غړو او رئیس ددغه غیرقانوني اقدام په نسبت د پاکستان په حکومتي مقاماتو احتیاج کړیدی.

د سرطان ۳۰-د پاکستان د اسامبلۍ یوه غړي ښاغلي سیف الرحمن د نورو په مجلس کې غوښتل چه د ښاغلي خان عبدالغفار خان د صحي حالت په باره کې چه اوس د لاهور په یوه محبس کې پروت دي تحقیقات وکړي. ښاغلي سیف الرحمن وویل چه د خان عبدالغفار خان صحي حال ډیر وخیم دي.

د سرطان ۳۱-له جنوبي محکوم پښتونستان نه راز سیدلی خبر دي چه په هغې نښته کې چه د پښتونستان د خو تنو آزادي غوښتونکو او د پاکستان د عسکري تهاڼو د افرادو ترمنځ مستونګ ته نږدې وشوه د هغې تهاني دوه تنه ساتونکي مړه او څلور تنه نور ټپیان شول، بل خبر وائي چه د کاکړو د قبیلې مربوط ښاغلي جانقل، ښاغلي روزي خان او ښاغلي شنګي خان له خپلو خو تنو ملګرو سره د آزادي غوښتني د فعالیت په ګناه د پاکستاني مقاماتو له خوا بندیان شویدي.

**د اسد۳**- د اتمانخیلو د قبیلې لویه قومي جرګه د مړ خني په کلي کې د سرطان په ۲۶ جوړه شوې وه چه په هغې کې قومي مشرانو د پښتونستان د خاوري د دفاع او آزادي په باره کې جدا جدا بیانات وکړل او په نتیجه کې ئې تصویب وکړ چه باید د پاکستان حکومت باجوړ په خاوره کې د لاس وهلو نه ځان وژغوري او په دغو علاقو کې د سړک د جوړولو او د عسکري تهانو د تشکیل د نظریې څخه جداً لاس واخلي اطلاع داهم وائي چه د جرګې شاملینو د پاکستان له حکومت څخه وغوښتل چه د محکوم پښتونستان سیاسي بندیان ډیر ژر خوشي کړي او د دوي جایدادونه چه د پاکستاني حکامو له خوا مصادره شوي دي دوي ته بیرته ور کړي جرګې همدغه راز فیصله وکړه چه د دغه ټول جرګې د خپلو تصمیماتو او ملي یووالي په باره کې د باجوړ په بیلو بیلو قبیلو کې جوړې کړي او وروسته بیا لازم تیاري ونیسي.

**د اسد۴**- د محکوم پښتونستان مرکزي پښتونستان یوه مخور ښاغلي میاجعفر شاه په هغې وینا کې چه په دې وختو کې ئې وېلي دي چه د پښتونستاني سیاسي بندیانو حالات د اندیښنې وړ دي او باید ژر ترژره له بند څخه خوشي کړې شي. ده وېلي دي چه هغې سختې او ناوړي روئې چه د پاکستان حکومت له خپلو سیاسي مخالفانو سره نیولې ده مشکلات نه دي کم کړي بلکه خرابې تیاوې زیاتوي. ده وویل چه د هغو رو ستیو بحرانو له مخې چه د پاکستان حکومت ورسره مخامخ دي لازم ګڼل کیږي چه د پاکستان حکومت د پښتونستان له خلکو سره ښه رویه وکړي.

**د اسد۸**- د سرطان په ۱۹ ورځ د توري ویالي د ملك توتي خان په کلي کې یوه ستره جرګه شوې وه چه په هغې کې د اپریدو د قبیلې مشرانو، مخورو او زیات شمیر نورو خلکو ګډون کړی ؤ. جرګه د مولوي ایوب شاه له خوا د قرآن شریف د څو آیتونو په تلاوت سره پرانستل شوه او وروسته له هغه قومي مشرانو جدا جدا بیانات وکړل چه حاضرینو ئې په هر کلي وکړ. جرګې د خپلو تصویبونو په ضمن کې د پښتونستان په تیره بیا د محکوم

پښتونستان د بحراني حالت له کبله اندېښنه ښکاره کړه او د پاکستان له حکومت څخه ئې وغوښتل چه ژر تر ژره د پښتونستان سیاسي بندیان خوشې کړي. جرګې د پاکستان له حکومت څخه دا هم وغوښتل چه د آزاد پښتونستان په خاوره کې له لاس وهلو نه ډډه وکړي. جرګې په دې باره کې د پښتونستان د خلکو کلک تصمیم بیا تایید او تصویب کړ چه خپلو ملي مبارزو او فعالیتونو ته په هر قیمت چه تمامېږي دوام ورکوي.

د اسد ١٠: په دې وخت کې ښاغلی غلام محمد اشېنزائي له خپلو یو شمېر پېروانو سره د آزادۍ غوښتنې د فعالیت په ګناه بندي شویدی.

د اسد ١٢: د آزاد شمالي پښتونستان باجوړ نه را غلي خبر دي چه په مومندو کښې د پاکستان د وسله لرونکو قواؤ او د سالارزو د آزادۍ غوښتونکو مجاهدینو ترمنځ د اسد په دوهمه نېټه نښته وشوه چه څو ساعته ئې دوام درلود.

د اسد ١٤: د هغې اعلامیې سره سم چه د ملي عوامي ګوند له خوا خپره شویده د خان عبدالغفارخان صحي حالت وران دی او ده روغتیا له د پاره و رو سته معالجه نه کړي ملي عوامي ګوند د لاهور په محبس کې د خان عبدالغفارخان د صحي حالت د آینده په باب اندېښنه څرګنده کړه.

**د اسد ١٦**– د کراچۍ در ادیو د خبر سره سم د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفارخان د دوی د صحي حالت د ډېرې خرابۍ په لحاظ د لاهور د مرکزي محبس نه د ملتان یوې شفاخانې ته بېول شویدی لکه چه معلومه شوې ده له یو څه مودې را په دې خوا په دغه محبس کې د خان عبدالغفارخان صحي حالت مخ په خرابۍ روان ؤ او د پښتونستان په خلکو علاوه چه په بېلو بېلو جرګو او ټولنو کې ئې د خپل ګران مشر د روغتیا د خرابۍ په نسبت ئې اندېښنه او تشویش ښکاره کاؤ او له بندنه ئې د دوی د خلاصېدلو غوښتنه کوله د پاکستان ځینو زیاتو سیاسي او اجتماعي سترو کسانو هم په دغه باره کې د احتجاج غږ پورته کړی ؤ.

یو بل خبر وائي چه خان عبدالغفارخان د هغې نامناسبې رویې په مناسبت چه په محبس کې د دوی سره کېدله په تېره بیا چه د صحي او طبي آسانتیاوې ورته نه برابرېدلې ارا ده ئې کړې ده چه د دغه حالت د دوام په صورت کې د ډوډۍ د نه خوړلو په اعتصاب لاس پورې کړي.

**د اسد ١٨**– د ختیز پاکستان شپږ تنو سیاسي مشرانو د پاکستان له حکومت نه غوښتې دي چه خان عبدالغفارخان چه اوس د لوېدیز پاکستان په جېل کې په رقت وړ حال شپې ورځې تېروي له بندنه خوشې کړي، د غو مشرانو د خان عبدالغفارخان د صحي حالت په باره کې خپل تشویش او پار یدلي مراتب څرګند کړي دي، په هغې اعلامیه کې چه د دوی له خوا خپره شویده ویل شوي دي چه له ١٩٥٨ کال نه چه په پاکستان کې او سني رژیم مېنځ ته راغلی دی تر اوسه پورې خان عبدالغفارخان او د پښتونستان یو شمېر زیات آزادي غوښتونکي د آزادۍ غوښتنې او د خپلو حقوقو لاس ته راوستلو په لپاره کې د فعالیت

په گناه د پاکستان په جیلونو کی په خواشینی کوونکی حال پراته دی کله له یوی بندیخانی نه بلی بندیخانی ته او کله له یوه ځایه بل ځای ته لیږدول کیږی دغو مشرانو کلکه غوښتنه کړیده چه باید ژر خان عبدالغفار خان او دهغه ملگری او نور آزادی غوښتونکی له بندیخانو نه خوشی او دهغوی صحی حالت ترغور لاندی ونیول شی.

**د اسد ۲۰ —** د اسد په اوومه او نهمه ورځ د چندول په دوو سیمو کی لویی قومی جرگی شوی وی چه په هغو کی علماؤ، مشرانو او زیات شمیر قومی افرادو گډون کړی ؤ جرگی د پښتونستان په تیره بیا د دیر د ریاست چندول او باجوړ د خلکو په مقابل کی دپاکستان د حکومت رویه وغندله او له دغه حکومت څخه ئی وغوښتل چه د پښتونستان دملت په مقابل کی په خپل سیاست بیا کتنه وکړی.

جرگی څرگنده کړه چه دخپلو ملی مقصدونو دلاس ته راوړلو له پاره دپښتونستان دخلکو تصمیم قطعی دی او هیڅ ډول تهدید او فشار دوی له خپلی ملی مبارزی نه نشی اړولی.

جرگی وغوښتل چه باید دپاکستان حکومت ژر تر ژره دپښتونستان دملت په حقوقو اقرار وکړی او دپښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی. دوالهٔ لوبی جرگی په دغو نارو سره پای ته ورسیدی چه ژوندی دی وی پښتونستان. وروستی خبر وائی چه دپاکستان حکومت له دغو جرگونه وروسته ښاغلی ملك عبدالحبیب او دشال کوندی جناب مولوی صاحب بندیان کړیدی.

**د اسد ۲۴ —** ښاغلی میارضوان الله کاکاخیل چه دملی عوامی گوند یوستر مشر دی دمجاهدی او آزادی غوښتنی د فعالیت په اثر به دی وختو کی دپاکستان د حکومت له خوا بندی شویدی.

**د اسد ۲۵ —** د لویدیز پاکستان حکومت د پاکستان دپخوانی ملی عوامی گوند مشر مولانا بهاشانی او خان عبدالولی خان ته اجازه ورکړیده چه د خان عبدالغفار خان سره وگوری. خان عبدالغفار خان چه څومودی پخوا دلاهور په یو زندان کی ؤ اوس په ملتان کی د نشتر په شفاخانه کی تر علاج لاندی دی. (پای)

(د ٣٥٤ مخ پاتې)

د اسد ١٢ـ گران قولواك همایونی اعلیحضرت او علیا حضرت ملکه په دوه بجو د المان د اتحادي جمهوریت د جمهور رئیس جلالتمآب هنریش لوبکه په بلنه په الوتکه کښې هغه هیواد ته روان شول .

د المان اتحادي جمهوریت ته د معظم قولواك همایونی اعلیحضرت د مسافرت په موده کښې د سلطنت چارې د معظم قولواك همایونی اعلیحضرت مشر زوی والاحضرت شهزاده احمد شاه وکالتاً اجرا کوې .

د اسد ١٢ـ د گران قولواك له حضوره د سویډن د لوی سفیر اگریمان صادر شویدی .

د اسد ١٢ـ په کراچۍ کښې د همایونی معظم قولواك منتخب لوی سفیر ښاغلی محمد هاشم میوندوال او د افغانی سفارت غړی له کابل نه پاکستان ته روان شول .

افغانی پارلمانی هیئت چه د امریکا د حکومت په بلنه هغه هیواد ته تللی و د خپلو لیدنو کتنو د پای ته رسولو نه وروسته بیرته کابل ته راغی .

د اسد ١٢ ـ د ملی شوری رئیس دکتور عبدالظاهر په ملی شوری کښې د خپل وروستی مسافرت لیدنی کتنې توضیح کړې .

د اسد ١٣ـ د وزیرانو په مجلس کښې له بیسوادی سره د مبارزی موضوع تر کتنې لاندې ونیول شوه .

د اسد ١٤ :ـ د معظم قولواك همایونی اعلیحضرت او علیا حضرت معظمه ملکه د افغانستان په وخت د ماسپښین په دوه نیمو بجو د بن هوایی ډگرته ورسیدل .

د اسد ١٤ :ـ ښاغلی صدراعظم او د ملی شوری ښاغلی رئیس د گران قولواك د وکیل والاحضرت شهزاده احمد شاه حضور ته ورغلی و .

ښاغلی دکتور محمد یوسف صدراعظم او د پوهنی وزیر د صدارت عظمی د دوهم معاون دکتور پوپل د پوهنتی له مدیرانو سره وکتل .

د اسد ١٥ :ـ معظم قولواك همایونی اعلیحضرت د پترز برك په ماڼۍ کښې د کونیکس وینټر د ښارطلایی کتاب لاسلیك کړ ، وروسته له هغه شهریاری ذات او علیاحضرتی معظمی ملکی د بن د ښار ، د ښاروالی شوراته تشریف یوړه ، د بن د ښار د شورا له ماڼۍ کښې د شوراغړو د شهریاری ذات استقبال وکړ .

د اسد ١٥ :ـ ښاغلی دکتور محمد یوسف صدراعظم میربچه کوټ ته تشریف یوړه او د کوهدامن د باغ والاؤ او خلکو سره یې وکتل .

د صدارت عظمی د دوهم مرستیال د پوهنی د وزیر او د خارونډوی د عالی شورا د رئیس ښاغلی دکتور علی احمد پوپل په مشرۍ د څینو وزراتو نوبتستر و سیاسیو د ښو

(د ۲۷ مخ پاتې)

## د کابل په دربار کښې د باندنیو هیوادو د سیاسی هیئتو نو رئیسان

| | |
|---|---|
| د ولسی چین لوی سفیر | ښاغلی هاو تنګ |
| د یوګو سلاویا » | » پترایو کویك |
| د ترکیې » | » طلعت بنلر |
| د هند » | » جګن نات د هامیجا |
| د اتحاد شوروی » | » سرګی، اف، انتو نوف |
| د چکو سلواکی » | » جان چك |
| د هالیند » | » جانکهیر ګرار د خان بلو کلند |
| د پولیند » | » اد وارد کو لك |
| د اندو نیزیا » | » آر سو یکیا رتو |
| د ایتالیې » | » کارلو چیمینو |
| د ایران » | » محمد ذو الفقاری |
| د بلغاریې » | » لازار تشکوف |
| د جاپان » | » ساد او هیر وسه |
| د امریکې » | » جان ، ام ، ستیفز |
| د مغولستان » | » داشین آدل بیش |
| د فرانسې » | » جورج کتا ند |
| د مکسیکو » | » اوکتا ویو پاز لازانو |
| د ګانا » | » سد کوابلا انتو نی |
| د برتانیې » | » آرتر جیمز د.لا مار |
| د یونان » | » جورج وار سامی |
| د فدرالی آلمان » | » دکتور ګرهارد مولتمن |
| د نیپال منتخب لوی سفیر » | یاد و نات خا نال |
| د متحد عربی جمهوریت منتخب لوی سفیر | » صلاح الدین قنصوة الشافعی |
| د سویدن منتخب لوی سفیر | » بجورن اکسل ایو یند برات |
| د ارجنټاین مختار وزیر » | » کارلوس ګستا فو لرنا |
| د رومانیې » | » یانکو هورا تیو |
| د بلویك » | » اندری ویند لن |
| د هنګری » | » کارو لی رات |
| د برازیل منتخب مختار وزیر | » مار یوګو یماراېس |
| د فنلنید » » » | » وانا مو جو رما |
| د سویس » » » | » ماکس کو نیك |
| د سعودی عربستان داوی سفارت شار ژدا فیر | » احمد السراج |
| د عراق » » » | » رافد العسکری |
| د اتریش » » » » | دکتور ریچارد ، اف، کر ویستل |

(د ۲۰۸ مخ پاتی)

## دروغتیا دوزارت فعالیتونه

۱ ـ دمرکزی لابراتوارو دبرښنا لین تمدید .
۲ ـ دابن سینادالحاقیی » » »
۳ ـ دپروان دپولیکلینك « » »
٤ـ دلوگر دشفاخانی دبرښنادلین تمدید اودجنراتورو نصبول
۵ ـ دخوست » » » » » »
٦ـ دبغلان داکسریز پولیکلینك او دموسسی دبرښنادلین تمدید اوجنراتور نصبول .

### دتجهیزاتو تکمیلول :

برسیره دپورته ذکرشوو پروژو پهعملی کولو په۱٤۱ کال کښی دځینو موجوده صحی موسسو اودیو سل بستریزی شفاخانی یوه برخهفنی تجهیزات معالجوی مواد لابراتواری اوداکسریز سامانونه ، د نارو غانو جامې اونور په ممکنه چټکیا تهیه اوپه بیلو بیلو صحیمو سسو کښی په کاراچول شوېدی اوپهرا تلو نکی وخت کښی هم په نظر کښی نیول شوی چهدطبیموسسو په ځینو تجهیزاتو کښیاقدامات وشی .

### عمرانی ترمیمات اواصلاحات :

په۱۳٤۱ کال کښی دکابل دتوبر کلوز دمجادلی مرکز ، دابنسینا داکسریز موسسه ، دسڅوسناتوریم او دواکسین دتهیه کولو دموسسی دتعمیراتو د ترمیم دبرښنا اوداوبو رسولو له نقطهٔ نظره عمرانیاصلاحات شویدی .

دکندهاردملکی شفاخانی پهدوانی کښی لازمهاصلاحات شویدی :

څرنګه چه دشبرغان پهشفاخانه کښی دجراحی کومه څا نګه نهوهاو لوی لاری خلکو تهزیات مشکلات ورپیښ ؤ نو پهدی وختوکښی دنو موړی شفا نی د جراحی دشعبی دپاره لازمه وسایل او تجهیزات برابر اوپه۱۳۴۱ کال کښی په کار اچول شویدی .

### دصحیمرکزی لویمدیریت :

**الف :** ـ دکوی واکسیناسیو ن :
۱ ـ دکابل په ښار کښی ۲۲۷۲۲٤ تنه.
۲ ـ پهلوگر کښی ۶۱۰۸۲ تنه.

ب ـ هغه واکسینو نهچهو یشل شو یدیپه لاندیډول دی .
۱ ـ دکوی واکسین ۱۹۱۹۲۰ تنه .
۲ ـ دکوی وچ واکسین ۳۸۰۰۰ تنه .
۳ ـ دکولرا واکسین ۲۱۳۰۰ سیسی .

۴ - دمحرقې واکسین ۲۰۷۰۰ سی‌سی

ج: د هغو مسافرو د پاره‌چه خارج ته‌تللي دي وروسته ددری کو نو واکسینو نو له‌تطبیق نه (۱۹۴۰) قطعي بین‌ا لمللي سرتیفکو نه ورکړشویدی او برسیره په‌پور تنیو اجرا آتو هغذائي تسممات او نو رهم ترکتني‌اوغور لاندی نیول شو یدی . او مربوطو مراجعوته داسي صحي‌هدا یات ورکړشوي چه‌د هغوسره سم‌لازمه اجراآت وکړي او همدا رنګه ئې د کابل‌د مرکزاو کابل‌ولا یات‌شفا خانې وخت‌په‌وخت کتلي دی .

د - د ۴۲ کال دجورا له‌آخرنه دسنبلې ترآخره پوری دصحي مرکزی لوی مدیریت دکوی‌دامحاد پروګرام دتطبیق په‌برخه‌کښې فعالیتونه ورځ‌په‌ورځ زیات شوی او برسیره پردی دروغتیا وزارت دکوی دیوتن دمشاور دتقرر دیوی اندازی یخچالو او ترموزونو ترا نسپو رتي وسا یلو اودکوی دو چو وا کسینو په باره کښې د د نیا دصحي‌موسسې‌مرستي‌لاسته‌راوستي‌دی‌اودا پروګرام په‌کابل ، ولایاتو اودګران مملکت په‌نورولو سیمو کښې په‌بریا لیتوب ادامه‌لری .

## دساري ناروغیو دکنترول مدیریت :

له‌ساري ناروغیو سره مجادله : دروغتیاوزارت په۱۳۴۱ او په‌دی‌کال (۱۳۴۲) کال کښې د ملا ریا - کوی - محرقې - کو لرا - حمای لکه‌دار - توبرکلوز، لیونی سپی، سفلیس اونورو ناروغیو په‌مقابل کښې په‌پوره اندازه مجا دله کړي او په کافي اندازه ئې پرسو نل دمجادلې تجهیزات اولوازم او نقلیه وسا یل تدارك اوهغه قول ئې دساري ناروغیو دمجا دلې په‌لار کښې په‌کار اچولي دی‌اوپه راتلونکي‌وخت‌کښې به‌هم ددغو ناروغیو په‌ضد مجادله روانه‌وی .

الف : د ننګرهار په‌ولایت کښې دکوی‌مجادله هغه‌هیئت چه۲۴ تنه‌ستنې وهونکي او یوتن ډاکټرو له‌مجهز سامان اولوازمو سره وراستول شوی و چه په (۲۰۰۰۰) تنو باندی دواکسین له‌تطبیقولو نه له‌څلور میا شتي مجا دلې نه و روسته بیر ته مر کز ته‌را غی .

## دپکتیاپه‌ولایت کښې دکوی دناروغۍ په‌ضدمجادله :

یو هیئت چه۲۴ تنوستنې وهونکو (ابله‌کوبانو) نه‌مرکب‌ؤ د یو تن ډاکتر په‌مشریه له‌مجهیزو سامانو اولوازمو سره دپکتیا ولایت ته‌لیږل‌شوی ؤ او (۲۲۸۰۰۰)تنو ئې چه‌واکسین تطبیق کړل دوی‌میاشتې‌وروسته بیرته‌مرکز ته‌راغی .

## دقطغن په‌ولایت کښې دکوی دناروغۍ په‌ضدمجادله :

د ۴۱ کال دعقرب په۱۹ نیټه یوڅلورویشت کسیز هیئت دقطغن دروغتیا دمدیریت تر‌ا ثر لاندې په‌هغه‌ځای‌کښې په‌مجادلې‌شروع وکړه اوپه (۱۵۶۶۳۷) تنوئې چه دکوی واکسین‌تطبیق کړل له‌څلورومیاشتو فعالیت کړلو نه‌وروسته بیرته‌مرکزته‌راغی .

## د سفلیس د ناروغۍ مجادله:

سفلیس چه د ساري ناروغیو له جملې نه ګڼل کیږي او د دغې ناروغۍ پېښې ډېرې
په بدخشان کښې لیدل شویدي نو د روغتیا وزارت هر وخت د هغه ځای د خلکو د احوال
مراقب دی او د خپل فني پرسونل په واسطه ئې پر له پسې مجادلې کړي دي.
په ۱۳٤۱ کال کښې یو مجهز مېشت چه یو تن زهروي متخصص، د سفلیس ضد دوا ګانې
او سیار لابراتوار ور سره وو هغې خوانه ولیږل شو او په هغو سیمو کې ئې چه یولې
سروې او کتنې وکړې (٦٠٦٠) تنه ئې له لابراتواري کتنو څخه وروسته تداوي کړي دي.

## د تراخم د ناروغۍ په ضد مجادله:

د روغتیا وزارت له متخصصانو او لایقو ډاکترانو سره له فیصلې نه وروسته د افغانستان
په دوه ؤ سیمو یعني د هرات او کندهار په ولایتو کې د تراخم مجادله په نظر کې نیو لې
چه له عمومي سروې نه هغه په تداوي کړلو اقدام وشي. څرنګه چه همدا اوس هم د هرات
په ولایت کې سروې ادامه لري. او د سترګو د یو تن متخصص او د لایقو روغتیا پالو او
لایقو پرستارانو تر نظر لاندې له ټولو مجهزو سامانونو او لوازمو سره خپلو کتنو ته
ادامه ورکوي.

## د جذام د ناروغۍ په ضد مجادله:

د کنترول مدیریت د جذام په مجادله کې هم برخه لري او له زیاتو نه زیات د بامیانو
په اعلی حکومت او د هغه په مربوطاتو او د غزني په شاو خوا ځایونو کې د جذامیانو احوال ته
متوجه دی.

او په دغو دوه ؤ سیمو کې د جلدي لایقو ډاکترانو په واسطه خلکو ته هر وخت
لازمي دوا ګانې ورکول کیږي او لازمي توصیې ورته کوي او اوس د جذامي ناروغانو
تداوي د (۱۹۰٦) تابلیتو په واسطه کیږي او هر وخت د دغو دوه ؤ سیمو ته په مکفي ډول
لیږل کیږي.

## د لیوني سپي د ناروغۍ ضد مجادله:

کله چه د لیوني سپي پېښې، پېښې شوي او د روغتیا مدیریتو تلګرافي راپور
ورکړی نو د ساري ناروغیو د کنترول مدیریت د دې خطرناک مرض د مبتلایانو د پاره
(چه پرته دوا کښې د تطبیق نه بله چاره او تداوي نه لري) هر وخت یې په الوتکه کښې
ډېر ژر د لیوني سپي واکسینونه ورلیږلي او د دغې ناروغۍ مبتلایان ئې د مرګ له پنجې
نه خلاص کړیدي او په ٤١ کال کښې د لیوني سپي په ناروغۍ داخته ؤ شمېر (٦٨) تنو ته
رسیدلی ؤ او د راپور له لاسته راتلو نه وروسته ټول روغ او جوړ شوي ؤ.

## د کولرا او محرقې د ناروغۍ ضد واکسیناسیون:

د ساري ناروغیو د کنترول مدیریت پر سیره په هدایت نامو هر وخت د پیش بیني
په توګه او د پورته ذکر شوي ناروغۍ د مخ نیوي له امله په اطرافو کښې د روغتیا مدیریتو ته
د محرقې او کولرا واکسین ورکړي او هم هغه څوک چه خارج ته سفر کوي د هغوی د صحي

وثایقو داجرا دپاره تطبیق شی او هم دپر وفیکلتیف پهصورت پهخلکو کښې ترزیق شی . لهاطرافو نه د۱۳۴۱ کال درارسیدلی راپورله مخې دکولرا و اکسین شوی کسان دپیش بینی په ډول (۲۶۲۴۰) تنو او دمحرقی دواکسین شوو کسانو شمیرد پیشبینی پهډول (۴۳۶۹۵) تنو ته رسیدلی او باید وویل شی چه په۱۳۴۱ کال کښې دهغهځای دپاره چه خارج ته ځی (۱۱۰۰) قطعی بین‌المللی وثیقې ورلیږلی شوی دی .

## په۱۳۴۲ کال کښې :

د شبرغان اعلی حکومت تهدکوی د ناروغی په ضد مجادلی د پاره د ۲۴ کسیز هیئت لیږل .

د ۱۳۴۲ کال دحمل پهمیاشت کښې هغی خواته یو هیئت ولیږل شواو په دریو میاشتو میاشتو کښې‌چی چه په (۱۵۶۷۷۶) تنو باندی واکسین تطبیق کړل بیرته مرکزتهراغی .

## د بامیان پهاعلی حکومت کښې دکوی د ناروغی پهضد مجادله :

د ۴۲ کال دجوزا دمیاشتی په۲۶ یو۳۷ کسیز هیئت دبامیانو اعلی حکومت ته ولیږل شوچه هماوس هم هلته خپلو فعالیتو ته دوام ورکوی .

**دسفلیس ضد مجادله:** دتیر کال پهشان دسرطان په۵ دیوتن جلدی اوزهروی متخصص تر ریاست لاندی یو مجهز هیئت چه ټول سامان ـ لابراتواری لوازم اومکمله دواهم ورسره وه دبدخشان اعلی حکومت ته ولیږل شو اواوس هم په فعالیت بوخت دی .

## دلیونی سپی ضد مجادله :

په۴۲ کال کښې دهغوراپور ولهمخې چهله اطرافو نه رارسیدلی دیددغی ناروغی پیښې پنځوسو تنوته رسیدلی او ورو سته دواکسین لهتطبیق نهټول روغ شوی اوهم پهجلاضرورت دروغتیاؤ مدیریتو ته دایله گرد وسپیو دمنځه وړلو دپاره هدایت نامی لیږل شویدی .

## دحمای لکهدار دناروغی په ضد مجادله :

د ۴۲ کال دحمل پهمیاشت کښې دپروان داعلی حکومت دراپور له مخی ددغه حکومت مربوط دبولغین علاقه دارۍ ته دحمای لکه د مجادلی دپاره یو هیئت و لیږل شواو هلتهئی ددغی ناروغی د(۳۲) تنو اخته ؤکسانـو دتداوی او دشاو خـوا سیمو د یوډیر شنیدلو اوصحی تبلیغاتو کولونه وروسته مرکز تهراغی دکولرااو محرقی او کوی واکسینونه چهدساری‌ناروغیو دکنترول دمدیریت لهخوا ولایتوته پهالوتکه او یاموټرو کښې لیږل شویدی پهلاندی ډول دی .

دکوی‌لامده واکسین (۸۷۷۵۰۰) نفرو او تر کـومی اندازی چه په هغو باندی دتطبیقولو راپور رارسیدلی (۶۱۳۴۰۶) تنه دی اوهمدغه راز د حفظ ماتقدم دپاره دمحرقی واکسین د (۱۵۰۰۰) تنو په اندازه لیږل شوی اوهم ولایاتو ته د (۸۵۰۰) تنو په اندازه دکولرا واکسین لیږل شویدی .

**د تراخم مجادله:** د تراخم د مجادلې پروګرام چه اوس د هرات په ولایت کښې شروع شوی تر پدی باره کښې د جهان د صحی موسسی او یونسیف نه غوښتنه وشوه چه د هغه په اثر د تراخم یو تن مشاور کابل ته راغی او کله‌ئی چه د کندهار او هرات سیمی سروی کړی نو صحی سازمان ته‌لاړ او هلته‌ئی په دغی باره کښې خپل راپور وړاندی کړیدئ او همداوس د جهان صحی موسسه د دغی پروژې د پرسونل د تربیې د پاره د فیلوشپ په لیږلو کښې مرسته کوي .

**فیلوشپونه:** د روغتیا وزارت د ۱۳۴۱ کال له میزان نه د ۱۳۴۲ کال تر سرطان پورې د فیلوشپ تر پروګرام لاندې د روغتیا د وزارت له مامورینو او د طب د پوهنځیو نه (۲۴) تنه په بیلو بیلو برخو کښې د بین المللی موسسو او دوستو مملکتو په لګښتو د عالی تحصیلاتو او د لنډو مودو علمی کتنو په غرض خارج ته لیږل دي .

**د صحی قوانینو مدیریت :**

بر سیره په همو چارو، د صحی هغه موجوده تعامل اود لوایحو تصحیح چه د پوهو د آراؤ او په تیره بیا د صحت د متخصصینو په مرسته تامین کیږی د صحی اساسی قانون د تدوین په باره کښې ئی هم په لازمه اقداماتو لاس پورې کړیدئ چه دا اهم او ضروری مسئله د ۱۳۴۲ کال تر آخره پورې تطبیق شي .

د واکسین د تهیې موسسه د واکسینو د تهیې موسسه د پخوا په شان د کلو لرا کوی، تیفوئد، او لیونی سپی د واکسینو د برابرولو په باره کښې خپلو فعالیتو ته ادامه ورکوی او د جهان صحی موسسی لدغی موسسی سره د یو تن باکتریالوجست په راليږلو مرسته کړی او بر سیره پدی د دنیا صحی موسسی د واکسینو د تهیې د موسسی د پرسونل د تربیې لپاره د روغتیا وزارت ته څه فیلوشپانونه ورکړی چه له هغو نه پوره استفاده شویده .

**د توبرکلوز مجادله :**

دا پروژه د دنیا د صحی موسسی او یونیسف په مرسته ادامه لری او د توبرکلوز هغه یو تن مشاور چه دوه کاله په پدی پروژه کښې مرسته ورکړی د دنیا د صحی موسسی له خوا لاسته را استی دی .

یونیسف د پخوا په شان د توبرکلوز په ضد د لازمه دواؤ مرسته کوی د (بی سی جی) او د توبرکولین تست واکسیناسیون د معارف د شاګردانو ـ عسکری طلابو ـ د ګلبهار د نساجی فابریکی، د ننګلو او سروبی د برښنا د پروژې کارکوونکی، د کابل د ښار د شاوخوا خلکو او نورو په منظور شپیته زره د (بی سی جی) دوز او پنځلس زره سی سی توبرکولین اخستي او د توبرکلوز موسسی ته ئی ورکړیدی .

او بر سیره پردی د دغی موسسی څه پرسونل د عالی تحصیلاتو په غرض خارج ته لیږل شوی دی .

## دعامې روغتیا موسسه :

د روغتیا وزارت د هیواد د صحي احتیاجاتو په نظر کښې نیولو سره په نظر کښې نیولې ؤ چه د عامې روغتیا د یوې موسسې د تعمیر اساسات او تدبیرونه د صحي پلان د طرح د پاره داسې طبي علمي تجربوی او نورو پروگرامونه مطالعه او تاسیس ته چمتو کړي چه د یوې خوا د افغانستان آینده صحي احتیاجات مطالعه کړي او له بلې خوا داسې فیصلې او مفکورې طرح کړي چه د بین المللي او خارجي او داخلي متخصصینو د تائیدونه وروسته ئې په تعمیر لاس پورې کړي . د لمړي ساختمانی پلان په لړ کښې د دغې موسسې تعمیر د فوائد عامې د وزارت له خوا د هوختیف له کمپنۍ سره قرار داد او نوموړی تعمیر په ۱۳۴۱ کال کښې تکمیل او د تجهیزاتو په تهیه کولو ئې هم لاس پورې او د فعالیت د پاره چمتو شوه نو امید کیږي چه په سږني کال کښې دغه موسسه په زړه پورې فعالیت وکړي او د هیواد د طبي پروگرامونو په تطبیق لاس پورې کړي او د هغه ځینې اجراآت په لاندې ډول دي :

هم دا اوس د وقایوي طب له نقطې نظره په دغه راز اقداماتو لاس پورې شویدي : ـ

د مړو د صحي کارتو د راپورو ترتیبول دي چه د شفاخانو له خوا خانه پرې کېږي او بیا د دغو راپورو په وسیله کېدای شي د شخص د وظیفې او شغل عمر او جنسیت له مخې د وفیاتو او جروحاتو علل پیداشي او د وفیاتو د عللو پیدا کول د طبابت په علم کښې په خپل ذات کښې یو مثبت قدم دی .

د یوې قولنې په وقایه کښې د وقایوي طب علمي فکرونو په وسیله سره چه ونیول شي

۲ـ د پولیکلینیك کارتونه چه د هغې په وسیله سره بیا هم د یو ناروغ عمر، جنسیت کار او وظیفه د کال د موسمونو سره سره او د هغو علتونه او سببونه او د ناروغتیا د خپریدلو خط سیر په قولنه او ولسونو کښې پیدا کیدلی شي چه د دی څیزونو پیدول هم په خپل ذات کښې د مرضونو وقایې او پرمخ تګ د پاره یو مثبت قدم دی . د مختلفو ناروغیو پرمخ تګ د ناروغانو د مراجعت له مخې چه پولیکلینك ته راځي معلومیږي چه په فیصدی ډول په کوم جنسیت، عمر او کوم ځای کښې مرض شته دی چه د مرض د همدې فیصدی په اساس کولی شي چه د ناروغتیا د مخ نیولو او ورك کولو کښې اقدام وشي .

۳ـ د بستري ناروغانو کارتونه دي چه عینا پورتنی موضوع تعقیب کیږي .

۴ـ د صحي اجراآتو هغه میاشتني راپور دی چه د هغه په واسطه کیدی شي چه د طبي وسایلو په لرلو د صحي ذیعلاقه څانګو د ټول اجراآت قیاس او تخمین کړي .

۵ : د ځینو نورو متفرقه پروژو ترتیبول د تطبیق وړ اجراآتونه دو قایي او پیشبیني د فیصدی مثبتو نتیجو لاس ته راوړل دي . د مثال په طور د کوي واکسین د قولنې د ټولو خلکو د پاره اجباري ده او باید د روغتیا وزارت د خپلو کارکوونکو د اجراآتو له محصول او د دوخت په خوشې تیرولو پوه شي چه په کومه اندازه خلك واکسین شوي او په کومه اندازه ئې مثبته نتیجه لاس ته راوستې ده .

۶ـ د مخنیوونکو ناروغیو د سروې په باره کښې چه د مخو ورک کول هم وزارت په داتللو نکي پروګرام کښې شامل دی. لکه د سفیلس، جا غور او جذام د پاره مقدماتي ترتیبات قبول شوي او همدغه راز مخینې نورې سروې ګانې چه د مخینو سیمو د کنترول د پاره په نظر کښې دي نو هغه د کابل په ښار کښې د کابل ښاروالۍ او د داخله وزارت د احصاییې د روساو په مرسته د مچانو ورک کول ـ د محیطي حفظ الصحې امتحاني پروژه ـ د صحي او حیاتي احصاییې امتحاني پروژه وې او د معارف د وزارت د شاګردانو د سروې او تدقیق پروژه د معارف د وزارت د حفظ الصحې د ریاست په مرسته او د غذائي موادو د کارګرانو د سروې او تدقیق پروژه د ښاروالۍ په مرسته وې.

۷ـ د پنځلس ورځو له ساری مرض قرنطینې راپورونو اطلاع په چینوا کښې د نړۍ د صحي سازمان او په با ندېنو هیوادو کښې د افغاني سفارتونو او د مخینو دوستو هیوادو د ډیپلوماتیکو ځایونو او په هغه ډول تصمیم نیول شوي چه د اپیډیمولوژۍ د نقطه نظره مشاهدات د مختلفو راپورونو په ملتیاسره چه د مسئول آمر له خوا کنترول کیږي د دغو پنځلسو ساری ناروغیو د راپورونو نمونې د هیواد ډیپلوماتیکو ځایونو او په ولایاتو او اعلی حکومتو کښې د سیمو د مسئولو آمرینو د خبرتیا د پاره ورته وسپارل شي.

۸ـ د څلورو ټوکو او د ایسکرامونو او د صحي احصاییې د جدولو ترسیم او په لغاصه هغه ساری مرضونه چه په افغانستان کښې خپاره شوي او د روغتیا د وزارت د مجا دلوي قسم په واسطه محو او نژدې محو کیدونکي دي: لکه د حمای لکدار، کوي ـ سفلیس ـ توبرکلوز ـ کولرا او په تیره بیا د ملاریا خطر ناکه ناروغي.

۹ـ د استیلائي ساري ناروغیو د احصاییې ـ د عمومي ساري ناروغیو ـ د صحي او حیاتي احصاییې ـ د تولیداتو او وفیاتو د احصاییې او د پیښو د احصاییې له مخې د پارامیډیکل او پوست ګریجوئیټ د شاګردانو تدریس:

۱۰ـ د ریفریشر او رینتیشن د کورس او په تیره بیا د طب د دوکتورانو او معلمینو د پاره د کورس تدریس.

۱۱ـ د خارجي ارتباط او د روغتیا وزارت د ساري ناروغیو د کنترول مدیریت او نشراتو ته په مستقیم صورت سره د ساري ناروغیو د هفته ایز راپور د نقل لیږل د دې موسسې عملیاتي پلان چه د روغتیا د وزارت او د دنیا د صحي موسسې، یونیسف له خوا په لاسلیک شي په هغه کښې به د هرې یوې موسسې لاسلیک توضیح شي او باید ی پلان کښې د سامانو او لوازمو او لابراتواري دواګانو او نورو په باره کښې دیو نیسف مرسته او د عامې روغتیا د بیلو بیلو څانګو د پرسونل او د لازمه ترانسپورټ د تربیې په باب کښې د عامې روغتیا د موسسې د مختلفو څانګو د پاره د متخصصینو د اعزام د پاره د دنیا د صحي موسسې مرسته جلب شوي. او همدا اوس د عامې روغتیا د پاره د جهان د صحي موسسې د متخصصینو له جملې نه څه متخصصین کابل ته راغلي او د عامې روغتیا په موسسه کښې کار کوي.

**د تعلیم او تربیې مدیریت :** د تعلیم او تربیې مدیریت په دې کوښښ کښې دی چه مکاتبو هغه پروګرامونه جوړ کړي چه پخوا په متفرق صورت له مختلفو موسسو نه اجرا کېدل یو ځای کړي، چه د ضرورت په وخت کښې په لههغه نه صرفه جوړې وشي او په لازمو لارو کښې په ولګېږي او اوس د روغتیا د وزارت په بېلو بېلو صحي مرکزو کښې د تعلیم او تربیې د مدیریت له خوا په لاندې ډول ښوونځي اداره کېږي .

**د طبي تکنالوجست عالي ښوونځی :** تر اوسه چه په دغه ښوونځي کښې د ۱۲ ټولګیو او د هغو په معادل فارغ التحصیلان منل شوي دي دوه کاله او شپږ میاشتې د تحصیل دوره لري او د اکمال نه وروسته په د طبي تکنالوجست د ډیپلوم مستحق وګڼل شي او د مافوق بکلوریا له قرار امتیازاتو او حقوقو نه ګټه واخلي او دا ښوونځی په خپله د عامې روغتیا په موسسه کښې د خارجي او دغې موسسې د متخصصینو له خوا تدریس کېږي .

**د غاښونو د طب او پروتیز ښوونځی :** ــ د دې ښوونځي دوره کېږي دوه نیم کاله ده او د غاښونو جوړه ولو په موسسه کښې د داخلي او خارجي متخصصینو له خوا تدریس کېږي او په دغه ښوونځي کښې د نهم ټولګي او یا له هغه نه پورته لوړې درجې شاګردان منل کېږي او د تحصیل له تکمیلولو نه وروسته د غاښونو د دوکتور د معاون په حیث د بکلوریا برابر لیک په معادل ورکاوه کېږي او د هغو له حقوقو نه ګټه اخلي او په ۱۳۴۱ کال کښې له هغو نه ۲۱ تنه فارغ التحصیل شوي دي .

**د روغتیاپال ښوونځی :** دا ښوونځی د عامې روغتیا په موسسه کښې د داخلي او خارجي متخصصینو له خوا تدریس کېږي او د دې ښوونځي دوره دوه کاله او شپږ میاشتې ده او په دې ښوونځي کښې ئې د لسم ټولګي او له هغه نه د لوړې درجې شاګردان منل کېږي او د ټاکلي وخت له تکمیل نه د روغتیاپال او صحي مفتش په حیث او د بکلوریا په معادل شهادتنامه ورکول کېږي او په ۴۱ کال کښې له هغو نه شل تنه فارغ التحصیل شوي دي .

**د اکسریز لیرانت ښوونځی :** دا ښوونځی د ابن سینا د اکسریز په موسسه کښې دایر او د داخلي او خارجي متخصصینو له خوا تدریس کېږي او په دې ښوونځي کښې د تحصیل دوره دوه کاله او شپږ میاشتې ده او د نهم ټولګي او یا له هغه نه د لوړې درجې شاګردان پکښې منل کېږي او کله ئې چه د تحصیل دوره سرته ورسوله د بکلوریا په معادل شهادتنامه ورکول کېږي او د لیرانت اکسریز په حیث کار ورکاوه کېږي او په ۴۱ کال کښې ۱۳ تنه تری، فارغ التحصیل شوي دي .

**د کمپوډرۍ ښوونځی :** ــ د دې ښوونځي دوره هم دوه کاله نظري او یو کال عملي ده، او د نهم ټولګي او یا له هغه نه د لوړې درجې شاګردان پکښې منل کېږي

او کله چې په ټاکلې دوره سرته ورسوله د کمپوډر په حیث د بکلوریا معادل دیپلوم ورکاوه کیږي او له دغو فارغ التحصیلانو نه په مربوطو څانګو کښې کار اخستل کیږي . او په دې ښوونځی کښې درسمي دایرو داحتیاج له پرسونل نه سربیره د شخصي دواخانو د پرسونل د پاره هم یو شمیر ترروزنې لاندې نیول شویدي چه پخپل وخت کښې دد واخانو احتیاوی هم سرته ورسیږي او په ٤١ کال کښې ٢٢ تنه تری فارغ التحصیل شویدي .

**دقابلګۍ ښوونځی** : دا ښوونځي دروغتیا دوزارت په زیږنتون کښې دایر او په دغه ښوونځي کښې دداخلیدو له شرایطو سره سم د نهم ټولګي او هغه د لوړې دورې شاګردان منل کیږي او د دوو کالو او شپږو میاشتو د تحصیل د دورې د تکمیل نه وروسته دقابلې په حیث په کار مقرریږي او هم د بکلوریا معادل دیپلوم ورکاوه کیږي او پدې وختو کښې دروغتیا دوزارت د احتیاو له مخې د جهان د صحي سازمان له متخصصینو سره له خبرو اترو نه وروسته دا فیصله وشوه چه په نوموړي ښوونځي کښې لازم تعدیلات وشي لکه څنګه چه فارغ التحصیلاتو برسیره په قابلګۍ د نرسنګ په چارو کښې هم وروزل شي . دد نیا صحي سازمان موافقه کړېده چه په دغه ښوونځي کښې د تدریس د پاره د نرسنګ یوه معلمه راولیږي چه البته دغه ښوونځی به وروسته دقابله نرسنګ په نامه تعدیل شي او په ٤١ کال کښې ١٣ تنه فارغ التحصیلې شویدي .

**دلابراتواری مستحضری ښوونځی** : دا ښوونځی د ١٣٤١ کال د سرطان په ٢٨ دعامې روغتیا د موسسې د واکسین د تهیه کولو په مرکز کښې دایر او په هغه کښې د شپږم او یا له هغه نه د لوړې درجې شاګردان منل کیږي او دا راز تجویز نیول شوی چه شاګردان دې د دری کاله ټاکلې پروګرام تعقیب او وروسته د تحصیل د دورې له تکمیل نه دې په مربوطو څانګو کښې د لابراتوار او د مستحضري په حیث په کار کښې داخل شي او مستحقینو ته د نهم ټولګي معادل برۍ لیک ورکول کیږي او د هغو له امتیازاتو نه ګټه اخستې شي .

**نرسنګ د مرستیالانو ښوونځی** :- دا ښوونځي د ولایاتو د شفاخانو له احتیاو سره د ضرورت په وخت کښې د ولایاتو په مرکزو کښې دایر کیږي . او څرنګه چه په جلال آباد د هیلمند د ناوې ـ میمنې ـ هرات او د ابن سینا په شفاخانه کښې شاګردان د ټاکلو شرطو تر انر لاندې په زده کړه کښې داخل شویدي او د دوو کالو او شپږو میاشتو د زده کړې له تکمیل نه وروسته د نهم ټولګي معادل شهادتنامې ورکولې کیږي . او د نرس او قابلو د مرستیالو په حیث په کار کښې شاملیږي او د لښکرګاه د شفاخانې د قابلګۍ د معاونو له ښوونځي نه پنځه تنه فارغ التحصیلې شویدي .

**د آبله کوبی کورس** : دروغتیا دوزارت د مجادلوی پروګرام له مخې د غه ډول کورس په متمادی صورت د واکسینو د تهیې په مرکز او د ضرورت په وخت کې په ځینو ولایتو کښې دایر او د دغه کورس تعلیمي دوره دوی میاشتې ده او په دغه کورس کښې د اتم ټولګي فارغ التحصیلان منل کیږي او د زده کړې د دورې له تکمیل نه

وروسته د واکسیناتور مسلکی شهادتنامه ور کوله کېږي او په ۱٤ کال کې له هغه کورس نه ۷۰ تنه فارغ التحصیل شویدي .

**کتابخانه** :- د تدریس د تسهیلاتو او د متخصصینو او معلمینو د مطالعې په منظور د عامې روغتیا کتابخانې تقویت وموند او د کتابو د ضرورت وړ لست مختلفو منابعو ته سپارل شوی چه ځو ر په دغه کتابونه د لوستونکو د پاره برابر شي چه هغه وخت به دغه کتابخانه د وطن په ور ځپاڼو او صحي مجلو سره یوه عصري او مجهزه کتابخانه شي او به عین حال کښې د دغه راز کتابخانې د انتظام د پاره د د نیا له صحي سازمان سره موافقه شوېده چه یوتن افغان د کتابدارۍ په برخه کښې ور وزي او یدی منظور لازمه فیلوشپ هم په نظر کې نیول شوی دی هغه شاګردان چه په پورتنۍ ذکر شوي څو و نځی کښې زده کړه کوی اعاشه هم کیږي او له اکثرو هغو سره د معاش ور کول هم کیږي او تر ممکن حده پوري سامان او لوازم هم ورته برابر شویدي .

په ۱٤ کال کښې په پورتنیو ښوونځیو کښې ۲۲٦ تنه نوی شاګردان و منل شول او ۱۸۸ تنه تري فارغ التحصیل شول .

**د تبلیغاتو مدیریت** : د تبلیغاتو مدیریت په هفته کښې یو ځل په مرتب ډول په کابل راډیو کښې صحي تبلیغات کوی او هم ئې په روغتیا وزارت پوري مربوطو ښوونځیو کښې په صحي تبلیغاتو او تدریس کښې هم برخه اخستې ده .

د ملاریا د ورك کو لو په کالیزه کښې ئې خاص پروګرام ترتیب او بدی لاره کښې ئې مخصوصې خپرو نې کړې ، د معلم د ورځې په مناسبت ئې مخصوص تر تیبات نیولی چه په هغه کښې ئې صحي فلمونه او ډرامونه هم ښودلی دي او هم ئې په جامعه کښې د معلم د اهمیت په شاو خوا کښې مضمونونه لوستي دي او هم دارنګه د تعلیم او تربیې د مدیریت په مرسته د معارف د اوریینټیشن کورس دایر کړ چه د معارف معلمینو صحي معلومات درس واخلې او له ذی علاقه صحي ځانګو سره د صحي پلانو په تطبیقولو کښې مرسته و کړای شي او د عامې روغتیا په موسسو کښې څه صحي کنفرانسونه شویدي .

د تبلیغاتو مدیریت د محیطي حفظ الصحې د مدیریت په مرسته د صحي موزیم او د سمعي او بصري لابراتوار د داتاق په تهیه کولو کښې هم فعالیت کړ یدی او د هغه ابتدايي مرحلې ئې تکمیل کړ ی دي .

او هیله د چه په همدې نږدې راتلونکې وخت کښې د غه دوه ځانګې تکمیل شي :
د تبلیغاتو مدیریت په روغتیا وزارت پوري مربوطو ښوونځیو د دارالمعلمینو په لیسه او د معارف د وزارت د تعلیم او تربیې په موسسو کښې د صحي ځانګو په علمي او فني برخو نو پیل کړی او اوس هم لا جاري دی .

د د نیا د صحت ورځ ئې په څپله د عامې روغتیا په موسسه او نورو مرکزو کښې شروع او په دې لار کښې ئې تر ممکن حده فعالیت کړی او هم ئې د صحي تعلیماتو او د صحي د ساتیرو په برخه کښې د کوی د واکسیناسیون د مجادلې ، د ملاریا د مجادلې له موسسې

او د تو بر کلو ز د مجا د لی د مو سسی له پر و ژ و سره لا زمه مرسته کړی دی .

د کلیو د پراختیا له پروژی او د محیطی حفظ الصحی د مدیریت له پروژو سره یی د صحی پلانو او د صحی اصلاحی د پروګرامو د تدوین په طرح کولو کښی یی مرسته کړی او ضمناً د سمعی او بصری په کوته کښی د سینما فلمنل پور د پیوی ستلایدو پوسترا و د دوام د تمثیل وسایل او نور تو لید او تهیه کړی ی .

همدا رنګه د عامی روغتیا د کنفرانس په تالار و کښی د عامی روغتیا د پرسونل د تعلیم او تربیی او د صحی تعلیم او تربیی د علاقمندانو په مظور د فن د متخصصینو په واسطه خبری اتری تنظیم او شروع کړی او په مو زیم کی تد کار کیږی چه عجالتاً د ملا دیا د مجادلی غرفه تکمیل شوی ده او نور و صحی او وقایوی غرفو د اکمال د پاره په کار کښی مشغول یو . د معارف د ښو و نځیو د تعلیمی موادو د پاره د صحی تعلیم او تربیی په برخه کښی همدا او س د صحی فلمو نو د ښود لو او تقریر و نو څخه د محیطی حفظ الصحی د شرایطو د برابرو لو څخه کار اخستل کیږی ترڅو چه شخصی حفظ الصحه تامین او د ساری مرضو نو مخه و نیو له شی خبری کیږی .

له ښار و الی سره یی د مچانو د ورک کو لو د پروژی په باره کښی مرسته کړی او د دی پاره یی لازم پوسترونه چاپ کړی چه د ۱۳۴۲ کال د سنبلی په شروع کیدو سره ئیر فعالیتونه ادامه و لری او کوشش کیږی چه له ذیملا قه څا نګو سره زیاته مرسته او ګډ کو ښش و کړی .

## د محیطی حفظ الصحی مدیریت:

د ۱۳۴۱ کال داسد د میاشتی نه وروسته د دی څانګی وظیفه دا روده کابل د ښار ۵۲ ښوونځی سروی کړی او له څیلو نظر یو سره یی د معارف و زارت ته مفصل را پوروړ کړی او د روغتیا پال د شا ګردا نو د نظر ی او عملی تد ریس په برخه کښی یی مستقیماً برخه اخیستی د ی .

او د عملی تدریس وسایل یی برابر کړی او د شاګردانو د عملی چا رو ورکشاپ دایر او د مربوطو نجاری د معلم او متخصصینو تر نظر لا ندی یی فعالیت کړی او د دغه په تکامل کښی ئی هم اقدامات کړی دی .

د تعلیم او تربیی د مدیریت سره د بری لیکو نو د چاپو لو په برخه کښی مرسته شوی او د تبلیغاتو ا مدیریت سره یی د صحی موزیم د تنظیم او د سمعی او بصری لا براتوار او د پنځه سوو پوسترو په چاپو لو کښی یی مرسته کړی ده .

همدا رنګه یې دا ورینتیشن د کورس په تدریس او د کابل راډیو د صحی پروګرامو په خپرو نو کښې ئی برخه ا خستی ده .

همدا رنګه یی د تعلیم او تربیی او صحی تبلیغاتو له مدیریتو سره مرسته کړی ده .

همدغه راز د دغې شعبې متخصصینو د مچانو د محوه کیدو پرو ګرام تر تیب او ....

پیاژوالی د تطبیق د باره ور سپارل شوی او څرنګه چه پدی وختو کښې دغه پر و ژه عملاً تر اجرالاندی ونیول شوه او مربوط متخصصین د ضرورت په وخت کښې دد غې پروژې عملی اجراآت ګوری:

د پیاژ والی سره یې د لیو نیو سپو په ورك کولو کښې هم عملی مرسته وکړه دد غې ځانګړی متخصصینو د قندهار او ګرشك ولایتونه کتلی او د هغو سیمو د حفظ الصحوی پیښو د اصلاح په نسبت یې خپل نظریات مربوطو مقاماتو ته وسپارل .

د محیطی حفظ الصحی مدیریت کوشش کوی چه د صحی تبلیغاتو په مرسته د عکاسی یو ځانګه بشپړه کړی ، پدې وختو کښې د ده سره د حکومت د میر عباس په کلي کې د محیطی حفظ الصحی د پرسونل د عملی تربیې او د روغتیا پال د شاګردانو د ښو ونځې او خلکو د حفظ الصحوی وضع د اصلاح کولو په منظور د کلو یوه تطبیقاتی پروژه دایره او دد غې شعبې د پروګرامو جزء ده .

## د مایکرو بیولوژۍ آمریت:

دا آمریت د باکتر لوژۍ لابراتوار و ، سیرو لوژۍ ، پرازیتو ، لوژۍ هماتو لوژۍ ، زرعیه او ساطو ، او د لابراتواری حیوانانو له مراقبت کولو نه متشکل دی .

د دې آمریت پرسونل د ۱۳۴۱ کال د سنبلې په میاشت کښې د ی موسسو ته احضار شوی چه بدوا ئې د لست او لازمه د واؤ په برابرولو شروع و شو د او هغه ئې ذ یملاقه ځانګو ته واستول که څه هم د ۴۲ کال د حمل تر میاشتې پورې د عامې ر و غتیا له نقطې نظره د امدادی وسایلو او لابراتواری سامانو د نشتوالی له درکه کوم بارز فعالیت اجرا نـکړای شو خو سره د هغه هم د عامې روغتیا د موسسې د ښوونځیو د شاګردانو په نظری او عملی تدریس کښې ئې برخه اخستې او د تعلیم او تربیې له مدیریت سره ئې مرسته کړې او خاصتاً ئې د طبی تـکنا لوجست د شاګردانو او د لابراتوار د مستحضرانو د عملی او نظری درسو په ورښاندی تـکړه کښې ئې مستقیمه برخه اخستې او د حمل د میاشتې نه را پدې خوا ئې د فنـکسو او مایکرو لوجی د تدقیقاتو په برخه کښې اقدام او همدا اوس د معائی پرازیتو او د مایکرو تیك دوقایعو او د هماتو لوژیك د معاینا تو له نقطې نظره د معارف د حفظ الصحی د ریاست په مرسته د معارف د شاګردانو په ضروری کیلو اقدام شوی . او هم د پیاژوالی او د عامې روغتیا د محیطی حفظ الصحی د مدیریت په مرسته د غذائی موادو د ډولو کاز کولو نکو د سیرا لوژیك د مثو لوژ یك او د امعا ئی لیرازیتو معاینې شروع شوی چه بنائی چه د ۴۲ کال تر سنبلې پورې به څه ناڅه یوزرتنه په عمومی صورت سروی شي او د پوښتـکو د تهیې په برخه کښې کوښښ کړی چه د پو پنـك بانو جنـکو اقسام لاس ته راشي .

**د کیمیا او تغذئی آمریت** :ـ دا آمریت د حیاتی کیمیائی له لابراتوار و د غـذائی موادو د تجزیې او دوا ؤ او د او بو له تجزیې او د فاضله موادو نه متشکل دی .

د مربوطو لابراتوارو فنی پرسونل د ۴۱ کال د میزان او عقرب په میاشتو کښې احضار او په پلاندی ډول فعالیتونه کوی .

۱ـ د روغتیا د وزارت له صحي مرکزونه د لابراتواري سامانو او لوازمو تهیه کول لکه د مرکزي لابراتوارو د واکسین د تهیې موسسه ـ د دوا ګانو د یپو او د روغتیا د وزارت تحو یلخانې شوې چه یوه اندازه د ضرورت وړ سامانونه او لوازم له نوموړو ځایونه راغونډ شوي او ځینې ابتدائي کتنې شوېدي .

۲ـ همدا ډول اولابراتواري لوازم او سامانونه چه د مرستې په ډول له یونیسف نه غوښتل شوي ؤ د دنیا صحي سامان د مشاور په مرسته ترتیب او مربوطه مراجعو ته سپارل شوي چه ښائي ژر به را ورسیږي .

۳ـ د عامې روغتیا په موسسې پورې مربوط د ښوونځیو د شاګردانو تدریس د کیمیاوي لابراتوارو د متخصص له خوا نیول شوې او د طبي تکنا لوجست د شاګردانو او د لابراتوارو د مستحضري د تدریس په برخه کښې مستقیمه برخه لري .

۴ـ یوه اندازه معیارات او د لابراتوارو لازمه رنګونه داو بو د تجزیې په لابراتوار او د لابراتوارو د معیاراتو په تهیه کښې جوړ شوي او د مایکرو بایلوجي لابراتوارو ته سپارل شوي دي .

۵ـ د غذائي موادو د کنترول په باره کښې له ښاروالۍ سره خبرې اترې شوې او مقدماتي ترتیبات ئې نیول شوي دي چه البته د سامان او لوازمو د تکمیل نه وروسته به د غذائي موادو ـ مشروبو او غیر مشروبو او بو په تجزیه کولو کښې اقدام وشي او ددې د پاره چه د غذائي موادو کار ګران له صحي نقطې نظره د غذائي موادو کنترول نه پخوا معاینه شي د هغوي د معاینا تو لاس پورې شوې او س یوه کمیټه د غذائي موادو د کنترول د کمیټې په نامه چه د ښاروالۍ د عامې روغتیا د موسسې او د جهان د صحي سازمان د نما ینده ګانو په ګډون جوړه شوې . او هم د غذائي موادو د کنترول د امکاناتو په باره کښې د رستورانو چای خانو او نورو ځایونو نه طرح شوې او هم نورو رستورانو او نورو ذخیرو د کنترول او تفتیش فورمې ترتیب او په خپل وخت کښې به تر عمل مې سروې لاندې ونیول شي .

(۱۶۵) تنه معاینه شوي او ښائي چه د ۴۲ کال د سنبلې په اولو ورځو کښې د دریسو تنو نورو معاینې به هم سر ته ورسیږي .

**داپیډیمالوژی آمریت :** د ۱۳۴۱ کال د حمل په اول کښې دی شعبې د پرازیتي ناروغیو ـ د مچانو د کنترول او د فیوس د ناروغیو په باره کې خپل پلانونه په مکمل صورت په کار اچولي او لګښت ئې تخمین کړیدی او هم ئې د هغو په تطبیقولو کښې د مربوطو ځانګو په واسطه تر یوې اندازې اقدام کړیدی . او هم ئې د مایکرو بیولوژي د ځانګو کارتونه ترتیب او ورسپارلي دي او بر سیره پر دې ئې د احصائیې د ځانګې د خپلو ریکاردو له مخې داپیډیمیالوژي له نقطې نظره ځینې ساري ناروغۍ مطالعه کړي او د جهان د صحي سازمان له مشاورینو او د موسسې له فني پرسونل سره د هغې د مخ

ایوی اوو قایی د پاره په اقداماتو لاس پوری شوی او هم د جذام ـ سفیلس او چاغور ودری گړنو ناروغیو په باره کښی یو پلان چه د روغتیا د وزارت له خوا فوق‌العاده شوی او طرح شوی او ژر به د هغه په سر وی کولو کښی اقدام وشی .

او د لپر د سروی په باره کښی د وه قیمو نه یکاولنگ او بلخ ته چاهیانو ته استول شوی دی .

## دماشوم او میندو حمایی آمریت :

دماشوم او مور د حمایی آمریت چه له ښځو لونه لمړی د ډاکترانو ـ نرسو ـ قابلو میندو او ماشومانو روزنی ته متوجه دی تصمیم نیولی چه د زیږنتون متعلمینو او قابلی د طفل او میندو د حمایی په د ساتیرو سره آشنا کړی او په همدی منظور د اموضوع دماشومانو او میندو د موظف ډاکتر له خوا تدریس کیږی او له بلی خوا موظف ډاکتران د بی بی مهرو دماشومانو په کلینیک کښی په فعالیت بوخت دی او کوشش کوی چه میندی دماشومانو او میندو د حمایی له مقرراتو نه خبری کړی او هم ئی ماشومان معاینه او لازمه تداوی کړی او هم تجویز نیول شوی چه په راتلونکی وخت کښی د عامی روغتیا په موسسه کښی د ډاکترانو ـ قابلو او نرسو د پاره د ماشومانو او میندو د روغتیا په برخه کښی مخصوص کورس دایر کړی .

## دوینو بانک :

۱ـ د دفتر د مربوطو لوازمو تهیه او ترتیب :

۲ـ د فنی ضروری د سامانو او لوازمو برابرول :

۳ـ د عامی روغتیا د موسسی د ټولو مامورینو او مستخدمینو صحی کتنی چه د وظیفی له مخی ۲۱۹ تنه د صحی معاینو د تکمیل د پاره د کیمیا آمریت او مایکرو بیولوژی ته معرفی شوی دی او همدغه رنگه ۲۸ تنه کله یوان هم د صحی کتنو د تکمیل د پاره د غه آمریت ته معرفی او نومونه ئی د ریسپشن په دفتر کښی ثبت شوی دی . د فنی څانګو د کار د حجم له مخی د ریسپشن د څانګی د راتلونکو فعالیتو هغه پیش بینی چه په ورځ کښی څومره نفر د کتنو د پاره مثل کیږی په دغه پوری مربوط دی :

د وینو د بانک فعالیتونه د غربی المان د حکومت د امدادی سامانو او لوازمو د رسیدو او نشتوالی له امله اساسی صورت نه دی شروع شوی . خو بیا هم د لابراتوار ی څانګو مرسته کړی او په پورته ډول د ریسپشن د څانګی فعالیتونه چه د وینو بانک تر نظارت لاندی فعالیت کوی یاد شول .

## د روزنتون د ریاست اجراآت :

هیو څانګو چه د روزنتون د ریاست تر انرلاند د ۱۳۴۱ کال په شپږو آخرو میاشتو کښی دماشومانو او میندو د حمایی په موضوعاتو فعالیت کړی په لاندی ډول دی :

### الف : د زیږنتون شفاخانه :

دا موسسه یوه اختصاصی موسسه ده او د تاسیس له وخت نه تر اوسه پوری دماشومانو

اومیندو دصحي ښښو د بهبود د پاره خدمت کوی اومراجعینو ته دهغی انتظام اووارسی دد ی موسسي دممیزاتو لهجملی نه ګڼل کیږی اومراجعین پهخاص اسلوب منل کیږ ی اودموظفو کارکوونکو لهخوامعاینه اوتداوی کیږی کومخدمتونه چه د زیږ نتو ن موسسی د ٤١ کال پهشپږواخیرو میاشتو یعنی لهمیزان نه دحوت ترآخرهد ماشو مانو اومیندو پهباره کښی کړی دی به لاندی ډول دی :

| | | | |
|---|---|---|---|
| لمړیولادی برخه : پهبسترو کښی : ـ ٦٤٤ تنه | | نورمال ولادت | ٤١٧ تنه |
| غیرطبیعي اعتلان | ٢٣ « | غبر ګو نی | ١١ « |
| هلکان | ٢٧٧ « | نجو نی | ٣٠٦ « |
| بې موری | ١٨ « | مړه پیدا شوی ماشومان | ٥٨ « |
| مړه ماشومان | ٨ « | کاذب درد | ٢٩ « |
| د ګیډې عملیات | ٧٣ « | مړه | ٥ « |

دوهم نسائی برخه : پهبسترو کښی ١٤١ تنهلهبسترو نهبهر ٩٥ اوکبیرعملیات ٢٩ تنه
صغیر عملیات ٥١ تنه ـ سقط ٣٢ اوخون ریزی ٣٥ تنه
تداوی ٤٦ تنه

## دزیږنتون دشفاخانی مربوط پولی کلینیکونه :

١ـ دشهرآراد ښخوانی ناروغی ـ فوی ـ کورنی ولادت ـ هلکان ـ نجونی ـ نوی ژیږکولو

| | ناروغان | | | | | ناروغان ـ ښځوانی | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ٧٩٥ تنه | ٣٥٧ تنه | ٩٢ تنه | ٢٥ | ٤١ | ١٥٤ | ٣٥ |
| ٢ـ میوندوات | ٦٤٩ تنه | ٢٩٦ تنه | . | . | . | . | . |
| ٣ـ مرکزی | ٤٨٩ تنه | ١٦٠ تنه | . | . | . | . | . |
| ٤ـ چمن | ٣٢٦ تنه | ٢٢٧ تنه | . | . | . | . | . |
| ٥ـ میرویس میدان | ٥٨٦ تنه | ٢٥٥ تنه | . | . | . | . | . |
| ٦ـ علاوالدین | ٩٤ تنه | ١٤٣ تنه | . | . | . | . | . |
| ٧ـ بی بی مهرو | ٢٢٩ تنه | ١٢٨ تنه | ١ | ١ | . | . | . |

## قابلګی ښوونځی :

د ٤١ کال په خروشپږو میاشتو کښی ١٣ تنو قابلو دقابلګی قاکلی دوره سر ته رسولی اودپوره معلو ماتو ، تجربو او لیاقتو په لرلو کښې دمیندو په خدمت کښې قاکل شویدی .

**دزیږنتون دشفاخانی اکسریز** ددی دپاره چهد میندو صحی اړ تیا و ی هم چه به دغه ترڅ کښی رفع شو ی وی دزیږنتون بهشفاخانه کښې دا کسریز مکمله دستګاه تاسیس اودمراجعینو داستفادی وړشوې او برلهپسی دا کسریز پهشفاخانه کښې په شپږو میاشتو کښی پهدغو لاندی موضوعاتو کښی معاینی شوی دی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ روغ : زړونه او سږی | ۶۰۰تنه | ناروغ | ۷۱۸ | تنه |
| ۲ روغ‌عظام | ۲۰۸ | ناروغ | ۲۹۸ | » |
| ۳ روغې کلیې او مثانې | ٤۰ | » | ۱۲ | » |
| ٤ « دصفرا کیسې | ۱۷ | » | ۳ | » |
| ۵ » کېډې | ۲۸ | » | ۳ | » |

## دماشومانو پولی کلینیکونه:

دماشومانو پولی کیلینکونه: دکابل دښار په اره پېلو پېلو ناحیوکښې دایرشوېدي چه دهری سیمې مراجعین ورته‌پهاسانۍ سره‌ورسیدای شي‌اودخپلو خونوله‌نږدې مرکزونه ګټه واخلي.

اوپدې مرکزو کښې ناروغ ماشومان ترعلاج لاندې نیول کیږی اودتد اوی په اثر روغیږی، همدغه راز هغه ماشومان چه‌روغ‌وی دهغوی دوجود دسلامتۍ دتغذئی او صحي پروګرام ترمراقبت لاندې نیول کیږی اودناروغو مراجعینواودشیدو، صابون ویتامینواونوروداستفادې کوونکو احصائیه چه‌پهاوو پولی کیلنیوکښې ئې استفاده کړې په‌لاندې ډول لیکل کیږی .

| ۱ـ په‌چمن کښې | هغه ماشومان‌چه‌دصابون | له‌روغنې | دناروغیو |
|---|---|---|---|
| دماشومانوپولیکلینک: | اوشیدېې اخستی | شیدونه‌استفاده | ماشومان شمیر |
| | ۱۱۵۰۰ تنه | ۱۵۰ تنه | ۹۵۶ تنه |
| ۲ـ دمیرویس‌میدان پولیکلینک | ۱۱۳۹۷ » | ۱۷۹ » | ۳۳۶۸ » |
| ۳ دنوی ښار » | ۱۷۲۸۳ » | ۲۶۰ » | ۳۳۷۰ » |

**مرکزی لابراتوار:-** دی موسسې له‌خپلو بېلوڅانګوسره دخپلو مراجعینو مهمې صحی‌احتیاوی رفع کړې‌دی او په طبي‌مسایلو کښې ډیرخدمتونه‌کوی‌او برسیره دخپلو ورسپارل شویو ظیفو نه دفنې پرسونل په رسولو او روزنه کښې‌ئې هم‌اقدام کړی دلابراتوارو دټاکلې دوره تیرولو نه‌وروسته شمیر تکنیشنان نه‌فارغ‌التحصیل شوی اودهیواد په ولایاتو اومرکزی لابراتوارو کښې په کار ګمارل شویدي.

دهغومراجعینو احصائیه چه‌د ٤۱ کال له‌سنبلې نه‌دحوت تر آخره پورې ئې د دې موسسې بیلو بیلو څانګو مراجعه کړی او متعددي کتنې شوی په لاندې ډول لیکل کیږی :-

١ سیرالوژۍ څانګی: ٤٨٧٧ تنه
٢ دهماتولوژی شعبه: ٤٨٤٤ تنه
٣ باکترلوژۍ شعبه: ١٤٨٠ تنه
٤ دحیاتی کیمیائی شعبه: ٢٦.٢ تنه

**وړکتونونه:** کوم پروګرامونه چه په وړکتونونو کښې تطبیق کیږی د ماشومانو د راتلونکی روزنی اساس تشکیلوی او هغه ماشومان چه پدی موسسه کښې شاملیږی عمومائی سن او عمر دابتدائی ښوونځیو د داخلیدو د پاره مساعد نه وی او هم له بلی خوا هغوی دلیکلو او لوستلو د پاره تیارنه وی نو له همدی کبله د نورو تربیوی فعالیتو په ځای لکه موسیقی ترانه ویلو دسپورت، او لاسی کارو، دحیواناتو او نباتاتو او نورو په پیژندلو کښی چه دغه ټول په خپل ذات کښې د ماشومانو مخصوصه تربیه ده داخل کیږی د ښوونکو په واسطه تر روزنی لاندی نیول کیږی هغه ماشومان چه په ٤١ کال کښی ئی دوړکتون ټاکلی دوره سرته رسولی ده او د ښوونځی سن ته رسیدلی دی په لاندی ډول دمعارف دجلیله وزارت ښوونځیو ته معرفی او لیږل شویدی:

١ د نازو وړکتون.
٢ دحمید وړکتون.

پر سیره په تربیوی مسایلو د وړکتونو د کالیو او تغذئی د برابرولو په برخه کښې هم کوشش شویدی او په کال کښی یوه یوه جوړه بها ری لباسونه ماشومانو ته ورکړی شویدی او هم هغوی ته هره ورځ یوه لنډه ناشتا او یو ګیلاس شیدی ورکړ شوی او هم دوړکتونو د تفریحو او ساعت تیری د سامانو او لوازمو په برابر ولو کښی زیات تحولات راغلی دی.

د ٤٢ کال په دریو لمړیو میاشتو کښی په بقیینی ډول اجرا آت

## د ٤٣ کال دحمل له اول ته د جوزا تر آخره پوری:

### الف د زیزنتون شفاخانه:

**١ـ ولادی** ـ په بستر و کښی ٣٩٣ تنه نورمال ولادتونه، ٢٥٨ تنه غیر طبعی اعتلان ١٠ ـ تنه غیر ګونی، ١٢ تنه ـ هلکان ١٧٠ تنه نجونی ٢٧٢ تنه په خواله و خت نه زیږ دنه (٥) تنه او مړه پیدا شوی ماشومان ٢٣ تنه مړه ماشومان ٣ تنه کاذب درد ٢٢ تنه، بطنی عملیات ٣٠ تنه مړه شوی ٢ تنه.

**٢ نسایی:** ـ په بسترو کښی ٦٨ تنه ـ له بستر نه بهر ٥٥ تنه ـ کبیر عملیات ٣ تنه، صغیر عملیات ٣٤ تنه سقط ٣٤ تنه ـ خونریزی ١٦ تنه او تداوی ١٩ تنه.

### ب مربوط پولی کلینیکونه:

**شهرارا:** ـ پخوانی ناروغان ٤٢١ تنه، نوی نار وغان ٨٧ تنه، کورنی ولادت ٥٧ تنه ـ هلکان ٣٠ تنه ـ نجونی ٢٧ تنه ـ نوی ژینوکولوژی ناروغان ٦٤ تنه او پخوای ٤٢ تنه.

| | پخوانی ناروغان | نوی ناروغان |
|---|---|---|
| دمیوند واټ « | ۱۵۵ تنه | ۲۳۸ تنه |
| چمن « | ۱۴۸ » | ۲۲۵ » |
| میرویس میدان: « | ۱۳۱ » | ۱۲۶ » |
| مرکزی: « | ۱۲۲ » | ۲۰۸ » |
| علاوالدین :- « | ۷۷ » | ۱۳۳ » |
| بی بی مهرو :- « | ۸۲ » | ۱۲۱ » |

ج :- دقابلگی ښوونځی :- نوی شامل شوی شاگردانې ۱۵ تنه.

**دزیزنتون شفاخانه:**

| | | |
|---|---|---|
| روغ :زهو نه اوسېږی | ۴۰۰ تنه | ناروغ ۸۸۸ تنه |
| روغ عظام | ۲۱۳ تنه | » ۳۰۵ » |
| روغی کلیی اومثانی | ۳۷ » | » ۱۴ » |
| روغی کیسی او صفراوی | ۱۳ » | » ۶ » |
| روغې کېډې | ۱۹ » | » ۶ » |

## د ۴۲ کال دلمړیو شپږو میاشتو په تخمینی صورت راپور:

### دماشومانو پولی کلینیکونه:

| د پولی کلینیك نوم:- | د شید و نه استفاده کوونکی- | روغنی شیدی- | ناروغان |
|---|---|---|---|
| دشیر پور پولی کلینیك: | ۱۹۸۰۰ تنه | ۱۱۰۰ تنه | ۱۱۸۸ تنه |
| دمیرول یس میدان پولی کیلمنیك: | ۱۰۱۵۵ » | ۱۲۰۰ » | ۴۷۱۶ » |
| د چمن » | ۱۲۰۰۰ » | ۴۵۰ » | ۱۱۵۰ » |
| مرکزی » | ۱۲۸۵۰ » | ۱۸۴۹ » | ۱۸۳۰ » |
| علاوالدین » | ۱۲۵۲۰ » | ۱۰۵۰ » | ۱۲۰۰ » |
| د میوند واټ » | ۱۵۰۰۰ » | ۶۰۰ » | ۴۵۰۰ » |
| د بی بی مهرو » | ۱۱۵۰۰ » | ۳۲۰ » | ۱۱۰۰ » |

**مرکزلای براتوار:**

| | |
|---|---|
| سرالوژی څانگه | ۴۵۰۰ تنه |
| هماتولوژی » | ۴۵۱۰ » |
| باکترلوژی » | ۱۰۰۰ » |
| حیاتی کیمیا » | ۴۸۰۰ » |

**دماشومانو او میندو دساتنې پروگرام:**

د پروگرام دیونیسف په مرسته ادامه لری او پدی وختو کښی دهغو گډو کوششو او ښو مرستو په اثرچه دروغتیاوزارت او دیوهنتون دریاست په منځ کښې موجود دی د ۱۳۴۲ کال له اول نه د(نسایی او ولادی اوماشو مانو تدریسی اود تربیوی سرویس

پروگرام) په نامه یوه پروژه شروع شوې ده چه ددې پروگرام له مخې شاگردان او د طب د پوهنځي ستاژیر دکتوران د روغتیا وزارت پورې مربوط د بېلتون د شفاخانې د مناشو مانو په کلینیکو کښې د مربوطو استاذانو ترنظر لاندې ستاژ کوي .

او سربېره پردې د روغتیا د وزارت دوه تنه ډاکتران د نسایي او ولادي په برخه کښې او دوه تنه د ماشو مانو په برخه کښې د طب د فاکولتې په مربوطو سرویسو کښې د تخصص د لاس ته راوستلو د پاره تر دوزنې لاندې نیول شوي دي او له دغې پروژې سره د یونیسف د جوړه کړې پلان په اساس د پوره اندازې شید و صابون او و یټنامو مرسته کوي .

د روغتیا دوزارت د طب فاکولتې ، د دنیاله صحي موسسې نه د مرستې په ډول د طب د فاکولتې د شاگردانو د تدریس د پاره د یوتن د پتالوژۍ د پروفیسر او یو تن د فیزیالوژۍ د پروفیسر منظوري اخستې ده . او بر سیره پدې ئې د دنیاله صحي موسسې نه د طب د فاکولتې د ډاکترانو او پرسونل د روزنې د پاره یو شمیر فیلوشپان هم لاس ته راوړي دي . او هم د یونیسف د موسسې له خوانه د شاگردانو د بیلو بیلو محایو د وړه لو او راوړلو د پاره ځلوردانې موټرونه ورکړ شو یدي .

## د ملاریا د مجادلې ریاست :

دا پروگرام د دنیا د صحي موسسې یونیسف په مرسته جاري دي او د روغتیا وزارت پدې بریالی شوی چه د ٦٣ کال د پاره ئې د یونیسف له اجرائیه شورا نه د ( ٢١٠٠ ) ډالرو تخصیص اخستې دی او چه په دغو ذکر شو یو پیسو به د مجادلې ریاست ته نقلیه وسایل ـ د ملاریا د محو کولو لازمه دواوې ـ سامان او آلات ورکړ شي . همدغه راز د روغتیا وزارت د دنیاله صحي موسسې نه د دغې پروژې د مرستې د پاره د دوه تنو ملاریالوجستو ـ انتمولوجست لابراتوار او سنتري ین د تکنیشنو مقرري حاصله کړې . او بر سیره پدې ئې د دنیاله صحي موسسې نه د دې پروژې د پاره د یو شمیر فیلوشپو او مطالعاتي سفرو تخصیصیه اخستې ده او د زیاتې کتنې او روزنې د پاره ئې مربوطه پرسونلان خارج ته لیږلي او پدې وخت کښې د روغتیا د وزارت له خوا د دنیا په صحي موسسې او یونیسف کښې د ٦٣ـ٦٤ کالو د پاره د ملاریا د امحا عملیاتي پلان لاسلیك شو او پدې پروگرام کښې د بین المللي موسسو زیاتې مرستې پیشبیني شو یدي . او د ملاریا د مجادلې موسسې په لاندې ډول لازم اقدامونه کړیدي .

## د دي ، دي ، تي د شیندلو عملیات :

په ملاریائي سیمو کښې د ملاریا په مقابل کښې د مخنیوي په منظور ٦٧٤٥ کلي چه ( ٣٤٧٨٦٠١ ) تنه کیږي . او په هر متر مربع سطح کښې دوه گرامه په سلو کښې ٧٥ دي دي تي تطبیق شوي او پدې ترتیب ( ٢٩٨٨٧٦٧ ) د کیناستو په خونو ـ طویلو او په نورو محایو دواشیندل شو یده . دي دواشیندلو د ( ١٣٢٤ ) مخصوصو پمپو د ( ١٦٥٣ )

تنو کارکوونکو په‌واسطه د ثور له‌لسم نه ترسرطان پوری یعنی څه‌ناڅه دوی میاشتی په عمومی صورت دوام کړ یدی .

او ددی عملیاتو دکنترول او مراقبت درهنمائی دپاره پنځه سوه او شل تنه فنی پرسونل لکه‌مستحضر ـ صحی‌مفتش ـ آنتمالوگ ـ ډاکتر ـ دملار یا متخصصین په نقلیه وسایطو سره‌لکه بایسکل، موټرسایکل او جیپ او لاریو هره‌ورځ په کار بوخت ؤ .

پدی‌ځای کښی (۴۲۹۲۷۰) تنه‌هغه‌نفرچه په ننګرهار کښی ددواشیندلو تر پروګرام لاندی‌ندی‌راغلی ذکرشوی‌ندی ځکه‌پدی برخه‌کښی زمونږ پروګرام دومره و پړاندی تګ کړیدی چه یوازی د سرویلانس پروګرام تطبیق‌کیږی .

## دسرویلانس یادتبی لرونکو ناروغانو دمراقبت عملیات :

داچه دملاریا دمحوکولو دپالیسی له‌نقطی نظره یوازی هغه دواشیندل چه‌په‌ناقل مرض یعنی په (انافل) ماشی باندی موثردی کفایت نه‌کوی . او باید هغه ملاریائی ناروغان چه‌دملاریا دپرازیت مخزن‌دی اوهم له‌هغو نه‌ناروغی روغو خلکو ته سرایت کولی‌شی ولټول او تداوی‌شی . اودهمدی منظور دپاره په هر (لس‌زره) نفوس یو مستحضر موظف‌شوی چه‌په‌هره‌یوه میاشت‌کښی په‌کلیو او کورو کښی له‌خپل مربوط نفوس نه خبر واخلی او هغه چانه چه‌تبی‌کوی د ملاریا د پرازیت دکتنی‌دپاره وینه وا خلی اود ملاریا په‌ضد دواورکړه شی اووروسته له‌هغه‌چه دهغو ناروغانو وینی د مکرسکوپ په واسطه وکتلی‌شی اویاداچه د ناروغ په‌وینه کښی دملاریا پرازیت نه تثبیت کیږی او یاداچه پرازیت موجود وی په‌لمړی صورت کښی نورله ناروغ سره سروکار نه‌لرو خو په دوهم صورت کښی څرنګه چه ناروغ ملاریائی ثابت شو نو د د لچسپی وړ ګرزی .

پدی ترتیب مو دمملکت په‌بیلو بیلو سیمو کښی ( ۴۲۷۹۰۱۹ ) تنه‌نفوس تردی پروګرام لاندی نیو لی چه منجمله په (لسومیاشتو کښی ) له (۱۴۸۲۵۳) تنو تبی لرونکو ناروغانو وینی‌اخستل شویدی او یو احتیاطی دوا دملاریاضد دوا ورکړ شویده او په‌وینو کښی دتبو لرونکو دوینو له جملی نه په(۵۷۳) تنو کښی د ملا ر یا پرازیت ولیدل‌شول چه‌په جرزی‌صورت تداوی شوی .

۳ـ محینی خلك لیدل‌شویدی چه‌په‌ظاهرکښی ئی تبه نه‌وه خو په و ینو کښی ئی ملاریائی پرازیتونه موجودو نولدی لحاظه دمملکت په‌مختلفو سیمو کښی په کتلوی صورت د (۴۵۰۰۰) تنو وینی‌کتلی شوی اوله‌هغی جملی‌نه د(۴۰) تنو وینو ملاریائی پرازیتونه لرل . چه‌هغه‌هم جرزی تداوی شویدی .

## دملاریادمجادلی دموسسی تشکیل :

دملاریائی مملکتو دسیمو دښو رسېدګیو او تسهیلاتو دپاره په‌دریوسیمو تجدید نظر شویدی .

## د کابل په انصاری واټ کښې دعامې روغتیا د موسسې نوې ودانۍ

د شمال د ولایتو سیمې چه اوه یو نتو نه لری .

د مرکزی او جنوب شرقی سیمې چه اوه نیم یونټو نه لری .

د جنوب غربی سیمې چه څلور یونټونه دی :

د دغو سیمو په راس یو یوتن لوی مدیر چه د طب دوکتور او د ملاریا متخصصان دی موظف شویدی چه هغوی به خپلو تر اثر لاندی یونټو له رسیدگی کوی د ملاریا هر یو یونټ (۲۰۰۰۰۰) تنه نفوس په یوه معینه منطقه کښې گوری او دا کټرو یونټو په راس کښې د طب ډاکټران او د ملاریا متخصصین کارکوی او په ټول مملکت کښې اوه لس نیمه یونټونه په فعالیت بوخت دی .

د پورتنی ویناله خلال نه معلومیږی چه د مملکت په مختلفو سیمو کښې (۴۲۷۹۰۱۹) تنه بیدو د ملاریا د مرض له خطرسره مخامخ دی چه وقایه او کنترول کیږی ، د هغې ملاریا اندازه چه پخوا د (۴۰) نه تر (۷۰) اندازی پهشا و خوا کښې ؤ اوس صفرته رسیدلی او د مرض د شیوع خطر بیخی ورک شویدی :

## دتوبر کلوز دموسسی فعالیتو نه :

دتوبر کلوز موسسی ددنیا دصحی موسسی په مرسته ۸۲۷ تنه کورنی نارو غان دیو علمی پرنسیب له مخی له نزدی نه تر خپلی څیړنی او کتنی لاندی نیولی او کومه دوا چه ور سره موجو ده ده هغوی ته ئی ور کوی .

شك نشته چه پدی گروپ کښی اصل مسلول نا رو غان شته او هم دهیواد ، دهغو افرادو دمراجعی له مخی چه علالت او کسالت حس کوی له یوی خوا هرم ورځ زمونږ دنارو غانو شمیر زیا تیږی او له بلی خوا کوم نارو غان چه دمدا ومی څیړ نی او تدا وی په اثر یو په بل پسی رو غیږی دتداوی له گر وپ نه ایستل کیږی .

نو همدا وجه ده چه که له یوی خوا زمو نږ دمسلو لو مرا جعینو په شمیر کښی زیا توا لی راځی نو له بلی خوا زمونږ دمساعدو شرایطو په اثر یو شمیر مسلو لین هم مخ په ښه کیدو شی او رخصتوؤ ئی ، اودغه دی اوس دخپلو محترمو هیوادوالو دخبر تیا دپاره ددغی موسسی دورو ستی کال اجرا آت څکې په څکې لیکـو :

د ۱۳۴۰ کال دسنبلی له اول نه د ۱۳۴۱ کال تر آخره پوری دننه په دغی موسسی کښی په لا ندی ډول فعا لیتو نه شو یدی .

| | | |
|---|---|---|
| ۱ دنار ینه ؤ برخه | ۱۲۲ | تنه |
| ۲ دښځو　» | ۳۷۳ | » |
| ۳ دما شو مانو　» | ۳۹۵ | » |

څرنگه چه دغه نارو غان دتو بر کلوز دموسسی تر مراقبت لاندی په خپلو کورو کښی تداوی کیږی نو په لس گو نو نا حیو باندی ئی په لاندی ډول ویشـو :

| | | | |
|---|---|---|---|
| لمړ ی | ناحیه | ۵۰ | تنه |
| دو همه | » | ۵۵ | » |
| دریمه | » | ۵۳ | » |
| څلو رمه | » | ۷۲ | » |
| پنځمه | » | ۹۵ | » |
| شپږمه | » | ٦٦ | » |
| اوومه | » | ٦٤ | » |
| اتـمـه | » | ۱۱٦ | » |
| نـهمـه | » | ۱۱۲ | » |
| لـسـمـه | » | ۱۲٦ | » |

له لس گو نو نا حیو نه دبا ندی زمونږ فعا لیتونو دکابل تر شش کروهی پوری پر اختیا موند لی ده او دکابل دشش کرو هی بیلو بیلو سیمو کښی په لا ندی ډول نارو غان تعبیه شو یدی .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| گذرگاه ـ او وایصل آباد | ۹ | تنه | مهتاب قلعه | ٦ | تنه |
| چهلستون | ۱۲ | تنه | وزیر آباد | ۷ | تنه |
| ریشخور | ۱ | تنه | یکه توت | ٦ | تنه |
| چهاردهی | ۲۱ | تنه | دښوونځیو شاگردان | ۱۲ | تنه |
| قلعه فتوح | ٦ | تنه | آبشار نانك چی | ۳ | تنه |
| ده دانا | ۱۵ | تنه | دار الامان | ۳ | تنه |
| علاوالدین | ۹ | تنه | خواجه ملا | ۳ | تنه |

او بر سیره پدی د٤١ کال دسنبلی له‌اول نه د٤٢ کال دجوزا تر آخره پوری دکابل دښار او دشش کروهی دشاوخوادښوو نځیوسروی داندکس تو بر کولینك له مخی دموسسی تر دوهو سیارو گروپو لاندی تر کتنی نیول شوی او له ٦٥ زرو تنو نه ئی زیات ترمطا لعی او تدقیق لاندی نیو لی دی څرنگه چه په تیرکال کښی دښاراو شش کروهی دښوونځیو ٥٠ زره تنه‌شاگردان ترمطالعی او تدقیق لاندی نیو لی شوی او نظرپه‌مختلفو سنو ته ئی داتتان څپر یدل په‌لاندی ډول قید کړ یـدی :

(له ۷ نه تر ١٤ کلنو پو ری په سلو کښی شل او له ۲۰ نه زیات چه ښوو نکی هم په دغه گروپ کښی شامل دی په سلو کښی ۳۰ ) د تو بر کو لین تست لر ل .

دسږکال له اول نه تر اوسه پوری ١٥ زره تنه‌هغه شاگردان‌چه نوی داخل‌شوی او یو شمیر دلوړو ټولگیو شاگردان چه تیر کال بی شی جی ؤ دوهم ځل دتو بر کولین تست تطبیق شوی دی .

بله دویلو وړ نکته داده چه په ١٣٤١ کال کښی چه دمزار شریف او جـلال آباد او پلخمری‌دښارو ښوونځی او همدغه راز د نسا جی ـ پلخمری ـ گلبهار ـ جبل السراج فابریکی داندوکس تو بر کو لینك له نقطی نظره‌سر کتنی لا ندی نیول شوی‌ؤ چه په هغوی کښی داتتان څپر یدل او فعا لی پیښی تثبیت شو یـدی نو تعلقه مراجعو ته ئی راپور لیږل‌شوی .

د٤١ کال دسنبلی له اول نه د ٤٢ کال دجوزا تر آخره پوری دتو بر کلوز دموسسی دننه عمومی مراجعین په لاندی ډول دی .

| | | |
|---|---|---|
| دټولو مراجعینو شمیر | ١١١٨٠ | تنه |
| ناروغان | ١٠٦٤ | تنه |
| روغ | ١٠١٦٠ | تنه |
| هغه کسان چه‌بی سی‌جی شوی | ۷۳۱ | » |

دتوبرکلوز دمؤسسی مراجعین‌دسنبلی ترمیاشتی پوری تخمیناً (٥٥٠٠) تنو ته رسیدلی دی.

(د ۲۳۲ مخ پاتې)

## دمطبوعاتو دوزارت فعالیتونه

اداری تشریفاتی چاری رسمی مکاتبی - بلنی - میلمه‌پالنی- دمحیطی سالگرو دتجلیل اود افغانستان اوشوروی اتحاد - افغانستان اوجمهوری هند ددوستی په تولنو پوری مربوطی چاری هم په‌غاړه دی او دافغانستان اوملگرو ملتو اوافغانستان متحد عربی جمهوریت ددوستی دټولنو لومړنی پروژی په‌یوه کال کښی بشپړی شوی دي .

## دخارجه‌ارتباط دمدیریت فعالیتونه :

دخارجه ارتباط مدیریت د۱۳٤۱ له‌نیمائی څخه د۱۳٤۲ کال ترنیمائی پوری دهغو ټولو خارجی نامه لیکونکو اوژورنالستانو چه‌دافغانستان ته‌راغلی دی هرکلی

دپوهنی ننداری رئیس ښاغلی لطیفی، دامریکایی هنر مندانو دهیأت رئیس ښاغلی رابرت جفری ته‌دگلو گیډۍ ورکوی

کړی دی، د مملکت لهواکمنو شخصیتونو سره ئی د هغوی مرکو او ملاقاتونو ته زمینه برابره کړی‌ده او هغه بلنې چه د مطبوعاتو دوزارت د ثقافی روابطو د اداری لهخوا پهیوه کال کښې د خارجی ورځپاڼو، لیکوالو او د جریدو د نمایندګانو په ویاړ ورکړ شوی دی د دغه مدیریت په واسطه ترتیب او د غو بلنو کارتونه توزیع شوی دی.

د هغو ذواتو چه د مطبوعاتو له وزیر یاددغه وزارت له معین سره ګوری‌د دغه مدیریت کار کوونکی هرکلی کوی.

په افغانستان کښې د ننه د خارجی جریدو د نمایندګانو چه د مطبوعاتو میلمانه‌وو د استوګنې او سیر وسفر ویزه، د خارجه ارتباط مدیریت لهلیاری سرته رسیدلی ده.

په کابل کښې او سیدونکو خارجیانو، سفارتخانو، د دوستو دولتو د ثقافی مرکزو او د اطلاعاتو دایروته د مطبوعاتو دوزارت د نشراتی موسسو او مربوطو څانګو لازم او فوری معلومات لههمدغې لیاری څخه د لیك، شفاهی او د تلیفون پهذریعه د هغوی په اطلاع رسول شویدی.

دغه‌راز هغه د بلنې کارتونه چه د دوستو دولتو د سفارتخانو لهخوا د مطبوعاتو وزارت تهلیږل کیږی همدغه مدیریت ئی د مطبوعاتو وزارت، هغه نشراتی موسسو او نورو وزارتخانو تهرسوی.

هغه دعوتونه چه د مطبوعاتو دوزارت له خوا ورکول کیږی، د مطبوعاتی هیأتو پذیرائی او مشایعتونه د دغه مدیریت لهامو وظیفو څخه دی.

د مطبوعاتو دوزارت نشراتی موسسو ته د هغوسترو کسانو د پذیرائی پروګرام چه د شپه نیت په رسمی بلنو سره په یوه کال کښې افغانستان تهراغلی دی همدغه‌مدیریت توزیع کړی یدی.

د مطبوعاتو د کلتوری هیأتو او هغو مامورینو چه د کلتوری همکاریو د تړون له مخې د فیلو شپ سکالرشپ په توګه او یا په کنفرانسو کښې د ګډون لهامله دوستو دولتو تهتللی دی سفر خرځ ـ د الو تکې ټکټ او صحی تصدیقونه له همدې لیاری تهیه شوی او پاسپورتونه همدغه مدیریت ورته تهیه کړی او ورکړی ئی دی.

## د کابل راډیو د خپروونکی موسسی فعالیتونه:

## د اخبارا او راپورتاژ د مدیر اجراأت:

| د پروګرام عنوان | په یوه میاشت کښې | په لسو میاشتو کښې |
|---|---|---|
| پښتو او فارسی خبرونه | ۳۵،۳۰ ساعته | ۳۵۳ ساعته |
| د ورځې په پیښو د باختر تبصره | ۲٤ تبصري | ۲٤۰ تبصري |
| ورو لیك | ۲۵،۰۰ ساعته | ۱۵۰ ساعته |
| د نړۍ د سیاسی پیښو اجمال | ٤ پروګرامه | ٤۰ پروګرامه |

## دراپورتاژځانګه:

| راپور تاژ اومرکه | ٤ پروګرامه | ٤٠ پروګرامه |
|---|---|---|
| دهیواد ورځپاڼوته یوه کتنه | ١٦ « | ١٦٠ « |

ددغې ځانګې پروګرام بهددې کال دوړې دمیاشتې تر پا یه پورې همد غهشیان دوام وکړی .

## دباندنیوخپرونودمدیریت اجراءآتورپوټ:

دباندنیو خپرونو مدیریت په شپږو (انګلیسي- روسي -فرانسوي- جرمني- عربي اردو) اوپهاته‌نیم ساعته ګروسیو کښې خپرني لري‌چه‌دری ګروسیو ته ئې په انګلیسي اویو سرویس ئې په نوروژبوخپر و نی کوی .

دانګلیسي لوی‌سرویس‌دلری ختیزاودجاپان دهیو ادود پاره‌دی‌چه وروسته له‌غرمی پهدریو بجو په‌لنډه‌ څپه په‌١٥ یا١٩ متره خپر یږی .

دانګلیسی دوهم سرویس دآسیا دختیز جنوبی هیوادو اوا ندو نیز یا دپا ره دی چهغهم دلنډی څپی به٣١ یا١٩متره وروسته‌له‌غرمی په‌دری‌نیمو بجو خپریږی .

دانګلیسی‌دریم سرویس داروپائی هیوادواوانګلو ساکسون‌دهیوادو دپاره‌وی چه‌هغه هم دلنډې څپې ٨٤، ٦٢ متره دماښام پهشپږ نیمو بجو بروډ کاست کیږی .

داردو سرویس داردو ژبو هیوادو په‌تیره دهند وپا کستان دپاره دلنډی څپی په٨٤،٦٢ متر و کښې دماښام په‌شپږو بجو اوروسی سرو یس په همد غه څپه کښې دشپې په اسو بجو، عربی سر و یس دعربی هیوا دو د پاره هم دلنډ ی څپه په٣١ یا ٢٥ مترو کښې دشپې په ١٠ نیموبجو اوجرمنی‌او فرانسوی سرویسونه‌داروپائی هیوادو دپاره د٣١ یا ١٩ مترو‌په څپوکښې دشپې په یوولسو اویوولس‌نیمو بجو خپریږی،

ددغو پروګرامو څخه مقصد دادی چه‌دافغانستان دهیواد تاریخ کلتور ترقیات انکشاف-توریستي حالت او با ندنی‌سیاست معرفی‌شی، له‌دغه امله دباختر دخبرو په‌قولو ټاکلیو سرویسو کښې دورځوبه پیښو یوه‌تبصره اویوه مضمون خپریږی.

مضمونونه‌قول په پورتني ډول تهیه‌کیږی اودهیواد دزیاتې‌معرفی دپاره‌خپریږی.

تصری هم‌که په کو رینو مو ضوعاتو کښې وی یا باند نیو کښې قولی دورځی د پیښو له مخی وی په‌تیره‌دبا ندنیومسألو په باب دآزاد قضاوت اودبیطرفی دسیا ست مؤیدې‌اومعرفې‌وی .

د٣١ کال په‌آخرو وختو کښې دبا ند نیو پروګرام دیوه داسې جدول‌چاپولو ته‌څخه وشوه چه پخوا ئې وجود نه درلود .

دغه‌جدول چه‌قټیز پروګـرامو نه ځرګندوی سمدستی پنځه سوه نسخې په‌انـګلیسي ژبه چاپ شوی باندنیواوریدو نکوته‌چه ډیره غوښتنه ئې کوی لیږل کیږی.

په‌دغه‌جدول کښې‌دهری‌یوازې دمضمو نو خپر ولو وخت‌اود پروګرام قول جریان

لوستونکو ته څرګندیږی او ددغی څانګی دهرډول خپرونو په باره کښی لنډه مقدمه لری اودهیواد ته توریستیکی منظرو سره شکلی شوی دی.

دموني او اوریدونکی پروګرام له دریومیاشتو راهیسی یعنی دوری له میاشتی څخه دوه روسی اوجرمنی پروګرامونه دازموینی په ډول اوداوریدونکو دلیکنی په ځواب کښی شروع شوی او په زړه پوری نتیجه ورځخه اخیستل شوی ده دعلاقه مندانو شمیرګی زیات کړیدی.

له هغی څانګی څخه چه بهدی وختو کښی نی د باندنیو خپرونو په مدیریت پوری ارتباط مونډلی دی هره ورځ داسی لیکنی چه دهیواد منظرو دهیود په باب دهیواد دپستی د ټکټو په باب اودغه شان نورو په باب معلومات ولری داسی باندنیو اوریدونکو نه لیږل کیږی چه دکابل راډیو باندنی پروګرامونه اروی په نظر کښی دی چه څانګه به زیات انکشاف وکړی لکه چه همدا اوس دافغانستان بیرغ، فوتوګان اوکتابونه چه دکابل راډیو دباندنیو پروګرامو باندنی اریدونکی مینه ور سره لری اوغواړی ئی دغی څانګی ته ورکړشوی دی چه په ودیا ډول ئی اریدونکوته واستوی.

## د آرت اوموسیقی لوی مدیریت:

### دموسیقی مدیریت:

۱: دنوی موسیقی دیوسل او پنځوس پارچی تهیه کول.

۲: روسیی ـ چکوسلواکیی او ایران ته دافغانستان دموسیقی دپیژندلو له امله دهنری هیأ تو لیږل.

۳: په نوی سبك سره دتیپو لو په شاوخوا کی چه زر به په کابل راډیو کښی شروع شی دمطالعی له امله بیروت ته دیوه تن لیږل.

٤: په نوی سبك دتیپ اخیستلو له امله دبناغلی فریمن په واسطه دا کوستیك دکورس تدریس.

٥: دوطن دآهنګو دیرش پارچی چه دکابل راډیو د ۲ راکستر په واسطه ارمونیزه شوی دی.

## داټکل په ډول په دریوراتلونکو میاشتو کښی:

۱: دیوه ارمونی کلیوالی ارکستر تشکیل.

۲: ددغه ارکستر دفنی پرسونل دتدریس دپاره دکورس پرانستیل.

۳: په هرو دوو میاشتو کښی دنویو کنسرتو انعقاد اوسربیره پر اوسنیو خپرونو دجمعو په ورځو کښی ددریو ساعتو خپرونی زیاتول.

## د ۴۱ دوړی له میاشتی څخه دکب دمیاشتی ترپا یه پوری دآرت د مدیریت اجراآت:

۱: دکرهڼی دیالوك په هره میاشت کښی ٤ ټول ۲٤

۲: دروغتیا « « ٤ « ۲٤

۳: کلیوالی په‌هره‌میاشت کښی ٤ ټول ۲٤
رنګارنګ‌پروګرام « ٤ ۲٤

د ترتیب او بروډ کاسټی په‌هنری او فنی ډول.

۵: دجمعی دورځو دیالوك په‌شپږو میاشتو کښی شپږو یالو که.

٦: راډیو ډرام په‌شپږو میاشتو کښی‌اته ډرامونه.

۷: کورنی ژوند په « « « شپیته دیالوکه.

## د۱۳۴۳ دوری له میاشتی څخه د۴۳ دوری ترمیاشتی پوری :

۱: دکورنی ژوند دیالوك په یوه میاشت کښي ۱۲ دیالوکه ټول ۷۲ دیالوکه.

۲: دجمعی دور ځو « « « ٤ « « ۲٤ «

۳: فارسی رنګارنګ « « ٤ پروګرامونه « ۲٤ پروګرامونه.

٤: دکرهنی راډیو ډرام په ورږو میاشتو کښی یو ځل .

په ورو ستیو دریو میاشتو کښی به هم دآرات دمدیریت پروګرام همدغه شان دوام ومومی .

## دمضمونو تهیه‌کولو مدیریت :

| دمضمون عنوان به لسو میاشتو کښی دساعت له مخی خپرونی | | په‌لسو میاشتو کښی دپروګرامونو شمیر |
|---|---|---|
| په فارسی اوپښتو دکورنی ژوند پروګرم | ۱۲۰ ساعته | ۲٤۰ ساعته |
| په فارسی او پښتو رنګا رنګ پرو ګرام | ٤۰ « | ۸۰ « |
| « « دراډیو دد استان « | ۲۰ « | ٤۰ « |
| د پښتوداد بیاتواوهنر په‌باب‌د تبصری « | ۱۰ « | ٤۰ « |
| د پوهنی،اوروغتیااو دکرهنی‌دوزارتخانو « | ۲۰ « | ۱۲۰ « |
| دعلو مودپو هنځی « | ۱۰ « | ٤۰ « |
| دملګروملتو « | ۱۰ « | ٤۰ « |
| دانګلیسی‌دلومړیو اومنځینودرسو « | ۲۰ « | ۸۰ « |
| درو سی درسو « | ۲۰ « | ۸۰ « |
| د پښتو درسو « | ٤۰ « | ۲٤۰ « |
| | ټول ۳۱۰ ساعته | (۱۰۰۰) پروګرامونه |

## دپروګرامو دمدیریت اجراأت !

| دپروګرام عنوان | دساعت په‌حساب دلسو میاشتو خپرونی | دپروګرام شمیر په ۱۰ میاشتو کښی |
|---|---|---|
| مونږاو اوریدونکی (په‌پښتواوفارسی) « | ۱۳٫۲۰ ساعته | ٤۰ پروګرامونه |
| دکوچنیانو پروګرام ( « « ) « | ٤۰٫۰۰ « | ۸۰ « |
| اعلانونه ( « « ) « | ۱۵۰٫۰۰ « | ٦۰۰ « |

## دزمونږ او اوریدونکو پروگرام :

دغه پروگرام چه په هره هفته کښې یو محل شل دقیقې خپرېږی داوریدونکو علمی او ادبی پوښتوته ځوابونه او دژوندانه په مشکلاتو کښې هغوی ته مشوره ورکوی .

دا کلک فعالیتونه چه ددغې ځانګړې غږې ئې دپروګرامو دموادو په تهیه کولو کښې دعلمی او ادبی ښه مستند مآخذ ته دمراجعې کولو سره کوی او تر څو ئې چه امکان وی داوریدونکو هره پوښتنه که څههم علمی زیات اغماض او اشکال ولری بی ځوابه نه پرېږدی ددې باعث شویدی چه ددغه پروګرام علاقه مندان ورځ په ورځ زیات شی چه نه یوازې د هیواد له ښاؤ خوا څخه بلکه د هیواد دبانډی څخه هم ځینی افغانی زلمیان لیکلین نه را سره لری اودخپلو علمیاو حیاتیمشکلاتو په باره کښې استشاره را سره کوی .

پدی وختو کښې داسې اقدام شویدی چه دزمونږ او اوریدونکی پروګرام چه یو علمی پروګرام دی دمیزانه چار پېر دمرکې په څیر اوریدونکو ته ور کړ شی او هغه لیکونه چه له اوریدونکو څخه را رسید لی دی ددغه مطلب تا یید کوی چه دغه شان پروګرام ئې ډیر خوښ دی .

## دکوچنیانو پروګرام:

پدی وختو کښې کلکه پاملرنه شوې ده چه ددغه پروګرام مواد او مطالب پداسې توګه ترتیب او تهیه شی چه له ډیرو لویو منابعو څخهچه دکوچنیانو دپاره خپرونی کوی واخیستل شی او یادی دداسی آثارو څخه استفاده پکی وشی چه هغه لکه ( هانس ك ـ اندرسن) او نورو په شان چه اثرونه ئې دکوچنیانو دپاره زیات شهرت ولری له دی امله چه ددغه پروګرام اوریدونکی له سندرو او موسیقی سره زیاته مینه لری نو دساز غږ وونکو او سندر غاړو یو مختصر ګروپ پخپله له وړو کوچنیانو څخه جوړ شویدی چه دموسیقی دیوه استاد تر کتنه لاندی نوی سندری او دکوچنیانو په ذوق برابری نغمی تهیه کوی او په همدغه لړ کښې له دوستو هیوادو څخه دکوچنیانو دپاره دمخصوصو سندرو یو شمیر ټیپونه او ریکار درونه راغوښتل شویدی چه کله کله دهغو هیوادو دژوند او کلتور دمعرفی کولو په ترڅ کښې اوریدونکو ته اورول کیږی .

هغه پر له پسی لیکونه چه له اوریدونکو څخه را رسیږی ښیی چه علاوه په کوچنیانو زلمیان او لویان هم دغه پروګرام خوښوی .

دمربوطی څانګی په رپوټ علاوه :

۱ : درادیو دجمعی دورځو دخپرونوخت دریساعتهزیاتشویدی چهله ۱۲ بجونه تر ۳ بجو پوری دوام لری .

۲: د ژنګهای تفریح (د تفریح ژنګونه) په نامه په هرو پنځلسو ورځو کښې یو ځل نیم ساعت پرو ګرام خپر یږی .

۳: په نظر کښې دی چه درا ډیو په خپرونو کښې د(وا قعات وانکشا فات) او (پرو ګرام جوا نان) په نامه ځینی پرو ګرا مونه زیات کړی شی .

## د پښتو نستان د پرو ګرام خپرونی :

په کا بل راډیو کښې چه هره ورځ دما زیګرنه وروسته دماښام د ۷ بجو نه تر ۸ بجو پوری د پښتو نستان پرو ګرام په پښتو او بلوچی ژبو خپر یږی په دغه پروګرام کښې یو ازی د پښتو نستان د خلکو دحقوقی مطالبی په تائید د پښتو نستا نو دجاری مبارزی دشوراو ولولو انعکاس چه د هغوی د ضمیر غږ دی او د هغوی د غوښتنې حقوقی او آزادی د یو ازنی سیاسی مسئلی په حیث دحالاتو د بیان او خبرو نو په حیث خپاره شوی دی چه سر بیره د پښتو نستان نه درا غلو خبرو او د افغانستان دغټو خبرو نو د نشر نه د اجتماعی عدالت بین المللی، قضاوت او آزاد ملی قناعت چه د اختلافی مسایلو اود حقوقو د اعتراف منلی طریقه ده د پښتو نستان د موضوع د ورځی مطابق ګټور مضمو نونه ، د پښتو نستان تاریخی روایات او جغرافیائی حالات د نشر د پاره چمتو او برا بر شوی او په خپل وخت نشر شوی دی چه دادی د ۱۳٤۳ کال دسنبلی د میاشتی نه د ۱۳٤۲ کال د سرطان د اول پوری دالاندی موضوعات د مختلفو عناو ینو لاندی د کا بل راډیو څخه د پښتو نستان په پر وګرام کښې خپاره شویدی چه پدی حساب او شمیر دی.

| | |
|---|---|
| ۱ـ شعرونه | ۲۰٦ ـ دانی |
| ۲ـ د پښتو نستان آواز | ٥۲ ـ » |
| ۳ـ د آزادی چیغی | ۲۲ ـ » |
| ٤ـ د دوستا نو مرکې | ۲۳ ـ د |
| ٥ـ مضمو نونه | ٤۳۲ ـ د |
| ٦ـ په بلوڅی ژبه کښې | ۳۰٥ مضمو نونه |

۷ـ د پښتو کوم مضمو نونه، شعرونه، آوازونه او چیغی چه د پښتونستان په پروګرام کښې د شپی له خوا نشر شوی په سبا ئی په دوه نقلو کښې ټایپ شوی چه یو نقل ئی اخبا روته د نشر د پاره لیږل شوی دی .

۸ـ د پښتو نستان د پروګرام د پاره هر وخت د نشرا تو د وخت او زمان سره سم شعرونه جوړ شوی چه هغه د جلاجلا سندر غاړو او هم د کورس او ګډو آوازو په واسطه ویل شوی او ځینی شعرونه د شعبی له خوا دخو ږو سندر غاړو په آوازو کښې ټیپ شوی چه څه ناڅه ٤۰ ټیپونه مخصوص د پښتو نستان د پروګرام د پاره موجود دی .

۹ـ په همدومره موده کښی کله کله د هجری خبری او دیالو ګونه هم نشر شوی دی.

## د کابل راډیو د تخنیکي ریاست فعالیتونه:

### الف: د استوونکو په برخه کښې

د راډیو د تخنیکي ریاست عمده فعالیتونه په دې موده کښې د دوهم پنځه کلن انکشافي پلان د پروژو بشپړ ولو ته متوجه دي. د پلان په دغه اساس سره دوه استوونکي دستګاوې بشپړې شوې دي چه یوه ئې سل کیلوواټه د لنډو څپو او بله ئې هم په سل کیلوواټه طاقت د میډیم څپو د پاره دی.

د لنډې څپې سل کیلوواټه دستګاه به له دې وسمنتي انتنو سره یوه ئې داور وپا پرلور او بله ئې د منځنی ختیز د مملکتو پرخوا د کابل راډیو د لنډو څپو د ستګاو په اوسني مرکز یکه توت کښې نصب شي چه په دغه اساس ئې نوې ودانۍ باید لږ څه پراخه او وړه تغییرات پکښې وشي.

د میډیم څپو د سل کیلوواټه دستګاه نصبول د جبار د کلا ترشا د غر خې په پله کښې په نظر کښې نیول شوي دي، ادغه امله ۶۰۰ په ۶۰۰ متره کښې ځمکه پیشبیني شوې ده دغه ساحه اوس لږ څه پراخه ده خو داسې په نظر کښې دي چه کله چه استوونکي دستګاوې زیاتې شي هغه به نوره هم پراخه شي.

د پورتنیو دستګاوو پروژه په دوه برخو ویشل شوې ده چه یوه ئې تخنیکي ده چه په دغه زمینه کښې د زیمنس د کمپنۍ د سروې هیأت کابل ته راغلی او دغه پروژه ئې له فني نظره کتلې او تثبیت کړې ئې ده.

د وهمه ئې تعمیري ده چه په دغه باره کښې د راډیو تخنیکي ریاست د جوړونې له کمپنیو سره په تماس کښې شوی او د هغې نقشې ئې بشپړې کړې او سمدستي تر دوران لاندې دي، لکه چه معلومه شوې ده د استوونکو دستګاو د دپروژې مصارف دالمان د اتحادي جمهوریت د حکومت له پور څخه کیږي. په دغه باره کښې د المان وکریډت د مؤسسې هیأت کابل ته راغلی او له غو رامطالعې نه ور وسته ئې پروژه تثبیت کړه اوس د دغې پروژې د پور موضوع په المان کښې تر کتنې لاندې ده او بنائي زر تر زره ئې تړون لاسلیک شي، په نظر کښې دي چه د ۴۲ د سنبلې ترمیاشتې پورې له دستګاه استوونکي کمپنۍ سره تړون وشي او د ودانۍ کارئې هم تر هغه وخته شروع شي.

### ستډیو ګانې:

د کابل راډیو د ستډیو ګانو د نوې ودانۍ کار سم له پروګرام سره سم پر مخ تللی او اوس ئې نږدې په سلو کښې ۹۵ کار سر ته رسیدلی دی. سربیره پر هغه فني چارې ئې هم شروع شوې او کار ئې په بیړه پرمخ درومي. د دوداني ټولې چارې ئې باید د ۴۲ د سنبلې تر میاشتې پورې بشپړې شي او د فني چارو بسته کارې به ئې هم تر هغه وخته په سلو کښې پنځوس سرته ورسیږي ځکه چه زیاتره وسایل ئې تراوسه پورې افغانستان ته نه دي رارسیدلي.

## ج: اخیستو نکی مرکزونه:

دراد یو د تخنیکی ریاست په نظر کښې لری چه په دوهم پنځکلن پلان کښې خپل اخیستونکی مرکزونه دافغانستان په بیلو بیلوځایو کښې زیات کړی په هم دغه اساس دهغی دوسایلو یو ټرون دفلفس له کمپنی سره شوی اودغه سامانونه به د ۴۲ د سنبلی تر میاشتی پوری کابل ته راورسیږي .

سربیره پر هغو د کابل راډ یو تخنیکي ریاست یو اخیستونکی مرکز د کابل په ښارخي پله او یو بل اخیستو نکی مرکز په سپین بو لدك کی پر نیستیلي او پسه کار ئې اچولي دی.

دچغه سرای دمرکز د برښنا تور بین به چه لو مړنی چارې ئې سرته رسیدلی دي د ۴۲ دسنبلی ترمیاشتی پوری نصب شی پدغه اساس به ئی د آخذی مرکزچه تراوسه پوری یې دخاورو دتیلو له څراغ څخه کار اخیست وروسته له دی به د برښنا له توربین څخه استفاده کوی سربیره پر هغه داسې په نظر کښې دی چه په ارزګان کښې دی هم د برښنا دتوربین یونوی مرکز جوړ شی چه دهغه په واسطه هلته یواخیستونکي مرکز په کار واچول شی. د راډیو د تخنیکی ریاست فنی هیأت به ژر دسروی له امله هغی خواته وخوځیږی.

دغه راز د بامیانو داعلی حکومت په مرکز کښې به هم دآخذی یو نوی مرکز په کار واچول شي.

## د گرځندوی دریاست فعالیت :

د ګرځندوی موسسې د ۱۳۳۷ کال په سرکښې دحکومت په تصویب سره د یوه سهامی شرکت په صورت دځلورو ملیو نو افغانیو په پنګه چه سهمونه ئې د پوهنې، مطبوعاتو دوزارتو، دآریانا هوائی شرکت او د پښتنی تجارتی بانك او دهوټلو اوترانسپورت دشرکتو له خوا ورکړ شوی ده، تأسیس شو او په کار یې پیل وکړ وروسته له هغه دسږ کال په اولو وختو کښې دمطبوعاتو دوزارت په تشکیل کښې دننه د دولت دتصدی په ډول شو.

دغې موسسې دخپل تأسیس له اول څخه له زیاتو بین المللی توریستی موسسو او دنړۍ د بیلو بیلو هیوادو له ګرځیدو نکو نماینده ګانو سره روابط ټینګک کړی. د توریزم جریان ته ئې په تدریج سره شکل او انتظام ورکړی دی او دهیواد په زړه پوري ځایو ته چه مهم ئې بامیان او دامیر بند دی د ګرځیدو نو تر تیبو لو ته هڅه کړی ده.

## دگرځندوی دموسسې اجراآت :

د ګرځندوی موسسه د نړۍ په توریزم له دوو سوو نماینده ګیو نه زیاتو سره دمراودې او همکارۍ ټینګو لو له لیاری پدی بریالی شوه چه دو ذره پنځه سوه پنځه اتیا تنه ګرځیدونکی دنړۍ له بیلو بیلو هیوادو څخه جلب او دافغانستان په بیلو بیلو ځایو کښې ئې د ګرځیدو وسایل برابر کړی .

دغې موسسې دخپل تأسيس له اول څخه په کلکه زيار ايستلی دی چه د گرځيدو او سياحت دوسايلو په برابرو لو سره افغانستان ته د نړۍ په ټوليستي نقشه کښې ځای ورکړی او زيات گرځيدونکي را جلب اود هيواد د پاره اقتصادي او فرهنگي گټه تأمين کړي لکه چه د همدغه فعاليت له مخې د تبليغاتو له لياري د هيوا د د معرفي د پاره د گرځيدونکو شمېر ورځ په ورځ زيات شوی دی، لکه چه د تېرو کلو احصاييه ښيي چه له ۱۳۳۷ کال نه راپدی خواد گرځيد ونکو په شمېر کښې پوره زياتوالی راغلی دی او د تېر کال د گرځيدو نکوشمېر د گرځيدو نکو له هغه شمېر څخه يو پر پنځه زيات دی چه په ۷ ۳ کال کښې افغانستان ته راغلي وو.

## دد غې موسسې تبليغات:

د موټل او نورو وسايلو د کموالي په اثر گرځندوی په زياته اندازه خپرو نوته هڅه نه ده کړې . او د هيواد څخه د بانديو اودننه يو گرځيدو نکوته ورکړې دی په احتياط سره ئې خپرو ني کړې دی سره له هغه هم په تېر کال کښې پدې بر پالي شوه چه د باميانو د ښو دنې کتاب په(۷۹)مخو کښې په انگليسي ژبه چاپ او د باند نيو هيواد و گرځيدو نکو او توريستي موسسو ته ئې د استفادې له امله ورکړی دی.

دغه راز ئې په لاندې ډول نقشې او پوسترونه د هيوا د د پېژندلو د پاره چاپ کړي دي .

**۱ دافغانستان نقشه:** چه د هيوا د د سړکونه د مهمو ځايو له مسافو سره هوايي د گرونه، ملکي هوټلو نه اود پټرو لو ټانکونه ښيي .

**۲: پوسترو :** چه دافغانستان له نقشې او په انگليسي ژبه د گرځيدو و له لنډو معلوماتو څخه عبارت دی اود هيواد د تاريخي آثارو په فو تو کانو ښکلي شويدي .

**۳:د کابل دښار نقشه:** چه واټو نه مهمې دايرې بانکونه داخلي او خارجي شرکتونه او نور ښيي او په هيواد کښې د ننه گرځيدو نکو ته په لار ښو دنه کښې زياته مرسته کوی.

**۴: دافغانستان نقشه:** چه په نيويارک کښې په ډېره مفصله توگه دملکرو ملتو د مرکز دادارې له خوا چاپ شوې او د گرځندوی له خوائې په پوره اندازه فرمايښت ورکړ شوی دی او هر و رځ گرځيد و نکوته د استفادې د پاره ورکوله کيږي .

**۵: پوستر (رنگه اعلا ن )**

د باميانو د بند امير ، د هرات دجامع جومات اود هند وکش ددور نماد يوی برخې د ښلو رو ډولو رنگه پوسترو په چاپان کښې فرمايښت ورکړ شوی او د گرځېدو نکو

د جلبو او د پارو زیاته برخه کوی په خارج کښې افغانی سفارتخانو او نمایندګیو ته، په کابل کښې خارجي سفارتخانو، په هیواد کښې دننه هوټلو ملکی هوائی ډګرو او په دننه او د باندې کښې د آریانا دهوائی شرکت نمایندګیو ته او دنړۍ په زیاتو هیوادو کښې خارجی تور یستی مؤسسو ته توزیع او لیږل شوی دی دغه راز د افغانستان یوه پوره اندازه نقشې د تورخم او اسلام کلا سرحد داریو ته لیږل شوی دی چه هغو راتلو نکو ګرځیدو نکو ته یی ورکړی چه د مځکی له لیارې افغانستان ته راځی.

دغه شان د افغانستان نیوز اریانا افغانستان مجلی او د کابل ټایمز ورځپاڼه وخت په وخت سرحدو ته لیږل کیږی چه باندنی ګرځیدونکی زمونږ هیواد ته د راتګ په وخت کښې دهیواد له خپرو و نکو اخبارو څخه استفاده وکړې.

ګرځندوی د پورتنیو معلوماتی او تبلیغاتی مواد و په چاپولو او خپرولو سربیره د ۱٤ دوبې په میاشت کښې شاغلی ایرکمن امریکایی چه د ګرځیدو له فامتو لیکوالو څخه دی او هر کال په بیلو بیلو هیوادو کښې د خپلو ګرځیدو په باب د ګرځید و د یاد داشتو کتاب لیکی او د تور یزم موسسی خاصه علاقه ورسره لری راو بالله چه افغانستان ته راشی او دوه هفتی دی د ګرځندوی میلمه وی، نوموړی د غه بلنه په خوشالی سره ومنله او د خپلوا کۍ د تیر کال په جشن کښې کابل ته راغی او د کابل او د هغه د شاوخوا د جشن ټول مراسم، بامیان او غزنی ئی و لیدل او دیوې فوق العاده مثبتی نظریی سره بیرته ستون شو او په پای کښې ئی د ۱۹۶۲ کال د خپلو ګرځیدو په کتاب کښې یو مهمه برخه په افغانستان کښې د خپلو ګرځیدو په باب لیکلو ته و ټاکله او په ډیره ښه وجه سرئی زمونږ دهیواد محاسن، ښکلاوې او هغه پرمختګونه چه په برخه شوې ئې دی بیان کړیدې. ګرځندوی د دغه کتاب یوزرټو که په خپله په ډیرلږ لګښت د افغانستان د ګرځندوی په نامه په امریکه، کاناډا او اروپا کښې توزیع کړی دی، سربیره پر هغه نوموړې د نیویارک په یوه راډیو کښې هم د افغانستان په باب یو کنفرانس ورکړی او برسیره پر هغه ئی په سوبسی (نوی زور شرساتینګک) اخبار کښې په افغانستان کښې د ګرځیدو په باب په ۹۹ لو یو مخو کښې یوه په زړه پورې مقاله لیکلې ده.

د بامیانو هوټل له دی کبله چه بامیان سمدستی لومړې درجه تور ستیکی ځای دی نو ځکه د حکومت په صوابدید سره د هغه ځای هو ټل په ۱۳٤۰ کښې په ګرځندوی پو ری مربوط شو د هغه هوټل حالت هغه وخت زیات وران و پجاډو نو تیر کال و د اصلاحات پکښې و شول چه له هغی جملی څخه یو دادی چه د برښنا یوه پنځه و پشت کیلو واټه دستګاه هلته ودرول شوه چه هغه هوټل او شاوخوا ئې د برښنا له رڼا ئی څخه کار اخلی. دغه راز له دی کبله چه هغه هوټل اساسی او به نه درلودی یو وازې ددوبی

په دوه دریو میاشتو کښې به دلاسي بمبې په واسطه یوی و یالې ډیری کثیفې اوغیرصحي او به هوټل ته ور کولې .

ګرځندوی پدی بریالی شو چه یوه داسې چینه چه د هوټل څخه دیرش متره ښکته ده ومونده او داوبو کانکریټي مرکزي ورڅخه جوړ کړ او له هغه ځایه د نل او د برښنا د بمبې په ذریعه پاکې او پریمانه او به هوټل ته ورسوي او هم ئې په هغه هوټل کښې او ه خصوصي او دوه عمومي تشنابونه جوړ کړ یدی او هم یې به هوټل کښې د ننه یو عصري پخلنځی جوړ کړی او د هغې و د انۍ یه الحاقیه کښې ئې د جلا مو پری مینځلو د پاره یوه دوبي خانه هم ترجوړونۍ لاندې نیولی ده چه زر په زره په ګی کار بشپړ شي .

د بامیانو په هوټل کښې د ګرځیدونکو د مطالعې او د خپرونو او پوستکارډونو پلورلو د پاره یوه کړ کې جوړه شوی و ، چه په پوره اندازه ناول ، خپرونې او د افغانستان معرفي کوونکې نقشې د هیواد د طبیعي منظرو او د تاریخي آثارو له پوستکارډ و سره هلته لیږل شوی دی چه هره ورځ ګرځند و نکې استفاده ور څخه کوي .

**د ګرځندوی بین المللی روابط:** د غه موسسه د خپل تأسیس له ابتداء څخه د توریزم د رسمي مؤسسو د بین المللی اتحادیې چه د نړۍ ۸۸ هیوادونه ئې غړي دي غړیتوب لري او هم د آسیا د جنوبي سیمې د توریزم د منطقوي کمیسیون غړیتوب لري او د ګرځندوی رئیس د دغې اتحادیې په کالنیو غونډو او د هغه منطقوي کمیسیون په غونډو کښې ګډون کړی دی چه دغه غونډې په ۱۹۵۹ کښې د فلپین په مرکز مانیلا کښې په عمومي اسامبله کښې

په ۱۹۶۰ کښې د ارژنتاین په مرکز بوینس آیرس کښې .

په ۱۹۶۱ کښې د لویدیز المان په مونشن کښې .

په ۱۹۶۲ کښې د تایلند په مرکز بنکاك کښې شوی وی سر سره پر هغه په ۱۹۶۰ کښې د ګرځندوی په بلنه د آسیا د جنوب . د توریزم منطقوي کمیسیون په ۶ ابل کښې غونډه وکړه چه افغانستان ، هندوستان ، پاکستان ، نیپال او اندونیزیا ګډون پکښې کړیؤ او دالومړی ځل ؤ چه یوه د اسې جرګه چه بین المللی ماهیت ئې درلود په کابل کښې وشوه .

ګرځندوی د دغو بین المللی تماسونو په اثر سربیره پر دې چه د نړۍ د پرمخ تللي توریزم له موسسو څخه ئې مرستې او تجربې او په هیواد کښې ئې د توریزم د انکشاف په باب نوی مفکورې حاصلې کړی او په عین زمان کښې ئې په باندنۍ نړۍ کښې د افغانستان د معرفي په باره کښې د ګټورو او مثبتو تبلیغاتو د پاره ښه فرصت ومونده د افغانستان د ګرځندوی رئیس په ۱۹۶۱ کښې د توریزم د بین المللی اتحادئې د اجراییه کمیټې د غړي په حیث وټاکل شو او په ۱۹۶۲ کښې ئې د بنکاك په کنفرانس

کبنی دانکشاف دتخنیکی کمیسیون ریاست او دآسیا د جنوب د منطقوی کمیسیون ریاست په غاړه درلود . دګرځندوی دتاسیس له اول څخه د راغلوګرځیدونکو شمیر .

| کال | شمیر |
|---|---|
| په ۱۳۳۷ کبنی | ٤۳٦ |
| « ۱۳۳۸ » | ٦۲۱ |
| « ۱۳۳۹ » | ۷۸۰ |
| « ۱۳٤۰ » | ۳۳۲۹ |
| « ۱۳٤۱ » | ۲٦۹۸ |

لەپورتنی احصاییی څخه څرګند یږی چه افغانستان ته دګرځیدونکو راتګ ورځ په ورځ زیاتیږی او زمونږ په هیواد کبنی د توریزم اندستری ( صنعت ) مـخ په انکشاف دی .

### دتوریزم عایدات :

دتوریزم اندستری په ننني نړی کبنی دومره اهمیت پیدا کړیدی چه په زیاترو هیوادو کبنی ئی لومړیه یا دوهمه درجه عایدات تشکیلوي که چیرې د ترتیب شوی احصائیی له مخې دتورزم عایدات د بین‌المللی تعاملی سره سم د اڅکل لەمخې په ۱۹٤۰-۱۹٤۱ کلو کبنی په افغانستان کبنی وسنجوی نو معلومیږی چه دګرځیدونکو دراتګ لەدرکه په ۱۹٤۰ کال کبنی عایدات (۱۹۰ ۱۲۰۰۰) او په ۱۹٤۱ کبنی (۱۷۵۸۷۵۰۰) افغانیو ته رسیدلی ؤ .

### ددولتی مطابعو فعالیتونه :

ددولتی مطابعو ریاست دشهریار ی ذات په قیمت لرونکو ارشاداتو، د ترقی غوښتونکی حکومت په پاملرنه او دمطبوعاتو وزارت په مستقیمو همکارۍ یو سره دانکشاف پر خوا پراخه ګامونه اخیستی دخپل زیات انکشاف داسبابو او وسایلو برابر ولو په هڅه کبنی دی او تران ورځی پوری ئی وکولای شول چه سره ددی چه سا مانونه اووسایل ئی کم ؤ دخپل قدرت او توانی په اندازه ورځپاڼی ـجریدی متعددی‌مجلی ـ کتابونه ـ رسالی ـ دفترونه ـ جدولونه چاپ کړیدی‌او درسمی دایرو ملی موسسو او انفرادی مراجعینو لەنورو فرمایښتو څخه ووزی او مراجعین‌خوښ کړی .

لازمه ئی ګڼو چه لومړی هغه سامانونه اووسایل څرګند کړی شی چه دولتی مطبعی دمرکز دمطبعی او ولایتو دمطابعو زیات انکشاف دپاره وارد کړیدی .

۱: یوکا کسو ټایپ ماشین چه‌پخوا په زیاته بیه‌د امریکی دګاز له کمپنی څخه پیرودل شوی او پدې وختو کبنی‌وارد شوی‌ؤ نصب کړی شو. دغه ماشین ډیر ګړندی کار کوی اوپه‌یوه پلا اتەمخه اخبار چاپوی او په اتومات ډول ئی قاتوی .

۲: له دې املې چه د حروف چیني او سني سیستم له یوې خوا نژدې له منځه تللی او زیات وخت نیسي او له بلې خوا حروف چین د حروفو سره د تماس او د پښو درېدلو په اثر په رازراز ناروغتیاو اخته کیږي نو د دولتي مطابعو ریاست تصمیم نیولی دی چه حرفونه په لینوټایپ سره ترتیب کړي او له دغه امله ئې د لینوټایپ هغه څلور ماشینونه چه پخوا په بېلو شرطو پېرودل شوي دي نصب او په کار اچول شویدي او د دولتي مطبعې له کارګرو څخه اته تنه او پر تیران د لینوټایپ د کمپنۍ په لګښت تهران ته واستول شول او له دوومیاشتو زده کړې نه وروسته بېرته مطبعې ته راغلل او په کارئې پیل وکړ لکه چه سمدستي ځینې خپرونې د لینوټایپ په ماشین سره ترتیب او چاپ یږي او په نظر دی چه په نژدې وختو کښې د لینوټایپ شپاړسو نور ماشینو نه پد اسې شرطو چه په هرشان دولتي مطبعې ته سودمن وي و پېرودل شي پدغه ډول به په درېو کـلو کښې د حروف چیني سیستم بیخي له منځه لاړشي او د حروف چینۍ ټولې چارې به په لینوټایپ سره سرته ر سیږي •

۳ ـ له دې امله چه د مرکز او ولایتو مطبعې تقویه شي او زیات انکشاف وکړ ي د عروفي چاپ دڅو یورنګه ، دوه رنګه ، هاید لبرګ او د البرت فرانکتـا ل ما شینو فرمایښت ورکړ شوی دی چه له هغې جملې څخه پنځه و یشت ماشینونه مرکزته رارسېدلي او څلور نور به ئې هم ژر په ژره راورسیږي .

٤ : د زنکو ګرافۍ څانګې د پاره سربېره پر نورو وسامانواوادوا تو د عکاسۍ ۱۰۰ په ۱۰۰ کښې یوه لویه کمره مکمل الاسبابه پیرودل شوې ده چه په نصبولو سره به ئې د زنکو ګرافۍ څانګه زیات پرمختګ او انکشاف وکړي .

۵ : د کندهار ـ لښکرګاه ، هرات ، میمنې ، شبرغان ، مزارشریف او پروان د ولایتو د مطابعو دپاره علاوه پر پخوا نیو ماشینو یو یو نوی ماشین استول شوی او نصب شوی دی چه د هغو مطابعو اړتیاوې پوره کیږي او د ا د هغه پلان له مخې صورت مومي چه پخوا ترتیب شوی دی .

٦ : د دولتي مطابعو ریاست د ۱٤ د ویړې له میاشتې څخه تراوسه پورې د مرکز د مطبعې او د ولایتو مطابعو د پاره د چاپولو ۲۰۱ ـ ۲۷٦۵ کیلو راز راز رنګونه ـ ۳۹۷۸ تختې جست د چاپ ۱۲۸٤۰ اول کاغذ او د لیکنې ۹٦۳٦ ګډۍ او مړ یه درجه کاغذ وارد کړیدي سربېره پر هغو د طباعتي ځینې نور شیان او لوازم لکه یوه مکفی اندازه دوا ګانې ـ حرفونه ـ د حروفو جوړولو قالبونه ـ د ماشینو پرزې او نور وارد کړیدي .

۷: په دې کال کښې پرته د ولایتو له مطابعو څخه یوازې د مرکز د مطبعې واردات د اټکل له مخې (۱۳۱۰٦٦۸۱) افغانیو ته رسیږي ، د یادو لو وړ بلل شي دادی چه د دولتي مطابعو رئیس ښاغلی کندهاري د طباعتي ماشینو په بین المللي نندارتون کښې د ګډون له امله د لینو ټایپ د کمپنۍ په بلنه د ایران په لار لندن ته تللی ؤ .

ښاغلي کندهاري په لندن اودارو پاا و آسیا په ټولو ښارونو کښې داستوګنې په موده کښې د دولتي مطبعې د زیات انکشاف د پاره د ماشینو وارد ولو د فني پرسونلو د روزلو او داو پریترا نو د استخدا مولو او نوروپه بـاب د هغوځایو له ټولو مؤسسو سره خبرې اترې کړې دي چه له زیاترو څخه یې په زړه پورې نتیجې لاس ته راغلي . هیله شته چه د دې کال تر ختمیدلو پورې به د چاپ مدرن ماشینونه چه ټولو ته رارسیدلي او ټولو نوربه ئې زودې راورسیږي د نوې مطبعې په ودانۍ کښې چه د دې کال نه تر پښتو پورې د هیلمند د ناوې د دستګا له خوا جوړیږي وددرول شي او په کاربه پیل وکړي هغه وخت به دولتي مطبعه وکولای شي چه د ورځپاڼو جریدو اومجلو په وزګیو فرمایښتو سربیره د پوهنې د وزارت به پوره اندازه درسي کتابونه هم چاپ او د خلکو د نورو فرمایښتو په باب خپل خدمت ته دوام ورکړي .

## د باختر آژانس د نشراتي مؤسسې فعالیتونه:

د باختر آژانس مؤسسې د خبرو رسولو د ښیګڼې او انتظام له پاره کوښښونه کړي له یوې خوا ئې زیار ایستلی دی چه د خبرو کمیت او کیفیت زیات کړي او له بلې خوا ئې د مؤسسې د فني او تخنیکي وسایلو په مجهزولو او تقویه کولو کښې کوښښ کړی دی لکه چه سربیره پر دې چه په مرکز کښې د خبرو اخستو نکې دستګاوې تهیه شوي دي د خبر رسولو معتبرومؤسسو سره لکه د انګلستان ریوتر د امریکې اسوشي ټیتید پرس د لویدیز المان د ـ دپ ـ آ ـ د چین د سین هوا او د شوروي اتحاد د تاس سره تړونونه لري او د هغو آژانسونو له نویو خبرو څخه یې پرله پسې استفاده کړې ده .

د راډیو تیلي ټایپ ـ د تیپ ریکارډر ـ دستګاوې او اخیستو نـکي راډیو ګانې چه یوځوا ئې د باختر آژانس د پاره له المان سره تړون شوی و . واردې شوې او استفاده ورڅخه کیږي . او هم ولایتو ته د با ختر آژانس د خبر رسولو د شبکې وارد لو له امله د لویدیز المان له جمهوریت سره تړون لاسلیك شو .

باختر آژانس پدغې شبکه سره کولای شيچه په یو ـ آن کښې دهیواد (٦) ولایتو ته خبرونه ورسوي . دغه خبرونه په پیسم سره مخابره کیږي . هغه دستګاه به د منعقد شوي تړون له مخې دسې کال تر منې پورې کابل ته دا ور سیږي او په کاو به وا چول شي :

د داخلي خبرو په حقله باختر آژانس زیار ایستلی دی چه د خبرو په سیستم تجدید نظر وکړي او په ولایتو کښې ئې هم خو دائیمی نا مه لیکو نکي ګمارلي دي او دلایقو او تجربه و الا راپوترا نو په استخدامو لو کښې هم سعیه شوې ده . سربیره پر هغو د هیواد په شپږو مهمو ولایتو کښې د شپږو اساسي نماینده ګیو ته تاسیسو لو له امله اقدامات شوی دي .

انګلیسي ورځپاڼه کابل تایمز د ۱۳۳۹ په آخرو وختو کښې د دغې مؤسسې له خوا خپره شوه او تراوسه پورې پرله پسې چاپیږي .

په دې خانګه کښې د داخلي اسانتیاو او هم لانورو مؤسسو سره د ښه اسانه ارتباط له امله په مؤسسو کښې د تیلفون یوه ۲۵ لینه دستګاه نصب شوې ده.

د دغې موسسې ځو تنه فنی کارکوونکو د زیاتو معلوماتو حاصلولو دپاره خارج ته لیږل شوي دي چه ځو تنه ئې بیرته وطن ته راغلي او ځو تنه نور ئې لا تراوسه پوره د زده کړې په بوخت دي.

## د تیاتر د هنري موسسې اجراآت:

دغې موسسې د ۱۳٤۱ د سنبلې په میاشت کښې په (۰۰ر۰۰۰ر۱۱۰۹) افغانۍ لومړۍ پانګه په کار پیل وکړ د دغې موسسې اصلي هدف او غایه داده چه په افغانستان کښې یو ملي تیاتر او سینما رو پسکار او د هنر او تمثیل له لیاری اجتماعي سو به لوړه کړي.

د پوهنۍ ننداری رئیس ښاغلی عبدالرشید لطیفی د شوروی اتحاد هنرمندانو ته د ګلو ګیډۍ ورکوی.

دغی موسسی دفنی او اداری پرسونل له تشکیل نه وروسته په فعالیت لاس پوری کړی د تیاتر دفن دتدریس دپاره ئی یو کورس پرانیست او اوس شل تنه زلمیان په دغه کورس کښی په نظری او عملی توګه دتیاتر او سینما دبیلو بیلو شقو په زده کړه بوخت دی.

ددغی موسسی ممثلین اوممثلاتی داسی ذوق او استعداد لری چه پهدایمی ډول په موسسه کښی شامل شوی ددغو ممثلانو دتعلیم او کار پروګرام دتیاتر په هنر کښی د پرمخ تللو هیواد په سویهدی اوهیله شته چه زر به زره دغه زلمیان پدغه هنر کښی د پرمخ تللیو هیوادو پهشان ډکرته راووزی په نظر کښی دی چهددغی موسسیممثلان او ممثلاتی نورهم زیات شی او بااستعداده کسان دهنری تعلیم اوښودنی دپاره باندنیو هیوادوته واستول شی.

دتیاتر هنری موسسه غواړی چه ګران وطنوالوته دنړیه ډیری ښی ډرامی معرفی کړیاو پدغه ډول دوطن زلمیان دښو درامو لیکلوته تشویق او په هیواد کښی دتیاتر سویه لوړه کړی ، همدا وجه ده چه ددغی مو سسی لو مړ ی درام ښیښی لو بی «بازیچهای شیشه یی» دتنسی ولمیزاثرو.

دوهم ډرام دغو یی په میاشت کښی په کابل ننداری کښی وښودل شو د «هوس در پای نارون» ډرام چه دامریکا ئی نامتو دراماتیست یوجین یو نیل اثر ؤ چه دننداره کوونکو دمینی او ذوق په اثر بیشلشپی دوام وکړ او داخلی او خارجی جریدو او لیکوالو ئی تبصره اوښههره کلی وکړ او پدغه باره کښی دموسسی له پلوه یوه وړه نشریه هم خپره شوه ددغسی نامتو درامو تمثیلول یوډېر ګران کار دی خو لهدی امله چه دتیاتر دهنری موسسی ممثلان دګرانو ډرامو تمثیلو ل زده کړی هغه درام ښاکل شوی دی.

دتیاتر هنری موسسی دغه ډرامی دڅګګابښ لهمیاشتی څخه دوهدی ترمیاشتی پوری اودجشن په ورځو کښی ښودلی دی.

۱: د(همه فرز ندام) ډرام چه دامریکا ئی نامتو لیکوالی آرترملر اثر دی.
۲: د(خانهٔ ګدی)ډرام دډنمارکی نامتو لیکوال هانرك ایبسن اثر.
: دوه موزیکال پروګرامونه په بیلو بیلو نیټو.

دتیاترهنری موسسی خپل کوښښونه یوازی داکترو او اکتر سو یه روزلو کښی نهدی محدود کړی بلکه هدف ئی دادی چه پهآینده کښی دهیوادو دډولو هنری جریانو مرکز شی اوس ئی یوه موسیقی خانګه پرانیستلی ده چه یوشمیر زلمیان په آرت او موسیقی بلد کړی اوهیله شته چه پهآینده کښی نورداسی شقوق هم پرانیزی چه په آرت پوری مستقیم ارتباط لری چه پدغه وسیله دزیاتو زلمیانو دذوق او استعداد دروزلو او انکشاف وسایل تهیه شی.

«پای»

(د۱۲۰مخ پاتې)

سږ کال داساسي تعلیماتو دتعقیب دپاره کندهارته ولیږل شو، ددغه کورس شاګردان دمرکز اوولایاتو دښوونځیو دنهم ټولګي فارغان دي چه تعلیمي دوره یې دری کاله ده دمخصیصنو له خوا په عصري ډول داسولي تدریس لاندې نیولې شوی دمالیې وزارت اودمعارف دوزارت دموافقې په نظر د غوفارغانو ته د۱۲ ټولګي معادل مسلکی شهادت نامې ورکول کیږي دمحکو داحصاییې او دفورمو تثبیت ترتیب او توزیع چه پروسږ کال پیل شوی و تر اوسه پورې ادامه لري، دغه ټاکلي فورمې دمالکانو له خوا دخانه پری نه وروسته دملکیت دتصفیې دوا یروته سپارل کیږي دملکیت دتصفیې ریاستونه هم چه دهیواد دمحکو داحصاییې او ثبت د پرمخ تګ مهم کارکنان دي سږ کال په هر ولایت کښې تشکیل شوي دي.

داجناسو دتهیې او توزیع سیستم په عصري شکل دعمومي تحویلخانو څخه په مرتب او منظم ډول ددولت دجنسي حساب دانسجام لوی او مهم رکن دی. دهمدې کبله دمالیې وزارت ددې امر دانجام دپاره په فوري اقداماتو لاس پورې کړی. د تحویلخانو سره ګډ یوه عمومي تهیه خانه په عصري ډول چه ددو ایرو دضرورت وړ اجناس پکښې هر جنس ځای په ځای ترتیب او تصنیف شوی وی منځ ته راولی چه په هغې کښې هرجنس دخپل قیمت د توضیح او تشریح اندازې او دجنس دوضع او محل سره معلوم وی او دمراجعې په وخت سمدستي نیازمندو دوایروته ورکول کیږي ددغه ترتیب. رعایت په نورو ټولو فرعي تحویلخانو کښې هم کیږي چه دټاکلو فورمو له مخې بې له ځنډه، اجناس ورکړی شي د پخوانیو حسابونو تصفیه او دموجوده اجناسو تهیه او توزیع دتهیې دګدامونو په مرتب ډول داجرا لاندې نیول کیږي او دځینو نورو ضروري اجناسو چه دخارج نه تهیه شي اقدام شوی دی. لکه چه په دې باره کښې د۱۳٤۱ کال دسنبلې داول نه د۱۳٤۲ کال دسرطان تر پای پورې ۲۷۲ قلمه سامان تعمیراتي مواد البسه او دقرطاسیې تجهیزات، خوراکي مواد، دری نیم باس هنګراو ددوایرو دضرورت وړ نور مختلف اجناس چه مجموعي قیمت ئې (٦٠٧٢٦٠٦) افغانۍ کیږي توزیع شوی دی او ۵۷ قلمه نور تعمیراتي مواد افغاني ساختماني دستګاه ته ورکړی شوی دی په همدې شان دذیعلاقه دوایرو او موسسو سره (۱۳٤٦٨٨٠٣) افغانۍ (۲۰۳۸٤٤) کلداری (٤٧) پونډه د پخوانیو حسابو له مخې رابرسیره او داسنادو په موجب ئې معاملات تصفیه او مجرا شوی دی او (۲٤۲٤۳۱) افغانۍ چه په خلکو باندې باقي وی تحصیل او ددولت خزانې ته تحویل شوی دی د پخوانیو کلونو څخه راوسه پورې ددولت پوشیر ډېری پیسې دصناعتي تولیداتو دستګاو او موسسو دتدوير دپاره چه عمومي منافع لري سرمایه ګذاری شوی ددغو موسسو ځینې کلې قسمتونه او بله برخه ئې ددولت په پیسو دایرشوی نو ددې کبله دولت ددغسې موسساتو نه منافع او مالیات اخلي نو بنا په دغه دبیلانسونو دتنظیم مراقبت او د دولت دټولو پخوانیو او سنیو منافعو ددولت دداینو تصدیو دمدرك څخه تحصیل او دټاکلو فورمو او دهغو دتوحید او دبودجې دټولو تصدیو مراقبت. دنفع او ضرر پاملرنه او په بیلانسو بررسی

اونورو دغسی مطالبو اخستل شوی ړپوټونه چه دهغوی د حسابونو و بررسی دپاره ګی
چدی اقدامات شوی دی اودتصدیو دچارو دنظم او نسق دپاره وارسی اودجنسی او
نقدی شتمنۍ دحساب دوضع څرګندولو او په همدی شان ئی د تو لید ټا کلی فور می
دمتخصصینو په مرسته وضع شوی چه دمالیي دوزارت دتصد یو دعمومی مدیریت له خوا
په دغه باره کښی جدی پاملرنه شوی ده. په۱۳٤۲ کال کښی(۲۵۰) ملیونه افغانۍ ددولت
ددا ینوله درکه تحصیل او دبودجی په تصد یو کښی پیش بینی کړی چه امید دی
د پاملرنی اوجدی مراقبت په اثر پیش بینی دحقیقت اوواقیعت عملی جامی واغو ندی
ترکوم ځای پوری چه ممکن و داکثرو تصدیو څو کلن بیلانسونه ترتیب او دغور او
تدقیق د پاره دمالیی وزارت ته استولی شوی دی په۱۳٤۱ کا ل کښی تقاعد دبودجی
لګښت چه (۱۵۸٤۷۷۷۲ر۹٤) افغانۍ په پخوانیو کلونو پوری څوچنده زیاتی دی دغه
ډیروالی پخپله کله نا کله دتقاعدمالی تکلیف ښیی. سرۀ ددغه بیاهم دمالیی وزارت
کوشش کړی دی چه په ممکنه طریقو دتقاعدخزانو د پاره دعوایدو درك پیدا کړی چنانچه
د۱۳٤۱ کال دسنبلی داول نه د۱۳٤۲ کال داسد تر پای پوری د تقاعد دخزانو عوایډ
(۳٦٤۵۲۷۲۸) افغانۍ دی او دبلی خوا د ۱۳٤۱ کال دسنبلی داول نه د۱۳٤۲ کال
دسنبلی پوری د(٤٤۷) کسو متقاعدو مامورینو اودهغوی دوارثانو چه دقطع علاقی
په ډول دایمی معاش خواره دی ،

استحقاق ئی تراجرا لاندی نیول شوی، دی او په دی ډول حسابونو دمتقاعدینو شمیر
چه تراوسه پوری د تقاعد حق دخزانو څخه اخیستی دی٤٤۷ کسه نورمتقاعدین پری زیات
شوی دی، سږ کال دمالیی دوزارت زیاته توجه دغلی اوګـدامونو دتهیی او ډوډۍ
دچارو تنظیم ته معطوف کړی چه داحتکاراوقحطۍ دمخ نیوی د پاره دشوروی اتحاد
نه ۲۵ زره ټنه غنمو او داتازونی نه د ٤۸ زره ټنو غنمو دتهیی او برابرولو اقدام
شوی دی اوکوم بل اساسی قدم چه دغلی دساتنی د پاره شوی هغه دمرکزی سیلو تشبث
او توسعۍ نه عبارت دی چه د ۳۰ زره ټنو په ظرفیت دبسکوټ اومکرونی جوړولو دوه
دستګاهو تاسیس چه په ۱۳٤۱ کال ئی مقدماتی کتنی اوسروی پای ته رسید لی وی او
په همدغه ډول په ولایاتو کښی دقحطۍاوداحتکار دمخ نیوی په غرض دیو شمیرعصری
ګدامونو په ساختمان په لاندنیو سیمو کښی دغنمو دذخیری د پا ره پری لاس پوری
شوی دی.

په خان آباد کښی یو ګدام
په مزار شریف کـښی ۲ «
په بغلان کښی یو «
په شبرغان کښی یو، «

په ننګرهار کښې یوګدام
په میمنه کښې یو »

د مرکزي سیلو د ذخیرو نه داوړو و یشل او هرډول کلچو او ډوډیو توزیع ئې په بازارونو کښې دمواز نې دساتنې او دعامو دوفا سره په زړه پوری مرسته کړې ده

دمالیې وزارت دتیرو کلو په شان کوشش کوی چه دمتخصصینو دتجربو او نظریو له مخې داسې مناسب تشکیلات جوړ کړی چه له یوی خوا د ر وانو ور ځنیوانکشافاتو دزیاتید ومقتضیاتو ترلازمې اندازې پورې دوظایفو له ایجاباتو سره اقتصادی اومتناسب وی او له بلې خوا دفنې او اختصاصی کارونو زیاتوالی په یو شمیر تعلیم یافته ؤ افرادو پورې مستلزم وی نو له همدی امله دمالیې وزارت د ۱۳۴۱ کال له سنبلې نه د ۱۳۴۲ کال داسد تر آخره پورې څومره ئې چه امکان درلود په اداری انتظام او اصلاح کولو کښې ئې کوشش کړیدی او د دولت دمالی، مامورینو په رسولو او د تنویر او تعلیم په لار کښې ئې دوڅې دمیاشتنې مجلې په خپرولو کښې له هغوی سره لازم کوششونه کړیدی، په اداری، ګمرکی، املاکی او حسابی عوایدو او نورو فقرو کښې غور شو یدی او د ۱۳۴۱ کال د ۱۶۲۱ د سنبلې داول نه ۱۳۴۲ کال د سرطان تر پای پورې دیوی خوا اداری، ګمرکی، املاکی، حسابی عوایداو نور مختلف فقرات چه دغور او نظر لاندې ؤ دمالیې دوزارت په مجلس کښې حسابی، ګمرکی، املاکی، قاچاقی مالی او اداری دهرډول قضایاؤ څخه (۷۰۱) فقری دغور او څیړنې لاندې راغلې چه دفیصلې نه وروسته ئې خپلو مراجعو ته خبر ورکړی شوی دی.      (پای)

(د ٥٦٢ مخ باقی)

## د پوهنتون فعالیتونه

۱۳ :- په ۱۳۴۲ کال کښی داوتنو نه زیات محصلین او اسیستانتونو نه او دری کسه سکالر شپ او فیلوشپ استادان بهرا بر شویدی .

۱۴ :- د کیمیا، زولوجی او جیالوجی په برخو کښی درابطة تو اهمیت د هیئتو په مرسته یو لړ علمی تتبعات جریان لری .

## د حقوقو پوهنځی فعالیتونه :

په وروستیو کلو کښی مخصوصاً د مملکت د پنځه کلن پلان د منځ ته را تللو څخه وروسته د دغه پوهنځی شاملان او فارغ التحصیلان مخ په زیاتیدو دی . لکه د دغه پوهنځی د لومړی ټولګی د نوی شاملینو شمیر چه په تیرو کلو کښی به له ٦۰ تنو څخه زیات نه و په ۱۳۴۱ کال کښی ۹۹ تنو ته ورسید چه په همدی قیاس او ترکیب د پوهنځی د ټولو شاګردانو مجموعی شمیر چه پخواله ۲۰۰ تنو څخه زیات نه و په دغه کال کښی ۲۵۷ تنو ته رسیدلی دی او هغه فارغ التحصیلان چه د ۱۳۴۱ کال په پای کښی مربوطو ځوا یو ته معرفی شویدی شمیر ئی ۷۱ تنو ته رسیږی .

دغه شان د ۱۳۴۲ کال د نوی شاملو شوو ز ده کوو نکو شمیر چه د حمل د ۱۵ نیټی څخه دغه پوهنځی ته ور معرفی شویدی په پنځه کلن پلان کښی د تثبیت شوو شمیر څخه زیات او شمیر ئی (۱٦٥) تنو ته رسیږی او د ټولو ټولګیو سرجمع ۴۰۲ زده کړو ته رسیږی . دو یمه موضوع د کیفی شرایطو ده چه

د کابل د پوهنتون د جمنازیوم د نوی ودانی یوه برخه

پوهنځی همیش هغه ته توجه کړی او د عمل سره د علم دار تباط لپاره ، زمونږ په مملکت کښی د هغو نو یو شرایطو دا یجاباتو په نظر کښی نیولو سره چه تازه د انکشاف او رشد د مراحل طی کوی ځینی نوی مضامین لکه د افغانستاد تجارت حقوق په افغانستان کښی دعامی اداری ، په افغانستان کی داقتصادی انکشاف دافغانستان بین المللی مناسبات او او سنی افغانستان ئی په خپلو پروگرامو نو کښی شامل کړیدی.

له تولو څخه مهمه دفرانسی دسوربون دحقوقو د پوهنځی سره دکابل دحقوقو د پوهنځی د توامیت او یوځای کیدو موضوع ده چه له ٤٤ کالو څخه را په دیخوا خپل انکشافی مراحل طی کوي او ددغه رابطی په اساس د پاریس دحقوقو پوهنځی تعهد کړیدی چه دامکاناتو په چوکاټ کی علمی هرقسم وسایل دحقوقو د پوهنځی په اختیار کی کیږدی لکه چه په ١٩ مادوکی د توامیت او یوځای کیدو د موافقت نامی لایحه تسو ید شوی او خپل وروستی مراحل ئی داسی طی کړیدی چه د هغه په هره ماده کی د دواړو پوهنځیو دعلمی همکاری مطالب په کی پرا ته دی .

بله موضوع چه د پاریس دحقوقو د پوهنځی سره دکابل دحقوقو د پوهنځی د یوځای کیدو په نوی موافقت نامه کی ځای شوید ه ، هغه د حقوقی مطالعو د یو مرکز تاسیس دی چه د پوهنځی په خواکی داسی پیش بینی شوید ه چه د افغانستان په ټولو حقوقی رشتواو تقنین کی دحقوقو پوهنځی خاص اهمیت پیدا کړی او استادان د داسی موضوعگانو په تحقیق کی علم دعمل سره یوځای کړیاو خپل تدریس ته یو ژوندی شکل ورکړی دحقوقو د پوهنځی دعمده نیازمندیو څخه یوه داده چه افغانی استادان په پوهنځی کی نه وو چه دغه نقیصه له څو کلو را په دیخوا په جدی طور سره د نظرلاندی نیول شوی او دعلمی کادر په تأسیس سره دافغانی استادانو ١٥ تنه په علمی خاصو درجو خپل انکشافی مراحل طی کوی لکه چه د تدریسی غړو زیاته برخه خارج ته لیږل شوی او دزیاتو زده کړو څخه ور وسته بیر ته وطن ته راستانه شویدی. دغه شان څلورتنه تر او سه پوری دحقوق جزا ، د بین المللی مناسباتو تاریخ او عامی اداری په برخو کی په خپلو عالی او لوړو تحصیلاتو بوخت دیچه دراتلو څخه ورو سته به خپل علمی اوملی وظیفی لاس ته راوړی .

دافغانی استادانو نه علاوه چه د پوهنځی په علمی کادرکی شامل دی . پنځه تنه خارجی پروفیسران او دغه شان داحضاری او ورځنی حق الزحمی لس تنه استادان د بیلو بیلو مضامینو په تدریس بوخت دی .

یقین دی چه دحقوقو پوهنځی به د څو کلو د انکشاف نه وروسته د خارجی پروفیسرانو د استخدام او دغه شان داحضاری استادانو څخه بیخی بی نیازه شی .

بله موضوع چه په علمی محیط کی زیا ته توجه ځانته گرځوی هغه د نشراتو او کتابخانی موضوع ده چه دحقوقو پوهنځی د پوهنځی دشاگردانو د معلوماتو د زیاتولو د پاره په هره میاشت کی دحقوقو مجله خپروی . دحقوقو مجلی له هغو ټولو تغیراتو سره چه په دی

وروستیو وختو کی ئی کړیدی منجمله په ۱۳۴۱ کال کی ئی پهشمیرکی زیاتوالی راغلی او کیفی تغییر ئی هم کړیدی .

د پوهنځی کتابخانه د تاسیس لهوخت څخه د نورو کارو سره یوځای مخ په وړاندی تللی خو د ۱۳۴۱ کال نه راپهدی خوا په هغه کی زیات تحولات راغلی دی ،لکه دهغه دعلمی کتابو نوشمیر څهاوس (۸۰۰۰) ټوکو ته رسیږی او دغهشان د کتابخانی تر څنګ یوه منظمه قرائت ځا نه هم جوړه شوی ده چهزده کوونکی خپل د فراغت وخت هلته تیر کړی .

## د طب د پو هنځی فعالیتونه :

دطب پو هنځی دخپل تدریس سټاف دنیمګړتیا بشپړ و لو له امله د ۱۳۴۱ کال لس تنه فارغ التحصیل ډاکټران د کنکور له تیرو لو او لهبریالیتوب نهور وسته د کموت په کورسیو کښی مقرر او شامل کړی او د لیون د پو هنتون د طب له پو هنځی سره ئی فرهنګی تړون وکړ چه دهغه پراساس به پهنږدی وختو کښی دهغه پو شمیر پروفیسران کا بل ته راشی او د لیون د پوهنتون دطب د پوهنځی تر لاربښودنه لاندی بهافغانی زده کړونکی ور وزل شی او علمی سویه به ئی جګه شی اودطب علمی تحقیقا ت او مطا لعی به ئی پراخهشی .

سربیره پرهغو ئی دډاکترانو د پوهی زیاتولو اودطب دعلم پهرشتو کښی دهغوی دزیاتومطالعو لهپاره بهاتلس تنه ډاکتران دطب په بیلو بیلو رشتو کښی د باندینو هیوادو ته استنولی دی چهخپلی زده کړی پهمربو طو رشتو کښی بشپړی کړی او له علمی ښو بشپړومعلو ماتوسره هیوادته راشی او به خد مت کښی شامل شی .

دطب پو هنځی دخپل فنی پرسو نل بشپړو لو له امله دوه ناریینه او د ښځو نرسنګ ښوو نځی لری چه هرکال یو شمیر ز لمیان ور څخه فارغ او د نرس پهصفت د پیلو مه لری او د پوهنتون د روغتونو پهچو کاټ کښی پهخدمت کښی شا ملیږی سږ کال لههغه ښوونځی څخه ۱۴ تنه نرس فارغ شویدی دمربوطو لابراتورو دمجهزولو دپا ره یو ه اندا زه لابراتواری ضروری سامان او لوازم ئی له یونسیف څخه لاسته راوړی چه دلابراتوار استفاده ورڅخه کوی .

دطب پو هنځی پهدی بریالی شو چهدنړی د روغتیادموسسي لـه لیاری څخه د پتالوژی پروفیسر د یوڅه مودی د پاره د پتالوژی په سرویس کښی استخدام کړی هغه پر و فیسر له یوڅه مودی راهیسی کابل تهراغلی او د پتالوژی پهلابراتو رکښی په کارلګیا دی .

### دلا براتوارو پهبرخه کښی :

د یوه کـا ل په مو د ه کښی دغه لابـرا تـوار ونه نـوی تـأ سـیس او په کا ر لو یدلی دی .

### د تشریح لابراتوار :

لهدی امله چه سل تنه زده کوونکی پهآسانی سره وکولا ی شی د بد ن دعضو یت

د کابل پوهنتون د جمنازیوم د نوی ودانی یوه برخه

جوړونه له نژدی څخه تر مطالعه او تدقیق لاندی ونیسی او علمی درسونه په لابراتوار کښی زده کړی. نو د دغه لابراتوار د دواړو او تجهیزاتو په برخه کښی لیکه د خونړیو لابراتواری مجهزو خونو جوړولو او د زده کوونکو د زیاتی استفادی دپاره د یوه موزیم تهیه کولو ته هڅه شویده چه له هغی جملی څخه د یوه داسی امفی عصری تیاتر په کار اچول دی چه د تطبیقاتی درسونو زده کولو دپاره سل تنه زده کوونکی پکښی ځای شی.

دغه راز د عملی جراحی د تشریح په ساحه کی د استفادی دپاره په دغه امفی تیاتر په منځ کی د کاشی یو لوی میز هم ایښودل شویدی دغه رنګه په بله لویه درسی خونه کی د کاشی اته تطبیقاتی میزونه له عادی څراغونو سره د دوه هم قولګی دپاره چه لس ستولونه هم لری ایښودل شویدی.

د تشریح د لابراتوار نه علاوه په نظر کی لری چه یوه د عکاسی څانګه چه د تشریح په برخه کی له مهمو اساساتو څخه ده تهیه او په کار واچوی چه لومړنی چاری ئې شروع او په نژدی وختو کی به دغه څانګه هم دائره کړی.

## د حیاتی او طبی کیمیا لابراتوار:

د دغه لابراتوار په وسیله سربیره د وینو، ادرار او نورو هر راز معاینو علاوه چه پخوا هم اجرا شوی وله یوه کاله راپدی خوا د وینو د ههیو ګلوبین او پروتین په تیره د بیتوګلوبین او ترانسفرین چه د وراثت د علم حیاتی کیمیا او بشری علم له مخی ډیر اهمیت لری کتنی او تدقیقات او هم د ځګر د آفتو د تشخیص دپاره د الکتروفوریزمعاینی کیږی

دطب پوهنځی تیرکال پدی بریا لی شو چه ددغه لابرا توار دسا مانو اولوازمو دبشپړولو دپاره دامریکی دنیشنل سیانس فونډیشن له موسسی څخه شل زره دا لره مرسته لاس ته را ولی لکه چه ددغه سامان یوه برخه را رسید لی ، نصب شوی او په کار اچول شوید .

پدغه لابراتوارکی سمد سنې دوه دیرش راز رازمعاینی او دتجزئی عملونه شویدی اود ۱۳٤۱ کال دوړی له میا شتی نه تراوسه پوری ئی دپوهنتون دروغتونو څخه لورزره بیلی بیلی تجزئی اومعاینی اجرا شوی او یوشمیرمهم سامانونه او آلات تهیه شویدی .

## دبا کټرلوژی لابرا توار:

لدی کبله چه هرکال هغه پوهنځی دزده کړونکو دزیاتیدو په اثرمخ په انکشاف او پراختیا کی دی نود طب د پوهنځی په لابرا توا ری عصری وسایلو ئې دمجهزکید لو دپا ره ستر گامو نه اخیستی د ی .

۱- دزده کړ ونکو دعملی چا رو دپرمخ بیولو دپا ره دځلورو قوی او حسا سو مکروسکو پو تهیه کول .

۲- داوبو دتقیطردا سی آله ئې تهیه کړی او په کار ئی اچو لی ده چه دلابرا توار له تیا په ښه وجه لری کولای شي .

۳- یوه اندازه دا سی کیمیا وی موا د اورنګ جوړولو اوزرعی وسا یطو دپاره راز رازدرملونه ئې پیرودلی دی چه دمکروبو او انتانی پرازیتو په تشخیص کی کا ر ورځنی اخیستل کیږی .

٤- داسی زیات شمیرلابراتوا ری حیوا نات چه دناروغتیا و په تشخیص کی کا ر ورځنی اخیستل کیږی رو زلی د ی .

۵- دلابراتوار په زیاتومجهزکولو او نوی وداني ته ئې په لمړیدولو کی چه د پوهنځی داوسنۍ ودانۍ ترمخ جوړه شویده وهاقدامات کړیدی .

سربیره پردې دغو لابرا توا رو په لسومیا شتو کښی دعلی آباد دښځو دروغتو نو دبیلو بیلو سرو یسو دنا روغانو او نورونا روغانو یو نیم زر بیلی بیلی لابرا ری معا ینې کړیدی او (۸۹) لابرا توا ری حیوا نات د نا ر و غیو دتشخیص له امله تجزیه او په مرضی موا دو تطبیق کړ شویدی .

## پتا لوژی لابرا تو ار :

پدغه لابراتوارکی د ۱۳٤۱ کال دو ړی دمیا شتی تر اوسه پوری شپږسوه بیلی بیلی پتا لوژی معاینی شویدی چه ددغو بیو سپی ګانو څخه یوه برخه دابن سینا ، زیږنتون مرکزی قوا له روغتونو اودعد لی طب له لابرا توا راودکابل دپوهنتون له رغتو نو څخه را رسید لی د ی .

چه د دغو بیوسپی گانو نتیجې او رپوټ له پتا لوژی تشخیص نه وروسته مربوطو څانگو ته لیږل شویدی .

سربیره پرهغو دغه څانگه‌یدی یریا لی‌شوه چه دهستو لوژی درسود پاره د درسی سلایدو پنځوس بکسونه او دبتا لوژی تد ریس د پا ره د درسی سلا ید و پنځوس بکسونه چه ټول لس‌زره، درسی‌سلایدونه‌کیږی تهیه‌اودتطبیقاتو له‌امله‌ئې طلا بوته ورکړی‌دی.

دغه رازد پوهنځی دطلابو دکارد پره‌ختگ او په تطبیقاتو کی دزیاتو آسانتیاؤ برا برولو دپاره له امریکې‌څخه دغه لا برا توارته یو شمیر نوی مدرن ماشینونه اوسامانونه پیرودل شویدی .

## فارمکولوژی لابراتوار :

دغه لا برا توار د پوهنځی د طـلابـو دنظری تـد ریس پـروظیـفه عـلاوه پـوا ـړ توکسیکو لوژی معاینې هم دنا روغانو اوهغوئې یو په څکر اوممده کی چه هغه ئې ی دهد لی طب دڅا نگی له خوا د پولیسو په وا سطه دوی ته سپا رل شوی‌وو د سمی موا دو موند لو له امله وکړی اوسربیره په هغوئی د ملی دفاع دوزارت اودپوهنتون د روغتیا دموسسو د درملتونو ورلیږ لیودرملو تجزیه ئی هم اجراکړی‌یده .

دغه رازیودتوکسیـو لـوژی اوځـو نـور لا بـرا تـوا رو نـه ددی څا نـگـی دستاف علمی تجربو دپا ره مجهزاوپه‌کاروا چول‌شول. دڅانگی‌دستاف په شمیرکښی زیا توالی راغلی اود ۱۳۴۱ کال له‌فارغ التحصیلا نوڅخه یو دطب ډاکتر هم پدغه څانگه کښی و نیول شو او په‌نظر کښی دی چه د ۱۳۴۱ د تعلیمی کال دستاژ له ختمو لو نه وروسته به دری تنه‌نورهم په‌دغه څانگه کښی په کار بوخت شی لکه‌چه دستاژ دری تنه ډاکتران له‌هم‌دغه امله له‌او س‌څخه پدی څا نگه کښی کاندی یدشوی اوپه ستاژ لگیا دی .

## عدلیه طب:

دغی څانگی هم دنظری درسو په اړخ کښی چه‌له‌پرو گرام سره سم ئی‌په‌ټو لگی کښی سر ته رسوی داتو پسی گا نو یولی معاینې‌چه‌دا منبی له‌قوماند انی، ترا فیك اوعدلی محاکمو څخه ورته رسید لی دی کړی دی. د زیات ضر ورت له مخی چه دطب پو هنځی ئی‌دغی څا نگی ته لری په نظر کښی د ی چه د غه لا بر اتوا ر ته تو سعه و ر کـړی .

لکه‌چه له‌همدغه امله‌ئی ددغی څانگی‌یو تن‌تد ریسی ستاف د لوړو تحصیلاتو د پاره خارج ته‌استولی اوداسی په‌نظر کښی‌دی چه د پو هنځی څو تنه نور فارغا لتحصیلان‌هم د د غی څا نگی په بست کښی و نیو ل شی .

## فیزیو لوژی لابر اتوار :

دغه لا براتواردفیز یو لوژی له‌نظری تدر یس‌نه علاوه‌چه‌لومړی اودوهم ټولگی ته‌ئی

ورکوي يو لړ علمی تطبیقات هم دزده کړونکو پهواسطهدمربوطولابراتوار ودد رس په ساحه کښې کړی دی .

دغی څانګې پهدی کال کښېدکابل دپوهنتون دروغتون دناروغانو اولهروغتون څخه دباندی ناروغانو لهپنځو سو ونه زیاتی الکترو کار دیو ګرام اومیتا بو لیزم معاینې اجراکړی دی. سربیره پهدغه ددغی څانګې دستاف لهخوا اته علمي رسالی تهیـه اوخپري شـوی دی اوهم ئی یـولړ علـمی مضمـونـونه دافغان طـبـی مجـلی ته تهیه کړی یدی .

## وقایوی طب :

دغی څانګی سربیره پهدغه چهد پوهنځی پهبیلو بیلو ټولګیو کښې ئی د وقایوی طب تدریس سرتهرسولی دی دپروګرام اوتقسیم اوقات لهمخی لکهدکلیو د انکشاف اودکو چنیانو اومیندو اونورو صحی مرکزود پروژو لهقبیله دښار په صحي پر و ژو کښې دستاژ دلارښودنی پهبرخه کښې خدمت کړیدی،سربیره پهدغه مربوطو لابراتوارو دتو سعی اوانکشاف پهبرخه کښې هم کلك اقدامات کړیدی ، دآسیا جنو بی ختیزی سیمې دمنطقوی سیمینار دپاره اودپوهنی دزده کړونکو د روغتیا کنترول دد غې څانګی لهخوا لیتو څخه ګټهل کیږی .

## کتابخانه :

دطب دپو هنځي کتا بخا نه چهاوس پهبیلو بیلو انګلیسی، فرا نسوی، الما نی ، ترکی، عربی، پښتو اوفارسی ژبو لهاتوزرو ټوکو نه زیات کتابو نه لری د هیو اد یوه ډیره علمیمجهزهاوعصری کتا بخانه ده او دکتا بداریهعصریسیستم سرهمجهزه ده دطب پوهنځی دغه کتابخانه دکابل دپو هنتون دمرکزی کتابخانی پههمکاریه دیوه متخصص کتابدار ترنظر لاندی پهښوونی اصولو سره کتلاك کړی چه استافان اوزده کړ و نکی استفا ده ورځخه کو ی .

## دخپر ونو مدیر یت :

ددغه مدیریت وظیفی د افغان دطبی مجلی پهنامه دیوی علمی طبی مجلی لهچاپ اوخپرو لو نه علاوهچهدهرودریو میاشتو پهآخر کښې خپریږیددرسی کتابو چاپ اوخپرول اودکنفرانسو لهقبیله دیو شمیر خپرونو بولی کا بی هم پهغاړه لری او ددفتر داری یوهزیاتهاندازه راز راز پاڼی اودطب دپو هنځی دبیلو بیلو سرو یسو دضرورت پهاندازه پاڼی لکهدتو دوخیددرجی کورپونه، دلابراتواراومعاینو پاڼی، دپوهنتون دروغتونو دناروغانودمشاهدی پاڼی، رسمی لیکونه،استعلا میی ، بودجوی پاڼی ، محاسبوی پاڼی تدریسی جدولونه لکهدزده کړونکو دحاضریجدولونه، ددرسو دمعیارپاڼی اودزده کړونکو دهویت دکارتو دستاژ اونوری پاڼی ددغی څانګی پهواسطه چاپ اودکار اخیستلودپاره ورکړشویدی. دغهراز د۱۳۴۱کال دوهمی دمیاشتی لهاول څخهتراوسه پوری پنځه د یرش ټوکه درسی کتا بونه چهد هرټوك منځنی حدئی (۲۰۰) مخه دی

او د پوهنې کابې پهٔ توګهٔ څو بیل بیل کنفرانسونه د دغې ځانګې پهٔ واسطهٔ چاپ شویدي.
او د طباعتي ورځ پهٔ ورځ ابتیا لهٔ مخې پهٔ تیر کال کښې د ګستتنر یو نوی ماشین لهٔ یوه بل ماشین سره چهٔ لهٔ ورتهٔ وه د دغې ځانګې د پاره پیرود ل شوې دی سربیره پهٔ هغو دوه دقایپ ماشینو نهٔ هم دغې ځانګې تهٔ ور کړ شوي دي.

دطب پوهنځي ګړلای شوي چهٔ د افغان طبي مجلې چهٔ د هیواد یوه طبي علمي مجلهٔ ده پهٔ خپرولو سره د افغاني مجلې پتالوژي پهٔ ممر فی کولو کښې خدمت وکړي او پهٔ دغه اساس ئې د نړیهٔ د هیواد و لهٔ یو شمیر پوهنتونو او طبي موسسو سره علمي تړبا دلی او ارتباط ټینګ کړ.

## اداري لوی مدیریت:

اداري لوی مدیریت او د هغه مربوطې ځانګې هم د لابراتوار د درسي ضروري وسایلو پهٔ تهیه کولو او د هغه پهٔ انتظام او ترتیب کښې ښهٔ فعالیت کړیدی دغه راز د همدغه اداري مدیریت پهٔ فعالیت سره د پوهنځي لابراتوارو ته دري سوه دړ سي چوکۍ دزده کړو نکو د تطبیقاتي خونو د پاره دري سوه ستو لونه، شل دړ سي تختې دد فتر او لابراتوار د پاره اتهٔ و یشت میزونه او پنځهٔ دیرش الماري او یوه اندازه موبل او مفروشات پهٔ دغه کال کښې تهیه شو یدي.

سربیره پهٔ هغو دغهٔ مدیریت پدې یوه کال کښې بریالی شو چهٔ د قارسي پوهنځي چهٔ تر څو پخوا مودې پورې دطب د پوهنځي تر اتر لاندې اداره کیده د کابل د پوهنتون پهٔ کمك بر ښنا تهیه او نلو نهٔ تیر کړ ي.

د ننګرهار دطب د پوهنځي دابتیا لري کولو لهٔ امله څو سوه لابراتواري سامانونه، لابراتواري دړملونه او یوه اندازه زیات اثاثیهٔ سامانونه او د لیلیي د ضرورت وړ توقي او لابراتوار پخپله دطب لهٔ پوهنځي څخه تهیه او د استفادې د پاره ورکړ شو.

دطب پوهنځي تهٔ چهٔ د تلیفون د نشتوالي لهٔ کبله ئې مشکلات درلودل د تلیفون یو لس لینه دستګاه ئې و پیرود لهٔ چهٔ زر پهٔ زره بهٔ پهٔ کار ولویږي لهٔ دې املهٔ چهٔ پخوانۍ بر ښنا د لابراتوار ضروریات نهٔ شو پوره کولی د طب پوهنځي تهٔ د علي آباد لهٔ تر انسفار مر څخه د کافي قوي یو نوی لین تیر کړی شو.

هغهٔ مدیریت پدې کال کښې دخپر و نو مدیریت تهٔ د ضرورت پهٔ اندازه یو څه زیات د ګستتنر کاغذی، د استنسل رنګ او نور طبا عتي سامان او پرچون لو ازم د بیلو بیلو لابراتوارو د پاره دلابراتوار لهٔ یو نیم زر قلمو څخه زیات راز راز دړ مل او د لابراتوارو ضروري سامانونه چهٔ د قولو بیه دوه لکهٔ افغانۍ شوېدهٔ د درملو لهٔ عمومي د پیو څخه تهیه کړیدې.

دغه شان یو سل او یو و لس صندوقه سامانونه او درملونه ئې لهٔ امریکې، فرانسې، انګلستان، اتریش او لویدیزا لمان څخه پیرود لي او د پوهنځي لابراتوارو ته ئې

ور کېږي دغه رنګه پنځه ترا نسفار مرونه له‌در یو ریفریجتورو سره دلا بر ا تو ار دضرورت دپاره تهیه کېږي

## دروغتیا دمؤسسو دریاست فعالیتونه :

د پوهنتون دروغتیا دمؤسسو ریاست د ګران هیواد دزده کوونکو ا و طبیبا نو یوازنی کانون دی او په عین زمان کښې دخلکو دروغتیا او سلامتیاد تأمین او معالجې په لاره کښې دهیواد دروغتیا دیوې ډیرې ستری اومجهزې دستګاه په‌حیث زیار باسی د پوهنتون دروغتیا دمؤسسو دریاست کلینیکونه او پولی کلینیکو نه ټولو د ا خلی او خارجی ناروغانو ته پرانیستلی دی او په زرګونو نا رو غا ن ئې منلی او په معالجه او تداوی کښې ئې زیارونه ایستلی دی .

د پوهنتون دروغتیا دمؤسسو دریاست روغتونو نه (۷۰۰) فعا لی بسترې لری چه داسی لازمه کنټرل شوې د . چه (۵۰۰) بسترې ئې دعلی آباد روغتو نو او (۲۰۰) بسترې ئې دښځو روغتونو ته تخصیص کړی دی .

۱ : د پوهنتون دروغتیا دمؤسسو ریاست دطب دعملی تدریس له نقطې نظره دروغتیا دوزارت او دطب د پوهنځی یوځمیمی همکار دی او څوبی چه وسه وی زیار با سی چه پخپلو روغتونو کښې دطب دمحصلینو داکترانو او استادانو دپاره ډیره ښه‌زمینه برابره کړی .

۲ : د پوهنتون دروغتیا دمؤسسو روغتونونه پخپلوټولو فنی اواداری تشکیلاتو سره شپه او ورځ هره ګړیه فعالیت کوی او دهغو دروغتیا په تأمینولو اومعالجه کښې زیار باسی .

## داداری‌دایرو فعالیتونه :

په ۱۳۴۱ کال کښې ئې د مربوطو روغتونو ټول ضروری او داړتیا یو ره کو لو شیان لکه درملونه غذا وی ، جا می ، رسولو مواد ، دطب سامانونه او دروغتونو او نورو متعلقودایرو تهیه اوداستفادې دپاره ورکېږی خو دروغتیا دموسسو دریاست او دمربوطو دایرو دودانیو ، ترمیماتو او رنګولو چارې دکابل ولایت دفوایدعامې مدیریت ته سپارلی شوی دی دمصارفو پیسی ئې وخت په‌وخت دروغتیا دمؤسسو دریاست له بودجی څخه دکابل ولایت په حساب تخصیص شوی دی .

دغه رار داسی پوره اند ازه طبی سامانونه اووډ درملو نه لکه راز ر از آ نتی بیوتیکونه . سلفامیدونه ، ویتامینو نه ، هورمو نو نه او سیرومو نه له ارو پا یی او امریکائی هیوادو څخه چه په ۱۳۴۱ کال کښې پیر و د ل شوی دی ارسیدلی اوڅه نوربه‌ئې هم زر په‌زره راورسیږی ، سر بیره پر دغودوه سوه صندوقه راز راز درملونه هم له خارج څخه رارسیدلی او دپوهنتون دروغتیا دمؤسسو د ریاست ر و غتو نو نه استفاده ورڅخه کوی .

## دفنی څانګو فعالیتونه :

۱ : دعلی آباد دروغتونو سر طبابت :

دعلی آباد دروغتونو دسرطبابت کلینیکونه دطب پهټولو عصری وسایلو سره مجهز دی هر راز تداوی او دجراحی مهم عملیات دافغانی ډاکترانو او استادانو په واسطه کیږی چه دبسترو شمیر ئی (۵۰۰) ته رسیږی چه دلازم ګڼلو لهمخی داخله جراحی ، سترګو ، غوږ واوستونی ، جلدی ، سناتوریم او عقلی او عصبی سرویسونه ټاکل شوی دی، دغه روغتونونه داکسریز او لابراتوار سرویسونه هم لری چه دمربوطو سرویسو د۱۳٤۱ کال فعالیتونهئی په لاندې ډول دی :

دعلی آباد دروغتون د۱۳٤۱ کال دعملیات شویو احصائیه :

| سرویس | د بستر داخل عملیات | د بستر خارج عملیات | پلاستر شوی | بستر شوی کسان | پانسمان | مړه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| داخله : | ... | ... | ... | ۱۷۹۹ | ... | ۱۱ |
| جراحی : | ۱۲۱۹ | ۳۸۰ | ۳۸۱ | ۱۹۲۹ | ۳۶۰۳ | ۸۶ |
| دسترګو : | ٤۰۰ | ۲۲٤ | ... | ۵۱۰ | ... | ۲ |
| دغوږواوستونی | ٤۹۱ | ۲۷٤ | ... | ۶۲۲ | ... | ۱۱ |
| عقلی او عصبی: | ... | ... | ... | ۵۰۶ | ... | ۱۲ |
| جلدی : | ... | ... | ... | ۳۸۵ | ... | ۲ |
| سناتوریم : | ... | ... | ... | ٤۰۳ ر | ٤۶۵ | ۲۶ |

اکسریز : رادیوګرافی (۲۸۵۵) تنهرادیوسکوپی (۳۸۵) تنهلابراتواراومعاینی (۲۲۲۶۶) تنه .

په ۱۳٤۱ کال کښی دعلی آباد روغتونو ته دمراجعینو او په هغوکښی دعملیات شویو احصاییه دعلی آباد پهسرویسو کښی ټول (۶۱۶٤) تنه بستری شوی او (۲۹۸۸) تنه عملیات شویدی او (۱۷۵۵۶۰) سیسی وینه به عملیات شو و نا روغانو کښی تزریق شوی ده .

دوهم دمېنځو دروغتون سر طبابت :

دمېنځو روغتون لکه دعلی آباد دروغتون په شان داخله ،جراحی،دسترګو ،غوږو ستونی ، جلدی او عقلی او عصبی سرویسونه لری سربیره پرهغو نسائی ، و لادی او دکوچنیانو سرویسونه هم لری او د بستر و شمیرئی (۲۰۰) دی . دغه داکسریز او دلابراتوار په سرویس او دوینو د بانګ پهدستګاه هم مجهز دی چهدهغو سرویسونو په ۱۳٤۳ کال فعالیتونه په لاندی ډول دی :

| سرویس | عملیات شوی | د بستری څخه خارج عملیات شوی | پلاستر شوی | بستر شوی | پانسمان | مړه | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| داخله : | ... | ... | ... | ۵۵۶ | ۹ | ۱ | ۲۹ |
| جراحی : | ۲۲۶ | ۳٤٤ | | ۱۲۸ | ۷۱۳ | ۶٤۹ | ۲۳ |

| سرویس | عملیات شوی | د بستری څخه خارج | عملیات شوی | پلاستر شوی | بستر شوی | پانسمان مهره |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دسترگو: | ٢٢٠ | ٢٩٠ | ... | ٢٢٠ | ٢٢٠ | . |
| دغوږو او ستونی | ٣٣٧ | ١٥٠ | ... | ٤٢٢ | ٤٢٢ | ٤ |
| عقلي او عصبي: | ... | | ... | ... | ٢١٦ | . |
| جلدی : | ... | ... | ... | ٢٥٠ | ٤٥٠ | . |
| عمومي کوچنیان | ... | ... | ... | ٧٧٧ | ١٢٠ | ١٠٧ |

اکسریز،

را دیو سکوپی (١٠٨) تنه، راد یوگرافی (٢٣٧٨) تنه، لابرا تـوا را و معا ینې (٧٠١٠٣) تنه .

په ١٣٤١ کال کی د ښځو د روغتون سرطبابت ته د مرا جعینو د احصاییی لنډیز :

ټول بستره ئی شوی کسا ن (٤٢٠٨) تنه ټو ل عملیا ت شوی کسان (٢١١٨) تنه و ینې چه ناروغانو ته ورکړی شو یدی (٣١٦٥٠) تنه .

## دوینو بانك :

د١٣٣٦ کال تر آخرو وختو پوری د وینو بیل بیل گروپونه له خا رج څخه تهیه او پیرودل کېدل خود ١٣٣٧ کال له اول څخه دواکمنو مقاماتو لهخوا دوینو د بانك د سرو یس د پیرود نی او نورو لگښتو د پاره یو ه پوره بودجه منظوره شو ه . سر بېر ه پرهغو دځینې کسانو د نوع دوستی، اوفدا کاری په نسبت چه دوینو د بانك په اهمیت او د قدر ور خدمتو باندې پوهیدلی دی هر یوه یو څه پیسې او یا د خپل بدن یو څه وینه د وینو با نك ته اعانه ورکړی ده .

دغه راز ځینو مؤسسو او شرکتو هم یوڅه پیسې د وینو بانك تهاعانه ورکړی یدی. چه د هغوی د دغې مادی او معنوی مرستې پهاثر به سلگو نو نارو غان عملیا ت شو ی او هغه چهوینې ئې کمې وې د مرگ لهخطر څخه بچ شوی دی او دغه مرسته تراوسه لادوام لری او هیله ده چه دو ینو دغه اعانه ورکوونکی نورهم زیات شی. دهغو و یتو اندازه چه دو ینو د بانك څخه د ناروغا نو په مصرف رسېدلې ده (٢٠٧٢١٠) سی سی ده

## د مرکزی سرطبابت کتنځی :

د روغتیا د مؤسسو د ریاست پو لیکلینیکو نه د ښار په مرکز کښې واقع او څو څو سرو یسو نه لری . مرکزی کتنځی د ناوړغانو لومړی مرجع دی لومړی د ناریینه او ښځو ناروغان لومړی مرکزی کتنځی ته ورځی او د ناروغې لهمخې مربو طه پو لیکلینیك ته لیږل کیږی . د مرکزی کتنځی پو لیکلینیکو نه پهدوو برخو ویشل شوی چه د١٣٤١ کال فعالیت ئې پهلاندې ډول دی .

په١٣٤١ کال کښې د مرکزی کتنځی پو لیکلینیکو د مراجعینو احصا ئیه .

| د سرویس نوم | نا رینه | ښځې | نارینهاو ښځې بستري شوی |
|---|---|---|---|
| داخله : | ١٨٤٩١ | ١٩٥٠٩ | ١٦٤٦ |
| جراحي : | ٦٠٧٥ | ٤١٣٥ | ٥٧٧ |

| د سرویس نوم | نارینه | ښځې | نارینه او ښځې بستري شوي |
|---|---|---|---|
| دستر گو ، | ۹۸۷۴ | ۵۹۵۶ | ۷۶۰ |
| دغوږو او ستونی : | ۸۴۴۳ | ۷۸۴۸ | ۶۹۴ |
| عقلی او عصبی : | ۶۷۴۰ | ۱۸۷۷ | ۲۱۸ |
| جلدی : | ۶۶۶۸ | ۶۸۴۱ | ۳۰۷ |
| نسائی او ولادی : | ۰۰۰ | ۶۱۱۴ | ۳۰۷ |
| کوچنیان : | ۳۶۴۵ | ۹۸۹۹ | ۴۶۶ |
| پیچکاری : | ۳۶۴۵ | ۲۱۰۳ | . . . |
| دغابښو : | ۶۵۹۰ | ۷۰۱۰ | . . . |
| پلاستر شوی : | ۱۳۴ | ۸۷ | . . . |
| په برېښنا تداوی شوی: | ۴۲۸ | . . . | . . . |
| اکسریز رادیوسکوپی : | ۳۲۲ رادیو گرافی | . . . | ۲۰۳ |
| یورو لوژی : | ۱۶۱۴ | . . . | ۱۱۰ |
| ستنی وهل : | . . . | ۱۵۲۱۷ | . . . |
| سنتول :(ختنه) | ۳۷۴ کوچنیان | ـ | . . . |
| لابراتوار : | . . . | . . . | (۹۴۰) |

هغه چه د درملتو نه ئې وړی دی . . . ( ۸۵۸۹۴ ) تنه

په ۱۳۴۱ کال کښې دمرکزی کتنځی سرطبابت ته دمراجعینو لنډه احصا ئیه :

۱ــ نارینه . ښځی او کوچنیان (۲۶۹۰۱۵ ) تنه

۲ــ « « دمرکزی کتنځی په سلسله بستري شوی ( ۷۵۷۰ ) تنه

۳ــ هغه چه « « شخه ئې درملو نه وړی دی (۸۵۸۹۴) تنه

دغه پورته یاد شوی بستري شوی کسان له هغو عاجلو ناروغانو څخه مستثنی دی چه هره ورځ د نادرشاه په روغتونو او د ښځو په روغتون کښې بستری شوی دی .

په ۱۳۴۱ کال کښې د پوهنتون د روغتیا د مؤسسو کلینیکو او پولیکینیکو ته دمراجعینو او په هغو کښې د بستري شو او عملیات شو و احصا ئیه :

۱ــ د نادرشاه او د ښځو په روغتونو کښې بستري شوی کسان (۱۰۳۷۲) تنه

۲ ــ « « عملیات شوی « ( ۵۹۰۶ ) «

۳ ــ « « پانسمان او پلاستر شوي « (۱۲۳۲۲) «

۴ــ مرکزی کتنځی ته د نارینه وو او ښځو مراجعینو شمېر ( ۸۶۰۱۵۰۰ ) «

۵ ــ هغه ناروغان چه دمرکزی کتنځی په سلسله د بستر لیک ورکړ شوی دی (۷۵۸۱) تنه

۶ ــ هغه اندازه وینی چه دوینو له بانک څخه د ناروغانو په مصرف رسید لی دی :
(۲۰۷۲۱۰) تنو ته

۷ ــ هغه ناروغان چه د مرکزی کتنځی له درملتون څخه یې درمل وړی دي (۸۵۸۹۴) تنه

## دپوهنتون دروغتیا دموسسو دریاست درملتونونو آمریت :

درملو نه اوطبی سامانونه دسروپس دشقو په پیشنهاد سره له خارج څخه تهیه او پیرودل کیږی .

د درملتو نو آمریت (څلور ځانګی ) لری چه د درملو دیپو ، دطبی سامانو د یپو دزرقی محلولاتو لابراتوار اود تابلیت جوړولو ځانګی‌دی .

په پخوا کلو کښی به‌دهیواد زیاتې پیسې دروغتونو د ضرورت وړ ا میو لی او تابلیتی درملو دپیرودلو له‌امله خارج ته لیږل کیږي خواوس د در ملو آ مر یت دمربوطو روغتونو دضرورت په‌اندازه پوره درملونه دزرقی محلولاتو په لابر ا تو ار اود تابلیت جوړولو په‌خپله ځانګه کښی تهیه اودروغتون دناروغانو استفادې ته یې ورکوي چه‌د بودجوی اودناروغانو دتداوی له‌بابته یې ګټوره نتیجه ور کړه .

د درملتونو دآمریت له‌خوا په‌جوړو شوو درملو علاوه چه‌ناروغان استفاده‌ور څخه کوی یوه اندا زه پو ر ه او قیمتی دوا ګانی اود شمیکل او کلینیك په تلسګویې دواګاني له‌خارج اود روغتیا دوزارت د درملو له‌عمومی دیپو څخه پیر و د ل شو ې اود ناروغانو داستفادی دپاره ورکړ شوی دی .

## د میرمنو د ر وغتو ن فعالیت :

هغه طبی اومعالجوی فعالیتونه چه د ١٤٣١ کال د سنبلې دمیاشتی دشروع څخه د ١٣٤٢ کال دجوزا دمیاشتی تر پایه پوری په ثابت ډول‌سرته رسیدلی‌دی :

## دسنبلې دلومړۍ‌نیټې‌څخه‌د١٣٤١حوت تر پایه پوری

١ـ د جراحی په سرو یس کی ٣٦٣ تنه شامل شوی ، ١١٥ تنه عملیات ، ٣٢٥ تنه پانسمان ، ٧٧ کسه پلستراو منجمله ١١ تنه مړه شو یدی . ضمناً ١٧٤ تنه د بستر څخه بهر پانسمان‌اوخپلو کورو ته‌بیول‌شو یدی .

٢ ـ دښځو په سرویس کی :

٧٨٢ تنه په بستر کی‌شاملې‌شوی ٢٧٦ تنه عملیات ، ٧٨٢ تنه پا نسمان‌شوي اوله‌هغو څخه ځو لې‌دوه‌تنه‌مړې‌شوی او نورې‌ښې شوی اوخپلو کوروته‌تللی دی .

٣ـ دسترګو په سرو یس‌کی :

١١٠ تنه په بستر کی د اخل شوی او بیرون څخه ٤٥ تنو درا تلو سره ټول ٢٥٥ تنه عملیات شو یدی اوصحت ئی مو ندلی دی .

٤ـ دغوږ و اوستو نی سرو یس :

٢١١ تنه بستره یی شوی اود بیرون د ٥٢ کسو دمراجعی سره ټول ٢٦٣ تنه عملیات شوی او له‌دغه جملې څخه ٢ نفره مړه شوی او نور ښه‌شوی اوکوروته تللی د ی .

٥ ـ په‌داخله‌سرو یس کی:

٢٨٨ تنه په بستر کی دا خل شوی اومعالجی او تداوی څخه وروسته ښه شوی او رخصت شو یدی .

۶- دعقلی او عصبی په سرو یس کی :
په دغه سرو یس کی ۶۱ تنه تداوی او ښه شو یدی .
۷- د کوچنیانو پهسرو یس کی :
۳۷۱ تنه تداوی اومعالجه شو یدی .
۸- پهجلدی سرو یس کی :
۲۲۵ تنه معا لجه اوتداوی او پانسمان شو یدی او ښه شویدی .
۹- دراد یو لوژی سرو یس کی :
۱۱۹۳راد یو گرافی شویاو ۵۴۱ تنه راد یوسکو پی شوی دی .
۱۰- ددغه روغتون د تجزئی په لابراتوآکی ۴۴۲۸ عمومی معاینی شو یدی .

**نوټ :**

۱۱- دهغی و ینی اندازه چه د عملیات شوو او نورومریضانو په مصرف رسیدلی ده یوسلواو یو لیتر او ۳۷۵ سی‌سی وینه ده .

## دحمل دلومړی څخه د۱۳۴۴کال دجوزا ترپایه‌پوری

۱- دجراحی په سرو یس کی : ۲۰۸ تنه په بستره کی داخل شوی ۶۱تنه عملیات ۱۷۴تنه پانسمان ۵۱ تنه پلستر شوی اوله هغې‌جملی څخه ۶ تنه مړه شو یدی علاوه پردی ۱۱۰ تنه دبستر له خارج څخه عملیات شوی‌اوخپلو کوروته بیول شوی دی .

۲- دولادی په سرو یس کی: ۳۷۶ تنه بستر شوی او ۴۸۰ تنه پا نسما ن اودهغه جملی څخه ۳تنه باقی تداوی اودښه کیدو څخه وروسته رخصت شو یدی .

۳- دسترگو په سرو یس کی: ۲۶تنه بستری شو یدی عموماً عملیات شوی او علاوه پرهغه ۱۲۱ تنه‌دبستر نه‌خارج عملیات او تداوی شو یدی .

۴- په داخله سرو یس کی ۱۲۰ تنه بستر ی شوی ۲۵ تنه مړه شوی او نور له ښه کیدو څخه وروسته رخصت شو یدی .

۵- دغو ږو اوستو نی په سرو یس کی : ۹۹ تنه په‌بستر کی داخل شوی ۷۳ تنه علمیات او ۸۸ تنه پانسمان شو یدی، علاوه په دې ۱۵ تنه نور له بستر څخه عملیات او خپلو کوروته ولېل شو یدی .

۶ - دعقلی اوعصبی په سرو یس کی : ۴۲ تنه په‌بستر کی داخل شو یدی اوله‌ښه کیدوڅخه وروسته رخصت شو یدی .

۷- دکوچنیانو په سرو یس کی: ۲۵۳ تنه په بستر کی داخل‌شوی او دمعا ینی او ښه کیدو څخه وروسته خپلو کوروته رخصت شو یدی .

۸- دجلدی په سرو یس کی : ۲۸ په‌بستر کی داخل اوله پانسمان اد معا لجی څخه وروسته رخصت شوی دی .

۹- دساری مرضونو په سرویس کی : ۷۵ تنه په‌بیلو بیلو تنظیمی سار ی ناروغیو اخته‌او بستر شوی ۹ تنه مړ ه اونور ښه شوی دی .

۱۰- د رادیولوژی سرویس : ۵۲۶ رادتوگرافی او ۲۰۴ رادیوسکوپی شویدی
۱۱ تنهد تجزئی په لابراتوار کی ۱۶۵۴ عمومی معاینی شویدی .

## د دواجوړولو د پوهنځی دفعالیتو لړیز

### د دواجوړولو پوهنځی :

د دواجوړولو پوهنځی د یوی خوا د تدریسی اولابراتواری فعالیت په نګاه او د بلی خوا د پیش بینی شوو پروژو په ډول داداری تشکیلاتو په نظر ئی د خپل انکشاف او تحول په خط سیر کی پراخ ګامو نه اخستی چه په دغه صورت کښی و یلی شو چه د اوړی ډلی د یپلوم لیسانسه دواسازان وړاندی کول د فرانسوی پوهنتونو او کابل د پوهنتونو او کابل د پوهنتون د فرمسی د پوهنځی ترمنځ د همکاری د قرارداد لاسلیک کرسیو د تقویی او د یو شمیر لابراتوار ونو تکمیل د ځینو ځانګو پراختیا او فعالیتونه چه په دغه موده کښی ئی کړی د نوموړی پوهنځی د یادونی وړ استقبال دی .

### ټولنی ته د لومړی ډلی فارغ التحصیلانو وړاندی کول:

د کابل پوهنتون د دواجوړولو د پوهنځی په تقویه کولو سره وکوای شو چه د لیسانسه د یپلم دواساز انو لومړی ډله د ۱۳۴۱ کال په دلوی کښی ټولنی ته وړاندی کړل او د دواسازی د پوهنځی اسیستانو ته د شدید احتیاج په نظر د دواسازی د پوهنځی د لومړی دوری لیسانسه دواسازان بی له عسکری دواسازانو څخه ټول د لاندنیو کرسو د تدریسی هیئت د غړو په حیث د پوهیالو په نوم مقرر شول .

د دارو د کنترول په برخه کښی د دواسازی د کلینیك په کرسی پوتن، د دواجوړولو د صنعت په برخه کښی د دواسازی کرسی پوتن، د طبی نباتاتو په کرسی پوتن د شمیك دواسازی په کرسی پوتن، د دواسازی د کیمیاوی تحلیل د برومتولوژی د اغذیې د کنترول په کرسی پوتن د توکسیو لوژی په کرسی پوتن، د میکرو بیولوژی په کرسی پوتن، د کابل د پوهنتون پوتن .

د کابل د پوهنتون د دواسازی د پوهنځی او د فرانسی د پوهنتونو ترمنځ د همکاری د قرارداد و امضاء .

د کابل د پوهنتون د دواسازی د پوهنځی او د فرانسوی پوهنتونو ترمنځ د ۱۳۴۲ کال د ثور ۹ نیټه د ۱۹۶۳ عیسوی کال د اپریل په ۳۰ نیټه د علمی همکاری قرارداد په یو و نښتو ماد و کښی چه په افغانستان کښی امضا شو هدف او مقصد ئی د مترقیو ممالکو د دواسازی د پوهنځیو په سویه د دواسازی د پوهنځی د سویی معیار او ارتقا په علمی بنیه تقویه کول دی .

### تدریسی فعالیتونه

د دواسازی پوهنځی په دغه موده کښی کوشش کړی دی چه خپل مستحضران، تکنیشنونه اسیستانتونه او نور د کرسو په چوکاټ کښی شامل کړی او په دی څخه شول چه د خپلو تدریس شوو مضامینو په اندازه د کرسیو شمیر په وروورو شلو کرسو ته ورسوی .

دوهم پلان په پیله بودجه کښی دهری موجوده کرسۍ د تقویې د پاره په نظر کښی نیول شوی چه د هغه د مخی نوموړی کرسی تدریجاً د یوی خوا د پرسونل لرلو په نظر او د بلی خوا د خپلو مجهزو لابراتوار و د تکمیل په نګاه پخپل خط سیر کښی تحول او انکشاف وکړی نو د ۱۳۴۱ کال په اول کښی دلابراتورو د تاسیس مقدماتی کارونه شروع او په دغه موده کښی د نوموړی پوهنځی ساختمانی کارونه، نل، غزول کاشی کاری او لابراتوارونه تکمیل او په ۱۳۴۲ کال استادانو او محصلا نو ته د درسی کال د لومړی سمستر د استفادی په غرض وسپارل شو چه بې له مبالغی نه ویلی شو چه د دواسازی د پوهنځی لابراتوارونه د نل دوانی د ساختمانی طرز په نظر د کابل د پوهنتون د خوارانو و لابراتوارو څخه ګڼل کیږی .

پدی موده کښی لاندی لابراتوار و نه تکمیل او د محصلانو استفادی ته پریښودل شوی چه د هرلابراتوار په باره کښی لنډ تذکر دادی .

## دادوی د کنترول او دواسازی د کلینک لابراتوار:

دغه لابراتوار چه ۹ کاشی کاری میز و نه لری سر بیره د شاګردانو د علمی درسونو څخه د علمی تجار بو او تشبثاتو څخه هم پکښی کار اخستلی شوی د دغه ټولو میزونو سره نلونه هم مل دی په نوموړی لابراتوارو کښی د آب مقطر یوه دستګاه هم احتیا جات رفع کوی او د بلی خوا د پوهنتون د صحی موسسو دلابراتوارو سره د ضرورت په وخت کښی مرسته کولی شی.

سره ددی بیا هم د دغه لابراتوار و د زیاتی توسعی او انکشاف د پاره په دوهم پلان کښی دلابراتوار پروژه چه ادامه به ومومی د کار لاندی نیولی شوی ده.

## دطبی نباتاتو اوهغو د موزیم لابراتوار

دوطن دطبی نباتاتو مطالعه او تصنیف داقتصادی طبی او دواسازی د صنعتی نګاه له مخی فوق العاده مهم دی نو ددی منظور په اساس د دوا سازی د پو هنځی کرسی چه د نباتاتو دطبی کرسی په نوم یی دلابراتوارو د پروژی ایجاد دمخه شروع شوی و د ساختمان نل غځول او نورو په نګاه تکمیل او د شاګردانو استفادی ته سپارلی شوی وی دغه لابراتوار په ټولو لابراتواری شرایطو د دارو د کنترول او دواسازی کلینک لابراتوار هم لری، د شاګردانو د تطبیقاتو او مشاهدو د پاره ګڼ میکروسکوپی میزونه برابر شوی دی او یو شمیر نوی میکرو سکوپونه د دی منظور د پاره خریدا ری ا شاګردانو ته د استفادی د پاره ورکړی شوی دی ، دطبی نباتاتو موزیم د دغه لابراتوار مل ځانګه ده چه په آینده کښی به په یوه خونه کښی ځای ورکړی شی، په دغه موزیم کښی د افغانستان وچ شوی طبی نباتات چه د علمی سیر او ګرځیدلو په وخت را ټول شوی تصنیف او ساتلی شوی او یو شمیر سلاید او نور طبی نباتات د بانډ نیو هیوادو څخه د مقایسی د پاره پکښی راټول شوی دی.

دنباتی پوهرو اوو چ شوو بوټو اینبودلو دپاره یوه اندازه بوتلو نه هم دارو ددیپوښخه اخستی شوی دی اوپه همدی شان دځینو بوټو دنهالو او ومطالعی دپاره یو شمیرگلدانی اخستی شوی او ددغو کرسی استادانو محصلانو ته ورکړی شو یدی او د دواسازی دپوهنځی په مقابل ځمکـه دخیابان په ډول جوړه شوی. چه وروسته به د محصلانو دمعلوماتو دپاره دطبی بوټو دیو باغ په شکل جوړه شی دغه باغ دخیابانو نه دطبی بوټو موزیم هم ددغه لابراتوار مربوطه ضمایم دی نوموړی لابراتوار چه په ۱۳٤۱ کال دلوموی سمستر شاگردانو ته ورکړی شو ی دلابراتوار په چوکات کښې دطبی نباتاتو پوډر دمیکرو سکوپ په واسطه دمحصلانو په ذریعه تشخیص شو ی دی دغه نباتات چه مقطر تری واخیستل شی دمحصلانو په ذریعه ترسیم او تشخیص کیږی په دغه لابراتوار کښې دشپیته کسو نه تر او یا کسو ر پوری محصلان ځا ییدلی شی.

## ددواجوړولو دشمیك او کیمیا دتحلیل لابراتوار

دغه لابراتوار هم تکمیل او په ۱۳٤۲ درسی کال د لومړی سمستر شاگردانو ته سپارلی شوی چه د (۳۰) تنو محصلانو څخه تر څلو یښتو تنو پوری ځای لری دلابراتوار په چوکـاټ کښې سر بیره دغذایی موادو دحتی الا مـکـان کـنتر ول نه دوطـن دمعدنی اوبو مطالعه دځینو اوبو نمونی لکه د استالف دشفا چینی اونو رو څخه د علمی سیر په وخت راوړل شوی مطالعه او کومه نتیجه چه تیری اخیستی شوی داده چه شفا دچینی اوبه هغه تیلو او کنتر کسو یل او بوته ورته دی. چه په فرانسه کښې شهرت لری البته داوبو او مخصوصاً دطبی معدنی او بو مطالعه د هیدرولوژی په څانگه کښې چه مضمونی دلابراتوار او دهغی دکرسی او تدریس ایجاد تر نظر لاندی دی و به کتل شی.

## دتوکسیکولوژی لابراتوار:

دیو خارجی استادموجودیت ددوایی دتقلباتو او تسمماتو په تشخیص کښې ددریم او څورم ټولگی دعلمی درسونو داجرا او دهغو چارو دپرمخ بیولو دپاره دلابراتوار ساختمانی کار تکمیل او د لومړی د رسی سمستر محصلانو ته حواله شوی دغه لابراتوار تقریباً ددیرشو کسو محصلانو ځای لری، دپوهنځی دنورو لابراتوارو څخه ئی حتی الامکان دپرمخ تگ او پراختیا وسایل او سامان تهیه او یوه اندازه نور ئی خریداری او دقواو نه لومړی دغه لابراتوار ته ورکړی شوی دی.

چه دادی ددغه لابراتوار په چوکاټ کښې تسممی دواوو او د تر یا کو د تقلباتو تشخیص شوی دی.

په دغه لـړ کښې دعدلـی طب دطب دپو هنځی دادویې ددیپو او پولیسو او نورو څانگو سره په زړه پوری مرسته کولی شی.

## دعضوی کیمیا لابراتوار:

ددی لابـراتوار کـار په سلو کښې ۹۰ تـکمیل شوی دعلمی درسونو او ځینو

عضوی کیمیاوی تجارب او مشاهده د پاره تری کار اخستل کیږی، د ۱۳٤۲ کال د دوهم سمستر شاګردانو ته سبا رل کیږی.

## دمیکرو بیولوژی لابراتوار :

دمیکرو بیولوژی لابراتوار چه یوه سلسله ډیر کوچنی لابراتوارونه ورسره دمیکروسکوب او سرولوژی له نظره دمیکروبو د تشخیص او کښت د وسایلو او تعقیم د پاره دی د پرزیټولوژی د یو لابراتوار سره تر ساختمان لاندی نیول شوی کار یی په سلو اتیا سلنې ته رسیدلی دی

البته دحیاتی کیمیا دلابراتوار او نور ایجاد د پاره یی د فرمکو د نیامی هیدرولوژی او نوری پروژی دمطالعی لاندی دی چه د کافی اطاقونو لرلو په اثر به په مساعدو شرایطو درلودلو سره ورو سته عملی اقدامات وشی.

## د دواسازۍ داد ویی توریوم پوهنځی:

د دواسازۍ د پوهنځی دغوښتنی په ډول د درسی اطاقونو او کنفرانسو دخونو وقلت په وجه د دواسازۍ د پوهنځی داحتیاجاتو درفع کولو د پاره د کابل د پوهنتون او هوختیف دساختمانی کمپنۍ ترمنځ قرار داد امضا شوی چه په سلو کښی ئی تر شپیتو پوری کار تکمیل شوی دی.

دغه دادویی توریم به د سلو ، شپږ شلو کسانو ګنجایش ولری.

## د درسی پروګرام کتلو له مخی

لکه څنګه چه د مخه وویل شو د تدریسی هیئت داعضاو په حیث د دواسازۍ د لسانسه دیپلوم د لوموړی ډلې په مقرریدو سره د پوهنځی درسی پروګرام منظم شکل اختیار کړی دی یوازی د تدریس دزیات ښه طرز دانجام د پاره د سمسترونو دمضامینو دتقسیم او دساعتو تعداد او تغییر دمطالعی لاندی نیول شوی دی لکه چه په ۱۳٤۱ تدریسی کال کښې چه د تخنیك میکرو بیولوژی او عمومی میکرو بیولوژی تخنیك په دریم او څلورم ټولګیو کښې په ګډه لوستل کیدل مګر په ۱۳٤۲ درسی کال کښی په دوه برخو ووېشل شو یعنی عمومی میکرو بیولوژی او د تخنیکی میکرو بیولوژی په دریم ټولګی کښی او میکرو بیولوژی سیستماتیك د هرمکروب او پرولوژی دخصوصی مطالعی سره دڅلورم ټولګی په درسی پروګرام کښی دمطالعی ځای ور کړی شوی دی نو په دی وسیله لیسانسه دوا سازان په دغه ساحه کښی په وسیعو معلوماتو لرلو سره کولی شی چه میکرو بونه تشخیص کړی. په همدی ډول ئې د نظری درسونو سره جوخت دمرکز او اطرافو د دولتی او انفرادی موسسو د کتنو څخه ئی سر بیره تعلیمی تطبیقاتو او علمی سیر ته هم ادامه ور کړی چه په تعلیمی چوکاټ کښی تری شاګردان استفاده وکولی شی.

## په ولایاتو کښی علمی سیر او گرځیدنه:

دطبی بوټو دراټولو او دنبا تاتو دطبیعی ودی دطرز مشاهدی او د خلکو سره دتماس او دارو در ملو ته دهغوی داحتیـاجا تـو ددرك معلو مو لو دپاره دا ډول علمی سیر چه په نظر کښی نیول شوی شاگر دان ور وسته دخپل علمی سیر دخاتمی نه دخپلو مشاهدو رپوټ دپوهنځی ځینو استادانو او شاگردانو ددغه پرو گرام په اساس د۱۳۴۲ درسی کال تر منځ دلومړی سمتسر دامتحان دخاتمی نه وروسته د پنجشیر دره او دهغې دری بوټی لیدلی او یو تعداد طبی بو ټی ئی دځان سره د طبی بو ټو په لابرا تورا وموزیم کښی دساتنی او مطالعې دپاره او په دغه باره کښې ئی رپوټ لیکلی دی.

## کتابخانه اوخپرونی:

دد وا سازی دپو هنځی کتابخانی دخپل جوړ شوی پرو گرام په ډول خپل انکشاف ته ادامه ور کړی دپو هنتون دکتابخانی دمد یریت له خوا په مختلفو برخو کښی یو شمیر کتا بونه پیرو دل او دپو هنځی کتابخانی ته لیږلی شوی او یو شمیر نور کتابونه دپوهنځی له خوا ور کړی شو ی دی .

## ددوا سازی دپوهنځی دخپرو نوځانگه:

دپوهنځی دخپرو نوځانگی دپرانستلو دمو دی څخه تر او سه پو ری په گستتنر ماشینو او دهغو کاملوشیا نو انگلیسی او پښتو تا یپ او نو روما شینو مجهزه شوی دتدریسی هیئت د اعضاؤ څخه یو تن سر بیره پخپل تدریسی مسئو لیت دکتابخانی دچارو په وړاندی بیو لو مقرر شوی دی ددغی ځانگی دپاره ټایپست او مامور هم استخدام شوی دی .

سره ددی چه دغه ځانگی دخپل انکشاف دشر وع څخه یو شمیر ډیری داد اری او بودجی پاڼی دخپل پوهنځی دچارو داجراء دپاره او څه ئی دپوهنتون دمرکزاو ځینو نورو پوهنځیو دپاره په گستتنر چاپ او هم ئی یوه خپرونه دپوهنځی د معرفی په نوم نشر او په جدید الشمو لانو ویشلی دی، همدغه رنگه دپوهنځی ټول اداری او تدر یسی مکتوبو نو ټیپ کول دنشراتو مدیریت په غاړه اخیستی دی نو باید داهم ووایو چه ددغی ځانگی دانکشاف دپاره په دوهم پلان کښی ټاکلی بودجه پیش بینی شوی چه پروژی ئی تدریجاً داجرا لاندی دی .

او په همدی ډول ئی په تدریسی پروگرام کښی لکه څنگه چه په نظرکی نیو لی شوی دغه رنگه کله نا کله دایجا باتو مطا بق پری ژوره کتنه او غورکیږی چه نوی نظر به هم پر ی وشی.

ددوا سازی د پوهنځی کتلاك دپوهنځی دریاست دریس دپاملرنی لاندی داستادانو ټاکلی جرگه گی په واسطه تهیه او که امکان ولری گستتنر او یا به چاپ کړی شی دپوهنځی ددری میاشتنی مجلی دتهیی جرگه گی په (در مل) دمجلی دخپرو نو په باره کښی کو ښښ وکړی او دتالیف او ترجمی جرگه گی به د درسی کتابو نو دتهیی دپاره

مطالعه وکړی او ددوا سازۍ دقانون او دوا سازۍ دمسئولیت لایحه به دطبیبانو سره دمساوی همکار غړی په حیث تشریح کړی .

د نشراتو دځانګی پر اختیا په هر نظر مخصوصاً دعکس اخستلو ځانګه به دعکس اخیستلو دپاره کوشش وکړی او هم به علمی ګرځیدنی او لابراتواری تحولات لکه څنګه چه په انکشافی بودجه کښی پیش بینی شوی په نظر کښی نیولی شویدی .

او هم دکتابخانی دپاره په متعددو طریقو دکتابونو اومجلو برابرول ترنظر او څیړنی لاندی دی .

دروغتیا دجلیله وزارت دکمپوډرۍ دښوونځی سره به دتدریسی چارو دپرمختګ او معلم لیږلو په نظر مرسته وکړی او یا به دښوونځی په پروګرام کښی ددوی دموافقی په ډول تجدید نظر وکړی شی .

دغه کمپوډران چه د ډیپلوم لیسانسه دواسازانو آینده معاونان دی پدی باره کښی به دکار دخصوصیاتو سره اشنا او پوه کړی . ددوا سازۍ دپوهنځی لابراتوار ونه چه دادویی دکنترول دپاره تهیه شوی او د دارودتسمماتو او تقلباتو د تور ید په څه چمتو او حاضر دی د لـز و م پـه وخت کښی بـه د ر و غتیا وزارت او نورو ذیعلاقه ځانګو سره مرستا وکړی که څه چه دغه ډول فعالیت په تیرو نهو میاشتو کښی تر یوی اندازی پوری شروع شوی ؤ . د دوا سازۍ د پوهنځی لیسانسه دیپلوم دواسازانو څو تنه د دوا سازۍ دعالی او اختصاصی تحصیلاتو دپاره دمساعدت او شرایطو په صورت یوه خارجی هیواد ته استول ئی ترنظرلاندی دی . دبودجی تزئید په نظر چه د ۱۳۴۲ کال په بودجه کښی دلابرتوار د تـدریس او اداری پرسونل انکشاف په نظر کښی نیولی شوی تدریجاً به تطبیق شی .

## دانجنیرۍ دپوهنځی فعالیتونه:

د ۱۳۴۲ تعلیمی کال په شروع کښي دانجنیرۍ پوهنځی دکرهڼي د پوهنځی څخه بیل او په مستقل ډول ئي په فعالیت شروع وکړه .

ددغه پوهنځی تړون دوا پوهنـګـ دقیم سره فسخ او دبل قیم سره ئي چه (ای، اف، آی) یعنی دامریکاد تعلیمی مرستی اداره نومیږی رابطه پیداکړه ، پنځه تنه استادان او یو تن دهیئات مشر دنوی قیم لهخوا دتعلیمی کـال پاشروع کښي کابل ته راغلل او په کارئي پیل وکـړ .

دانجنیرۍ پوهنځی وکړای شول چه ددغو خارجی استادانو په مرسته یو نوی پروګرام چـه دداخلی او خـارجی استادانو لـه خوا دتیر کـال پـه آ خـر کـي جوړ شوی ؤ تطبیق کړی .

د یو ۆاکلی پروګرام دلاندی ، د انجنیرۍ دپوهنځی شاګردان دکار په نیمایی کښي په انجنیرۍ دبرښنا دانجنیرۍ او دمیخانیك په بیلو برخو وېشل کیږی او د پاتي

یونیم کال په موده کښې په نوموړو شقونو کښې دممکن حداو اندازې پورې تخصص پیدا کړی .

په نظر کښې لروچه په نږدې راتلونکی وخت کښې دخپلو خارجي مشاورانو په مرسته او همکارۍ ددغو هریو شق په داخل کښې د تخصص نوری برخې بېلې کړو زمونږ په عقیده داسې پروګرام به دګران وطن دتخنیکی اوعمرانی پروژو په وړاندې بیولو کښې زیات او پوره تأثیرو لري .

د لومړی محل لپاره موږ کړای شول چه خپل د برښنا لابراتوار تشکیل او د ٣ او ٤ ټولګی دشاګردانو داستفادې د پاره دهغوی په اختیار کښې کېږدو .

په تیر کال کښې د برښنا او فزیك دلابراتوار یوه اندازه سامان سږ کال فرمایش ورکړی شویدی هیله لرو چه دغه سامان د سږ کال ددویم سمستر دشروع نه مخکښې کابل ته راورسیږی او په کارو اچول شي .

ددې لپاره چه خپل د برښنا او میخانیك لابراتوارو نه دانجنیرۍ د پوهنځی په نوی عمارت کښې په اساسی توګه مجهز او سمبال کړو نوموړو غوښتل چه د تخنیك دوه تنه مشاوران ونیول شي. دغه مشاوران کابل ته رارسیدلی او په خپله دوه هفته یې هستوګنه کښې یې دخپل ضرورت وړ دسامان لست جوړ او بیا به امریکا ته لاړشي او د دغه سامان د پیرودلو په حقله به امریکا د تعلیمی امداد اداري ته خپلې نظریې وړاندې کړی .
هیله ده چه دغه سامان د ١٣٤٣ تعلیمی کال د شروع کیدو څخه پخوا کابل ته را ورسیږی او نصب شي ، دانجنیرۍ د پوهنځی د تعمیر دضرورت وړ د برښنا سامان به په نږدې را تلونکی وخت کښې فرمایش ورکړل شي .

یوه اندازه قرطاسیه، څومیزونه او دمعلم توری تختی چه د وایومنګ د ټیم لهخوا فرمایش ورکړل شوی ؤ څو موده وړاندې کابل ته راورسیدل او د نوی ټیم داستفادې د پاره هغوی ته ورکړ شو .

څو درسی کتابونه چه په لومړی سمستر کښې په کار ؤ د نوی ټیم لهخوا فرمایش او په لږه موده کښې به کابل ته راورسیږی .

په دویم سمستر کښې ددغه پوهنځی د تدریسی چارو د پرمختګ لپاره ددوه تنو موجوده استادانو نه علاوه چه پاتې کیږی ، نور پنځه تنه استادان او یو تن میخانیك غوښتل شویدی.

د تور په میاشت کښې میاشتنی کنفرانسونه په دغه پوهنځی کښې شروع شول ، ددغو کنفرانسونو مقصد ددغه پوهنځی او نورو دانجنیرۍ دمسلك د علاقمندانو د معلمینو او شاګردانو دعلمی سویې لوړول دي، علاوه پردې د نوموړی سویې د لوړولو د پاره ځینې کورسونه هم تشکیل شوی او نور به هم تشکیل شي .

ددغې سلسلې لومړی کورس دموډو دټینګوالی او استحکام په نامه په دغه سمستر کښې شروع او دوام لری. ددغه پوهنځی ځینی پخوانی معلمان او فارغ التحصیلان او د

استحکام د پوهنځی دوه تنه استادان په هغه کښې برخه اخلي. دغه کورس او دغه شان د دغې سلسلې نور کورسونه ترهغه پورې چه زمونږ داخلي استادان په اساسي توګه تقویه کیږي دخارجي استادانو له خوا به تدریس شي.

دخپل افغاني تدریسي هیأت دتقویې دپاره په نظر کښې لروچه دسږکال د لومړي سمستر د پای ته رسیدو نه پس څو تنه استادان او شاګردان دعالي او لوړو تحصیلاتو په غرض امریکاته واستوو.

په تیرکال کښې دانجنیرۍ او کرهڼې پوهنځي دعلم اوفن په نامه یوه مجله خپره کړه، خوددواړو پوهنځیو دیپلوالي او جدا کیدو نه وروسته، دانجنرۍ پوهنځي د پوهنتون د ریاست ته پیشنهاد وکړ چه د صالحه مقاماتو څخه دي د افغان انجنیر په نوم دیوې ملي مجلې دخپرولو امتیاز واخیستل شي.

تماکل شوي ده چه د نوموړې نشریې دکار دطرز او د اساسنامې دترتیب نه وروسته هغه مجله په خپل وخت خپره شي.

دنوي عرفاني مؤسسې مهم جز متعلمین دي، او مونږ له دغه اړخ څخه خپل ځان بې نیازه بولو، د پوهنځي دسږ کال د شاګردانو احصاییه په لاندې ډول ده،

| ټولګی | لومړی | دوهم | دریم | څلورم |
|---|---|---|---|---|
| دشاګردانو شمیر | ۱۰۰ | ٤٤ | ٤٧ | ۲۰ |

مونږ خپله دغه بې نیازي دثانوي تخنیك مرهون ګڼو ځکه چه په سلو کښې دپنځوس نه زیات متعلمین په دغه پوهنځي کښې دثانوي تخنیك فارغ التحصیلان دي.

## په تیر یوه کال کښې داقتصاد پوهنځی:

داقتصاد پوهنځي دخپلو شاګردانو دپاره په تعلیمي ساحه کښې په زړه پورې مساعد تدریسي شرایط برابر کړي، دکابل دپوهنتون د اقتصاد دپوهنځي په بین المللي معیار ددرسي سویې د پاللو او لوړولو دپاره ئې په زیاته اندازه کوشش کړی دی. داقتصاد پوهنځي د۱۳٤۱ کال په اوایلو کښې دالمان داتحادي جمهوریت دکلن داجتماعي او اقتصادي علومو د پوهنځي سره د یو روابطو قرارداد امضا کړی دی.

ددغه قرارداد په موجب دالمان د ستایلي شوي پوهنځي یوشمیر استادان د اقتصاد د پوهنځي د تدریس د پاره کابل ته راغلل، په۱۳٤۱ کال کښې داقتصاد پوهنځي الماني استادان څلور تنه وو. او په ۱۳٤۲ کال کښې یو بل الماني استاد هم کابل ته راغی چه اوس داقتصاد په پوهنځي کښې پنځه کسه خارجي استادان چه دوه تنه ئې پروفیسوران او دری تنه ئې ددکتورۍ خاوندان دي. داقتصاد د په پوهنځي کښې د اقتصادي علومو په مختلفو برخو کښې درس ورکوي او سربیره په دغه د الماني

محصلینو دجملې څخه دوه تنه اسیستانت دلیسانس په درجه د اقتصاد د پوهنځي د کتابخانې دچارو داسانۍ اوپرمخ تګ په غرض دپورتنې قرار داد له مخې دمربوطو چارو په اجرا مشغول دي، داخلي استادان چه په حاضر وخت کښې داقتصاددپوهنځي په تدریسي چارو مقرر دي ، ۲۳ تنه د پوهیالي د علمي رتبې نه د پوهنوال ترزتبې پورې دي .

**دمحصلاتو او محصلینو ډیر ښت :**

په ۱۳۴۱ تدریسي کال کښې ۷۶ تنه دښوونځیو محصلانې او محصلین د اقتصاد د پوهنځي په لومړي ټولګي کښې شامل شول مګر په ۱۳۴۲ کال کښې د اقتصاد د پوهنځي دلومړي ټولګي دشاملینو شمیر ۱۳۴ تنو ته ورسید چه ۳۸ تنه ئې محصلانې او نور ئې محصلین دي په دې حساب نو داقتصاد دپوهنځي په یوه تمایمي کال کښې په سلو کښې ٦٦ تنه شاملین ډیرشوي دي، دشاملینو دشمیردغه ډیریدل چه دافغانستان اقتصادي انکشاف پخپله دسم علمي بنسټ فني پرسونل ته نیاز منډي لري د یوې خوا او دبلې خوا داقتصاد علم چه بشرته دیواجتماعي علم په حیث و سایل سپا رې او په دغه واسطه انسان کولی شي چه دخپل ژوندون جریان په ښه او جه په زړه پورې مستقیما په یوغږ تنظیم کړي نو بناءً په دغه افغاني ځوانان د پورتنیو دوه اصلو په نظر داقتصادي علم دزده کولو اهمیت ته متوجه شوي دي . د پوهنځي د ورځنی علمي انکشاف دډیریدو څخه سربیره دصلاحیت لرونکو مقاماتو دصوابدیدو په اثر ئې په دې لار کښې هم زړه پورې موثره مرسته کړې ده .

**کتابخانه :**

دشاګردانو او نورو یوه کسانو داستفادې دپاره داقتصاد په پوهنځي کښې د کتابخانې د تاسیس بناء ونیول شوه .

د ۱۳۴۱ کال یعنې دالمان دکلن د پوهنتون سره دقرار داد دلاس لیك کولو تر وخت پورې د اقتصاد پو هنځي پخپله کتابخانه کښې ټول ۲۹۹۱ ټوکه کتابونه درلودل مګر وروسته له هغه دنوموړي قرارداد له مخې یو ه ماده داقتصاد د پوهنځي د کتابخانې سره په مرسته پورې مربوطه وه نو بناء په دغه دکلن د پوهنتون داجتماعي او اقتصادي علومو د پوهنځي له خوا په مختلفو ژبو یو شمیر ډیرکتابونه د کابل د پوهنتون اقتصادي پوهنځي ته اهدا شول چه ددغې جملې څخه تراوسه پورې (۲۰۰۰) ټوکه کتابونه کابل ته رارسیدلي دي او د نورو کتابونو رالیږل ادامه لري چه په دغه لړ کښې داقتصاد د پوهنځي کتابخانې ته یو ډول مسلکي روزنامې اومجلې هم را رسیږي داستفادې وړ ګرځیدلي، دکتابو دشمیراحصائیه چه تراوسه پورې دالمان او انکشافي بانك او نورو موسسو نه داقتصاد پوهنځي ته رارسیدلي په لاندې ډول دي .

۱ـ دبین المللي بانك درالیږلو کتابونو شمیردري سوه ټوکه.

۲ـ د پروگرام په اساس د المان نه‌را لیږلی شوی کتابونه تقریباً د دوه‌زره ځوکونه زیات دی .

۳ـ د اقتصاد د پوهنځی کتابخانې ته چه کومې مجلې اوروز نامې په‌مسلسل ډول رسیږی د سل ځوکو مجلو اوروزنامو نه ئی شمیرزیات دی .

## سیمینارونه :

د اقتصاد د پوهنځی دسیمینار د پروگرام ترجمه دمخه هم تطبیق کیدله‌مگر په۱۳٤۲ تدریسی کال کښې ددغه پروگرام د تطبیق طرز دکابل د اقتصاد د پوهنځی دشرایطو او مقتضیاتو په نظر کښې بدلون پیښ شو او دمحصلانو اومحصلینو دپاره دسیمینار د تطبیق برخه داسې په‌نظر کښې ونیول شوه داصلی اواساسی مضامینو په‌خوا کښې زیمینارونه هم‌چالان شی او په دغو زیمینارونو کښې شاگردانو ته موقع ورکړی‌شی چه ددرس په‌وخت‌کښې که‌کوم سوالونه‌ئی په‌ذهن‌کښې پیدا کیږی د مربوط سیمنار په خالی شیبو کښې پخپل منځ‌کښې او یا دخپلو استادانو سره بحث اومفاهمه وکړی‌او علمی ځیږنو خپل ځان‌قانع کړی .

سربیره پردغه دشاگردانو دسیمنارونو سره جوخت د پوهنځی داستادانو د پاره دوه نور سیمیناوونه په عالی سویه دایر شوی دی چه ددغو سیمینارونو دجملې څخه یو سیمینار په۱۳٤۱ کال دالمانی استادانو دټیم رئیس پروفیسور دوکتورویلی کراوص په واسطه‌اودملی اقتصادد پروفیسوردوکتوراسوالدهای‌و داوسنی‌اقتصادد پروفیسور په واسطه عملی کیږی .

ددغو وروستنیو دوه زیمینارونو هدف او مرام دادی چه د اقتصاد پوهنځی استادانو ته موقع ورکړی شی چه داقتصادی علمی مسایلو په خواوشاه کښې ورسره‌مخامخ‌وی او یا دخارجی‌استادانو سره په دایمی‌ډول په‌تماس کښې وی او په‌دی ترتیب دمضامین په تدریس کښې پخپل منځ‌کښې هم آهنگی واری .

## علمی سیر :

د اقتصاد پوهنځی دڅیرو کلو نو راهیسې داهیواد زراعتی اوصنعتی مرکز وته د سیاحت پروگرام د اجرالاندی نیولی ، ددغه پروگرام مقصد دادی چه د یوی خوا د اقتصادی پوهنځی‌شاگردان اوشاگردانی‌دخپل هیواد داقتصادی اوانکشافی پروژو سره‌عملاً آشنا شی اود بلی‌خوا دهیواد په زراعتی اواقتصادی سیموگرځیدل اولیدنه کتنه په حقیقت گښې دشاگردانو نظری درسونه عملی شی .

په ۱۳٤۲ کال د اقتصاد د پوهنځی دلومړی ټولگی‌شاگردانی اوشاگردان‌چه‌تراوسه پوری دعلمی سیر دپاره پغمان ته تللی دی او داقتصا دی عمومی جغرافیې په مضمون کښې کوم موضوعات په نظری ډول لوستلی د کابل دښار اوخوا وشا سیمو تر منځ کښې دنباتاتو اختلاف په سیمه‌ایزو برخو کښې‌دعملی مطالعې اوځیړنی لاندی نیولی د

اقتصاد دپوهنځی دغه پر و گرامو دمخې په ۱۳٤۲ کال د خپلو لوړو ټولګیو دعلمی سیر دپاره دهیواد شمالی برخو دهیلمند او ارغنداو سیمو اود کندهارصنعتی برخو ته وسیع پروګرامونه طرح او تطبیق کړی او په همدغه ډول په دخلورم ټولګی شاگردان په ۱۳٤۲ دهیواد شمالی سیمو سیل و کړی .

## میلمانه پروفیسوران :

دکابل دپوهنتون داقتصاد دپوهنځی او دالمان داتحاد دی جمهوریت دکلن دپوهنتون داقتصادی اواجتماعی علومو دپوهنځی ترمنځ دقرار داد درابطی له مخې پیش بینی کیږی چه ددواړو پوهنځیو استادان دقرارداد دغبرګی رابطی به ترڅ کښې دا موضوع هم د خپل هدف په حیث چه د دغه قرارداد یو اصلی مرام دی په نظر کښی و لری اودکابل دا قتصاد د پوهنځی د استادانو او عضلاتو

او عصلینو سویه به بیړه بین المللی سوبې ته ورسوی نو د دغه اساس له مخې دکلن پوهنتون پهٔ نظر کښې نیولی چه هرکال ددې پوهنځی داستادانو دپاره دعالی تحصیلاتو یوشمیر فیلوشپانو ته تخصیص ورکړی، لکه د۱۳٤۱ کال په دنیمائی کښې داقتصاد دپوهنځی څلورتنه استادان دعالی تحصیلاتو په غرض داتحادی المان جمهوری هیوادته لاړل اود۱۳٤۲ کال په آخره نیمائی د۱۹٦٤ نوی عیسوی کال کښې داقتصاد دپوهنځی داستادانو دپاره څلور تعلیمی بورسونه ورکړې ګوی چه ډیر زر خپل نفر وټاکی اوبه ټاکلی مود. کښې ئې و لیږی دپوهنځی دتدریسی پروګرامونو داصلاح په لړ کښی داقتصاد دپوهنځی داقتصادی څیړنی مجله چه پخپل حجم او ظرفیت کښې دمحصلاتو اومحصلینو په نظری درسونوکښې دیوی متممې وسیلې په حیث عمده نقش دی په زړه پوری افزایش پکښی راغلی ځکه دغی مجلی دلوړو علمی او عمده مضامینو په نشر داقتصادی پوهنځی محصلاتو اومحصلینو ته ډیر لازمه اقتصادی معلومات وړاندی کړی اوهغوی ته ئی سپاری.

## دمحاسبی او داحصایی لابراتوار :

هرکله چه عمیق اقتصادی موضوعات دحسابی اعدادو په ارقام او درباضی او هندسی گرافونو په فارمولونو تحلیل کیږی نو بناء په دغه نظر په ۱۳٤۱ کال داقتصاد دپوهنځی دمحاسبی او احصاییې لابراتوار چه په مدرنو حسابی ماشینونو مجهز دی پرانستل شو.

دمحصلاتو اوعصلینو داستفادی وړ واقع شو. یوعصری کانتین پرانستل شو .

چه شاګردانې اوشاګردان تری دتفریح په وخت استفاده وکړی . نو امید دی دد غه عمارت په جوړیدو سره دکابل دپوهنتون په ساحه کښی دپوهنځی لوی مشکل ژر رفع شی.

## په بین المللی اقتصادی کنفرانسو کښی داقتصاد دپوهنځی برخه :

داقتصاد پوهنځی دیوی عالی موسسی په حیث دهیواد داقتصادی علومو مطالعه خپله وظیفه بولی چه دقولو بین المللی اوملی اقتصادی مسایلو او پرابلمونه په مستقیم

او یا غیرمستقیم ډول دهیواد داقتصاد سره رابطې پیدا کوي ورسره آشنا اودماهیت اوجریان څرنګوالي ئې وخت ناوخت دپوهنځی استادانو محصلانو او محصلینو ته وسپاري .

نو په همدغه اساس داقتصاد د پوهنځی د غو ښتنې او صلاحیت لرونکو مقاماتو دمنظور پهاثر داسې تجویز وشو چهوروسته لهدې په هر بین المللی اقتصادی کنفرانس کښې چه دافغانستان نمایندګان پکښې ګډون لري داقتصاد دپوهنځی نمایند ه هم پکښې دمشاهد پهحیث شامل وي. لکه چه د۱۳۴۲ کال په اول کښې د د غه پو هنځی دوه کسه استادان ښاغلي پوهنمل محمدعارف غوثي په ژنیو کښې کارا وکارګرو په بین المللی کنفرانس کښې ګډون کړی واوهم ښاغلي پوهنمل نجیب الله امرخیل د بنکاك دایکافي دسیمې داحصائیه پوهانو په پنځم کنفر انس کښې شمولیت درلود چهپه نتیجه کښې یې نوموړې کنفرانس دجریاناتو اوګـزارشاتو رپوټ پو هنځی ته و سپا ره چه دعلاقه مندانو داستفادی وړ و ګرځید .

## دزراعت اودوترنري د پوهنځی فعا لیتونه :

په ۱۳۴۱ کال چه دمنظور شوی بودجې دترتیب شوی پلان په ډول ددوهم پنځه کلن پـلان لومړی کال و . ترکوم ځایه پوري ئې چه امکان در لود ، د کرهڼې دبیطارۍ نوی تاسیس شوی پوهنځی دخپل تاسیس په لو مړیو ورځو کښې په ډیر زیار اواهتمام سره داداری دمختلفوچارو په پرمـخ تـګ کښې فعالیت ښودلی دی مګر د بودجوی اواداری تشکیلاتو دتوسعې په نظر بیاهم د ۱۳۴۰ کال د فعالیت سره دمقا یسې وړ نه ؤ . په دغو دواړو موضوګانو کښې د یادونې وړ کـتنه شوی لکه چه پو هنځی په لو مړی مرحله کښې د وه تنو په کار لا س پوری کړ چه د هغه راهیسې اوس چه ګوری زیاتو کم شل تنه ما مو رین اوپنځه ویشت تنه مستخدمین دچارو په اجرا لـګیادی اوددوهم پنځه کلن پلان د پوهنځی داړتیا ؤ اودنیاز مندی له مخې ترتیب اومنظورشوی دی چه ددغه منظورۍ په ډاډ ئې یوه برخه مشکلات رفع شوی دی. دترانسپورت داستادانواومامورینو وسایل برابر اوتهیه شوی ترکوم ځایه پوری ئې چه امکان درلود دلابراتوار تجهیزات تامین اوپه ذمه پوری دی .فرنیچر اودنوری نیاز مندیهضروری شیان ددغه پو هنځی مربوطه پروژې او لابرا توارونه چه دپوهنځی دمحصلانو دتعلیمو نو په پر مـخ تـګ کښې مهم نقش لری په لاندې ډول فراهم شوی دی .

لـکه د نباتي مرضونو دمدافعې لا براتوار ، د احصـاییې اوفزیـك لا براتوار دجوی آلا تو د توسعې او ګرا نو مي لابراتوار، کار ګاه و شاب ، د حیوناتو دروزنې او دهغو څخه د وړیو اخستلو لا براتوار ، د کر هنې تجربوی بوزغلی مونیم اوعر بیـریم ، ګلخانه ، اوسرد خانه ، د حیوا ناتو او نباتاتو بیا لوژی لابراتوار ، دخور اکي شیانو اوسبو د سا تنې اومیوی لا براتوار برابر شوی چه

ددغې جملې څخه د فزیك لا براتوار دمخه هم ؤ ، چه یوازې دنقص پهلرې کو لو او جوړولو کښې ئې لازمه اجرا آت شوی دی د دغو لا برا توار و په جمله کښې چه دمنظورشوې بودجې درا رسیدلې تخصیصې به تناسب د ۱۵ لابراتوارو بهشاوخواؤ کښې موفقانه پرمخ تـګ شوی په همدی ډول څینې نورلا براتوار ونه لـکه د نباتې امراضو دمدافعې لابراتوارـ دحیوانانو دروزنې اووهیواخستلولابراتـوار او د کرهنې په بوزغلې برابرولو کښې په زړه پورې پیشرفت شوی دی .

## د تجربوی فارم فعالیتونه :

دنادر شاه روغتـو ن دصحې موسسو د ملـکـیت ځمـکه دزراعت د پو هنـځې داستفادې په غرض پریښودل شوی دغه ځمـکې دنادر شاه روغتون دد یوال د ننه په با غ کښې دی دوسایلو اوکافی پر سونل نهلرلو په علت اوهم د پوهنـځې څخه دلرېوالی پهنسبت ترې پهاسانیسره استفاده نشوهکېدی مګر د کرهڼې او انجنیرۍ دپو هنځې د اوسنی تعمیر په مقـا بل ددغې ځمـکې یوه شاملهٔ برخه چه د وه کا له د مخه دغه پوهنځې استاذانوته وسپارله شو هچه دتجربوی بو زغلو په امتحان ترې استفاده وکړی ددغې ځمکې فز یکی وضعیت په ټوله معنې خراب ؤ . مګر او س ئې بل ډول وضعیت اختیار کړی، دیوعلمی فارم په ډول ګرځیدلی. ددی تیرو دوه کلونو په وروستنی کال کښې د پوهنځې دریاست دلارښو دنې لاندې په زراعتی فارم کښې لا ندې تجربې عملی شوی دی .

## د کچالو دذخیرې طریقه :

په دغه تجربه دوه کاله کار وشو . ددغه کار نه چه کومه نتیجه لاس ته راغلې کاملاً اطمینان بخش ده .

## دژمنې غنمو تجربه :

ددی تجر بې په فاصله کښې د یوه جریب تخم ځمکه د نوستلو دطریقې مقایسه دکـتنې لاندې ونیوله شوه .

## سبزیجات :

دشل ډوله داخلی اوخارجی سبز یجاتو په خوا وشاه کښې سبزیجات د محصلینو دتطبیقاتو په سلسله کښې کرلی شوی دی .

دمختلفو سرو دتطبیق پروژه .

په دې پروژه کښې درې ډوله مختلفه سره لـکه شنه سره،مصنوعی سره اودڅاروپو سره دکتنې لاندې نیولی شوې ده .

## دچغندرو تجربه:

په دې تجربه کښې دوه ډوله داخلی اوخارجی چغندرو دکتنې لاندې نیولی شویدی

## د پنبې تجربه:

په دی تجربه کښې هم دوه ډوله داخلی اوخارجی پنبه دکـتنې لاندی ده .

## د جوارو تجربه:

دلته په یوه جریب کښې د مختلفو تخمونو په لاس نوستلو طریقه د کیل د مخې د مطالعې لاندې نیولې شویده .

## د باتینګړو تجربه :

دلته شلو ر ډوله باتینګې د زیاتو مقایسوی حاصلاتو له مخې د تجربې لاندې دی.

## د پالکو تجربه :

په دغه تجربه کښې د یوه جریب د تخم د مقدار د هرډول پالکو د حاصلاتو مقایسه تر مطالعې لاندې ده.

## د وړې تجربه :

دلته هم یو جریب د تخم ځمکه د تجربې لاندې نیول شوی ده .

## د کاهو تجربه :

د کاهو یوجریب ځمکه د وړې او پالکو د ځمکې په شان تجربې لاندې ده.

## د همیشه شنو ونو بوزغلی :

په دغه بوزغلی کښې معمر ریان ناجواو چنار ترکښتنې لاندې دی .

## په فنی ډول یوه باغچه :

په دې باغچه کښې میوه دارو ونو نهالونه ایښودل شوی دی چه دهغو څخه د تطبیقاتو په غرض محصلین استفاده کوی .

## د کچالو کرهڼه :

د علی آباد د باغ په ننه برخه کښې یو جریب ځمکه د حاصلاتو د مقایسې د پاره د یوه پوهنځی د فارم د اساسی حاصلاتو فصل دی .

## دعلم او فن دمجلی دخپرولو دمدیریت تاسیس :

د و ترنزې او کرهڼې د پوهنځې ریاست دګرانو وطن والا وډدیرو علمی معلوماتو دمطالعې او استفادې د پاره اوهم د دې کبله چه د پوهنځیو د علمی فعالیتو او نورو چارو څخه دعلم اوعرفان علاقمندان بهخبر شی نو د مجلې دخپرولو کارته یې اقدام وکې په همدغه ملحوظ د پخوانی پیش بینی په نظرد صلاحیت لرونکو مقاماتو په منظورۍ دلازمه وسائلو اوبودجوی تدارکو له مخې د پوهنځی دنشراتو مدیریت روی کار شو او په فعالیت ئې لاس پوری کې ،دعلم اوعرفان دخپلې ۳ میاشتنۍ مجلې لومړۍ ګڼه ئې چاپ اودعلم اوعرفان دمینانو لوستلو ته وسپارله .

## امریکې ته دمحصلینو لیږل :

د افغانستان متبوعه حکومت ددې د پاره چه دهیواد په کرهنه کښې په زړه پورې بنایسته علمی تحولات اواصلاحات منځ ته راشی نوزراعتی پوهنځی دامریکې دوایومنګ د پوهنتون ،سره تخنیکی قرار دادوکې ، دوایومنګ دقیم علما دشوکالو راهیسی دزراعت اوانجنیرۍ د پوهنځی دتدریسی چارو سره تخنیکی مساعدت کوی اودهمدغه

قرار داد په اساس هر کال یوشمیر افغانی استادان او محصلین دامریکی د متحده اضلاعو وایومنگ اونورو پوهنتونو نوته دعالی تحصیلاتو د پاره لیږل کیږی دای ـ اس ـ آی دقیم سرهانجینری دپوهنځی قرارداددی د پاره دی چه په تدریسی چارو کښی دمحصلینو سویه لوړه اونوی تحول پکښی پیداشی نود ۱۹۶۳ عیسوی کال د فروری په ۱۴ نیټه متبوعه حکومت د امریکی دای ـ اس ـ آی د قیم سره قرار داد امضا کړی، ددغه قرارداد له مخی دنوموړی قیم اعضا کابل ته راورسیدل اوبه کارئی شروع وکړه نودهمدغه ملحوظ له مخی د انجنیری او زراعت پوهنځی پیل شو .

## دمحصلینو علمی سیر :

پهمختلفو زراعتی اوفلاحتی رشتو کښی دزیاتومعلوماتو پاره د پوهنځی دریاست داستادانو دپاملرنی لاندی دپوهنځی محصلین دهیواد پهمختلفو برخو کښی د زراعتی پروژو دکتنی اوعلمی سیرد پاره ولیږل لکه چه په ۱۳۴۱ کال دکرهنی څلورم ټولګی په همدغه منظور دحشراتو دراټولو دپاره ددی مضمون دداخلی اوخارجی استادانو دنظر لاندی دننګرهار ولایت تهلاړل چهد ننګرهار دولایت دمحلی حشراتو دراټولو نه وروسته بیرته کابل ته راستانه شول اوپههمدی ډول پهدغه کال کښی دزراعت څلورم ټولګی دقطغن دولایت دعمرانی اوزراعتی پروژو دکتنی دپاره لاړ او وروسته دهرډول نباتاتو دراټولولو نهبیرته کابل ته راغلل ، په ۱۳۴۱ کال کښی د کرهنی ددوهم ټولګی محصلین دداخلی او خارجی استادانو ترنظارت لاندی د ننګرهار دولایت دزراعتی پروژو دکتنی د پاره لاړل اودمشاهدو اوڅیړنو وروسته کابل ته راستانه شول ،همدغه رنګه په ۱۳۴۱ کال دزراعت څلورم ټولګی دمربوطو استادانو دپاملرنی لاندی د پغمان دزیاتو معلوماتو د پاره د ګل بهار د نساجی د فابریکی دکتنی دپاره لاړل او دمعلوماتو د اخیستلو نه وا پس کابل ته راستانه شول .

نوټ ـ په ۱۳۴۱ ـ او ۱۳۴۲ کال کښی د زراعت او بیطاری دپوهنځی دمختلفو ټولګیو محصلین دکابل دښار خوا اوشا سیموته دزراعتی اوفلاحتی چارو دکتنی د پاره لیږلی شوی دی .

## د تعلیم اوتربیی دپوهنځی اجراآت:

په ۱۳۴۱ کال کښی دمملکت ددوهم انکشافی پلان دتجویزاو دتعلیم او تربیی دپوهنځی پهنوم یوبل پوهنځی تهدضرورت داحساس لهمخی دپوهنتون دریاست پهجوکاټ کښی دتعلیم او تربیی پوهنځی تأسیس شو :

دغهپوهنځی د۳۵ تنوزده کوونکو ذ لرلو سره د ۱۳۴۱ کال دحمل په ۱۵ نیټه پهدرس شروع وکړه اوزده کوونکو دځپلو پوهو استادانو په لارښوونه او مهری

سمستر د ۱٤ کال د سنبلې ترمیاشتې او بیائې دوم سمستر د ۱۳٤۱ کال تر آخره پورې د کامیابۍ مخ په وړاندې بوتلو .

څرنګه چه د لاس ته راغلو نتیجو څخه څرګندیږي، داسې تجویز و نیول شو چه د تعلیم او تربیې پوهنځی د تعلیم او تربیې د مؤسسې له چوکاټ څخه بیل او خپل کارونه په مستقل ډول مخ په وړاندې بوزي او لدې کبله وُچه د غه پوهنځی په ۱۳٤۲ کال کښې د تعلیم او تربیې له مؤسسې څخه بیل او د پوهنتون د ریاست د یو فعال او خپلواک رکن په حیث ئې خپل کارونه منظم او تراوسه پورې ئې وکړای شو په ډیره لږه موده کښې په پوره چټکیا د علمي او درسي مختلفو اړخونو څخه وړاندې تګ وکړي .

د تعلیم او تربیې پوهنځی د ۲٤ کال له حمل څخه را پدې خوا له پخوانی تعمیر څخه نوي ځای ته چه درسي زیاتې کوټې لري او اداري او تدریسي د لري کوچ وکړي و البته کله چه د علی آباد چه په لمن کښې د کابل پوهنتون سرته ورسیده د پوهنتون د نورو پوهنځیو سره به یو ځای هلته کوچ وکړي .

د غه پوهنځی د پروګرام په جوړولو کښې د تعلیم او تربیې اصلي مفاهیم په نظر کښې نیول شویدي او درسي کورسونه داسې ترتیب او تنظیم شویدي چه د اوسنی اوراتلونکی ژوند سره برابر او موافق وي .

کوم پروګرام چه د دغه پوهنځی د تعلیمي کال په شروع کښې جوړ شوی وُ په تجربوي ډول تیر ترتیب شوی او یو مقایسوي شکل ئې درلود لیکن پدې وروستیو وختو کښې (۳ میاشتې) د دغه رشتې د مختلفو حیاتي اړخونو او دوستی ته په نظر کښې نیو او سره د خارجي او داخلي ماهرانو سره مخبری وشوی او په پروګرام نوی نظر وشو او حیاتي نکتې او تربیتي او تعلیمي بارزښته کورسونه به په هغه کښې ئې ځای کړل شي

څرنګه چه د تعلیم او تربیې د پوهنځی تعلیمي هسته او د پوهو او تعلیم یافته ز لمیانو تربیه چه په مسلکي او تعلیمي رشتو کښې ده نو کوښښ کیږي چه ډیر ژر او په لږ وخت کښې د دغه پوهنځی د انکشاف په لیاره کی جدي او مفید کامونه وا خیستل شي او پوه او د روښانه فکر استادان خدمت ته تیار شي .

په دغه اساس په ۲٤ کال کی یو مسلکي تولګی چه د مرکز او ولایاتو له ښوونکو څخه جوړ شوی د تعلیم او تربیې د پوهنځی په حوضه کښې تاسیس او د هغه مسلکي مضامینو تدریس د خارجي او داخلي ماهرانو په وسیله شروع شو .

علاوه پردې تصمیم نیول شویدي چه د ادبیاتو او ساینس د پوهنځی د زده کوونکو د مسلکي مضامینو تدریس د تعلیم او تربیې د پوهنځی په غاړه وي چه البته د غه کار به د تعلیمي انکشافي مرامونو په وړاندې بیولو او د خاص او ګډې هم آهنګی په ر وی کار

کولو اود معنوی انسجام په پیدا کولو بهٔ د پوهنتون در یاست ارکان کښې تقویه اوو ړاندې کوی.

څرنگه چه د دغه پوهنځی مضامین ټول مسلکی دی او آینده استادان د مسلکی او او تربیتی په بیلو بیلو رشتو کې په پوره معلومات مجهز کوی نو له دې کبله په کار دی چه د هغو تدریسی هم د مسلك د ماهرانو او تکړه خلکو چه په درسی بیلو او مختلفو برخو کې اوږده سابقه ولری وشی او بلی خو د درسی پروگرامو نو دوړاندې بیولو لپاره د یو قوی استاف لرل ضروری دی په دغه اساس ټاکل شو یده دری پروفیسران دای آی .دی د مرستو له لیاری د کابل د پوهنتون د پاره دغه پوهنځی ته راورسیږی. باید وویل شی دروحیاتو یو پروفیسر د ۱۳٤۲ کال د سرطان د میاشتی په پای کښی کابل ته رارسیدلی او روحیاتو په تدریس ئی د تعلیم او تربیی په پوهنځی کښی په کار پیل کړیدی.

د دن لپاره چه د تعلیم او تربئی د پوهنځی زده کوونکی د خپل رشتی په آفاقی او عمومی معلوماتو مجهزوی د روغتیا یو کورس چه د خلکو د ژوندانه د لومړنیو شرایطو سره زیات اونږدی سروکار لری د دغه پوهنځی د دوهم کال په دوهم سمستر کښی هم ځای شویدی

## د کورد تدبیر د پوهنځی فعالیت :

د تدبیر منزل پوهنځی ، د ۱۳٤۱ د حمل په میاشت کښې د کابل د پوهنتون په چوکات کښی د یو نوی جوړشوی پوهنځی په حیث شامل شو.

دغه پوهنځی د مسلکی شقوقو او د ژوندانه په ساحه کښی د افغانی پیغلو د روزنی او په اجتماعی او اقتصادی ساحو کښی د ننني ژوندد اصولو د رمزونو سره د هغو د آشنا کولو په منظور منځ ته راغلی دي.

د ۱۳٤۱ په لومړی تعلیمی کال کښی یې یو صنف او ۱۸ تنه محصلانی درلودی او کوم مضامین چه تدریس شول هغه عمومی موضوع گانې لکه، تاریخ، د افغانستان جغرافیه، روحیات، د تعلیم او تربیې مبادي، پښتو، انگلیسی فارسی، حفظ الصحه، بیولوژي، کیمیاؤ او د دغه پروگرام د فعالیتو مفردات داسی ترتیب شویدی چه ټول د اجتماعی او فامیلی ژوندون د مربوطو گټو متضمن دی.

د ۱۳٤۲ په دوهم تعلیمی کال کښی یو بل ټولگی هم په دغه پوهنځي کښی زیات شو او د هغو دد رسو نو

پرو گرام هم د لومړی کال د لومړی ټولګی په شان دی .

په دوهم ټولګی کی د اجتماعی او سیانس د مضامینو څخه علاوه ، د ری اختصاصی کورسونه د تدبیر منزل مبادی ، د آرت مبادی او د برش ، ګنډلو او د کالو د ترتیب صول هم په پرو ګرام کښی شامل کړی شول .

د آرت د مبادی او د برش ګنډلو او د کالو د ترتیب د اصولو کورسونه په پېدی نودی وختو کښی د مربوط متخصصینو له خوا شروع شی .

هیله ده د ٤٢ کال د سنبلی ترمیاشتی پوری د تدبیر منزل په پوهنځی کی یوه کتابخانه هم جوړه شی چه په هغی کښی محصلانی و کړای شی د تدبیر منزل د اختصاصی کتابونو او د کتلاکونو د مجلو څخه ګټه واخلی . د غه شان یوه داسی نشریه و لری چه په هغی کښی په دغه لیاره کی د مختلفو او متنوعو جنبو څخه د محصلانو او د وطن د نورو خو یندو په رهنمایی کښی خدمت و کړی شی .

په نظر کښی دی چه عجالتاً یو د پخلنځی او ګنډلو لا براتوار په پوهنځی کښی ترتیب شی چه محصلانی و کړای شی هلته خپل تطبیقاتی کارونه اجرا کړی ، د هغو د سامان او لوازمو د تدارک او اتباع په باره کښی اقدام شوی دی ، علاوه په دی د تدبیر منزل په رشتو کښی دوه افغانی پیغلی د متخصص لپاره خارج ته استول شوی دی او په نظر کښی دی چه د رغه پوهنځی د مربوط محصلانو څخه یو دوه پیغلی نوری هم عجالتاً د دغه مقصد د پاره خارج ته واستول شی . «پای»

⁂

(د ٢٦٤ مخ پاتې)

اودوایرو داحتیاج لرلو په نظر دهغوی دغوښتنې په نتیجه کښې په ۱۳۳۷ کال کښې دغې څانګې په چالانولو موفق شو ددغې څانګې وظیفه لکه څنګه یې چه د نوم څخه معلومیږي دهیواد دهوایي حالاتو او اقلیمي وضع دمشاهدو تحقیق او کتنه چه دهیواد په مرکزاو ولایاتو کښې کیږي اقلیمي نتیجې لاس ته راوړی او ذیعلاقه دوایروته یې سپاري. همدارازدغه څانګه په دې هم موفق شوله دټولو رارسیدلو مشاهدو عمومي اجمال په منځنۍ ارزښت وسنجوي اودهوا پیژاندلو دیوی نشریې یا بولتن په ډول چاپ اوخپور کړي. دغه خپرونه چه دهیواد پاسنیو حالاتواو واقعاتو اودټولو مشاهده شوو هوایي عناصرو دافغاني قیمتونو منځنۍ ارزښت داکثرو خارجي اوداخلي دوایرواو موسسو ددلچسپۍ وړ واقع شوې دې چه په داخلي کښې ددغې نشر یې نسخې دملکي هوایي ریاست له خوا دفوائد عامې وزارت، دکرهنې وزارت، دروغتیاوزارت – دپلان وزارت – دهلمند دناوې دپروژې ریاست، دګرځندوی ریاست، دترانسپورت ریاست – آریانا هوایي شرکت اوداد بیاتو پوهنځي ته لیږل کیږي اوهم په باندنیو ملکو کښې ۲٦ مختلفو هیوادو ته دهوایي حالاتو بولتنونه مبادله کیږي.

په دغه څانګه کښې سر بیره د پورتنۍ خپرونې څخه دباد، حرارت واورښت اوفشار اودتحول درجه اونور ګرافونه ترتیبیږي او په دې وخت کښې د ځینو پسنو څخه دپنځه کلن اولس کلن نورمال حال په برابرولو او تهیې باندې موفق شویدی.

دهریرود اومرغاب سیمې ته دهوائي حالاتواو داوبو دپست هیدرو متریك دپیمانې پیژاندلودقیمتونو دلګولو دتاسیس دمحل ټاکلو دپاره "دافغان اوشوروی اتحاد دلیږل شوو هیئتو دسروې نتیجې.

د ۱۹٦۲ عیسوي کال دجنوري د۳ نیټې دافغانستان دشاهي دولت اوشوروی اتحاد دحکومت ترمنځ دهیدرولوژی په سیمې کښې دفنې مرستې دپروتوکول په اساس چه شوروي حکومت ددوهم درجه هواپیژاندلو ۳–۱٤ قیمتونو تاسیس دهغه داوبو پیمانې هیدرو متریك لومړی درجه دوه دستګاه دهغه دتیلفونې دستګاه سره چه دمشاهدو څخه یې دجانبینو داستفادې دپاره دهریرود اومرغاب په سیمو کښې وکړي تعهد له مخې دذکر شوي پرتوکول د۳۳ مادې په نظر دملکي هوایي "ریاست اودشوروي دهیدرومترو لوژي دریاست له خوا دهوا او اوبو پیژاندلو دافغاني اوشوروي دساختماني متخصصینو په ګډون دهریرود اومرغاب دسیمې دنظریې اومطالعې دپاره وټاکل شو اودهوا پیژاندلو دیوه دوه تیسنود تاسیس دځای دټاکلو په مناسبت چه په عین وخت کښې دبحر دسطح نه په ۲۰۰ – ۳۵۰۰ متره ارتفاع کښې دحرکت لار په ٥ – ۱۰ کیلو متره اوزدو کښې دسرچشمو په خوا دواورې داندازې معلومول په ټاکلي محل کښې دسیندونو دسیمو په منځنۍ او پورتنۍ برخه کښې دواورې داورښت په مقصد ۳ – ٤ داندازې دمعلوماتو دهریرود او مرغاب دسیندونو په خوا وشاسیمو کښې داوبو د

